# حیات افغانی



دویم ټوک

لیکوال: محمد حیات خان

۱۳۷۰

# حیات افغانی



## دویم ټوک

لیکوال: محمد حیات خان

ژباړونکي: محقق فرهاد ظريفي او محقق عبداللطيف طالبي

سريزه تحشيه او تعليقات د اکاډمېسين عبدالشکور (رشاد)

خپرونکی: د سرحدونو چارو وزارت
د خپرونو او فرهنګي چارو رياست

# حیات افغانی (دویم توك)

دسر حدو نو چار و وزارت دنشراتو او فر هنگی ریاست له خپرونوڅخه
لیکونکی : محمد حیا ت خان ،
ژباړونکی : محقق فرهاد ظریفی‌او محقق عبداللطیف طالبی .
مهتمم : محمد انور شمسه خیلی
د چاپ شمیر : (۳۰۰۰) توکه
دچاپ ځای : آریانا مطبعه
کابل ـ افغانستان ـ ۱۳۷۰

## دمطالبو فهرست

**عنوان** **مخ**

| عنوان | مخ |
| --- | --- |



## څلورم باب

| عنوان | مـــخ |
| --- | --- |

# دویم فصل
## دغرغښت داولادی بیان

**دغر غښت دقبیلی بیان:**

دنسب له شجری نه داسی څـــرګند یږی چی غر غښت دقیس عبد الرشید منځوی زوی اود غرغښت له او لادی نه چی شپږ لوی ښاخونه منځ ته راغلی او تفصیل یـــی دنسب په شجره کی ذکر شـــوی دی دهغوی له جملی نه کاکړ ډیرمشهور او باقدر ته ښاخ دی آن تر دی چی ځینی خلك دغر غښت تو له قبیله دکاکړ ښاخو نه بولی او داسی ښکاری چی ددغه قبیلـــی تول خلك هم خپل ځانونه کاکـــړ بولی . دغرغښت قبیلی شجره چی وړا ندی یی ذکر راغی دهغی یـــوه برخه له مخز ن افغانی څخه اخیستل شوی ده او یوه برخه یی ددغـــه قبیلی ددر یو تنو مؤ ثقو او با وری اشخا صو له شفا هی بیان څخـــه لیکل شوی دی او ددوی دژ بـــی ثبو ت په دی ډول تر لاسه شوی چی هغه نومونه چی تر او ســـه دنسب په شجره کی شته دی ددغـــه قبیلی ښا خو نه تر او سه په هغه نامه بلل کیږی . د مو لف دهځـــو سره سره دغرغښت قبیلی دنســـب تو له شجره د ځانګو سره ترلا سه نه شوه او زما په فکر دد غـــــه قبیلی دنسب نا می دمربو طـــو ښاخو نو او ځانګو تر لا سه کول تراوسه هم پاتی دی خو سره له دی هم دپور تنی شجری له مخی دد غه قبیلی دلو یو ښاخو نونوم اوددوی تر منځ ارتباط څرګند یږی خو بیـاهم ددی امکان شته چی په د غـــه

برخه کی یولړ تیرو تنی شوی وی‌او ددغی خبری علت داد ی چی‌نوموړ ی
قبیله ډیره لری او سیړی اودد وی‌تګ راتګ دی خواته حورا بړ دی
او دری تنه باور ی کسا ن چی‌مؤلف په ډیر کو ښښ سره پیدا
کړل هغوی په زیا ته اندازه نه پو هیدل نو په دغو مشکلو شرایطو
کی چی مؤ لف کوم معلو ما ت تر لاسه کړی ، ددغه قبیلی دښا خونو
دذکر سره به یو ځای و لیکل‌شی .

## دکاکړو ښاخ :

دغر غښت زو ی دانی په څلوروزامنو کی کاکړ تر ټو لو مشرو چی
بی شمیر اولاده‌یی په یوه لو یه غر نی سیمه قبضه ټینګه کړ ی‌ده.
دکا کړ و دملك شما لی خواته دغلجیو دملك جنو بی څنډ ی‌مو-
قعیت لری او شمال لو یدیځ ته یی دار غستان سیمه او هم دتو بی
هغه برخه مو قعیت لری چی‌ا څکزی‌درانیان په کی او سیږی . لویدیځ
او سهیل ته یی د بلو چستان سیمه دسپینو تر ینود علاقی یوه برخه
اود سلیمان غره یو ښا خ پرو ت‌دی . دکا کړو ټول ملك له هر ی
خوانه تقر یبا دسلو میلو په‌اندازه‌پلن والی لری او ټوله سیمه یی
غر بی او دغرونو په و اسطه احاطه‌شوی ده او تر ټو لو یو لوړ غربی
له شمال څخه جنوب خواته غزیدلی‌دی که ددغه غره له لوید یځ‌خوانه
ځوك شمالی خواته را شی نومو ړی‌ځای به چی هغه ور وسیږی
دسیو نا داغ سیمه به وی چی یوجګ لوړ او نا آباد میدان دی‌چی
یواز ی دمالو نو د څر و لو له پاره‌منا سب ګڼل کیږی ، خو او س
هلته لږ څه آباد ی منځ ته راغلی‌ده، او کله چی څو ك دکا کړو
سیمی‌جنو ب دتو بی خوا ته را شی‌نوهغه جګ میدان ختمیږی خود هغه
لو یدیځ خواته ډیر ی واد یګا نی‌دغرو نو په منځ کی شته دی چی
دهغو څخه توره مر غه بر شور،نرین، توګی او هنه ډیر ی
مشهور ی دی او اددغو ټو لوواد یوخو لی لو یدیځ خوا ته دی.

## د برشور واد ی :

دغه وا د ی‌د لو ړه له چینی‌څخه پیل او دیو ی و یالی پردواړو
غاړو دښښن تر سیمی پور ی غز یدلی ده شمال ته یی دتو بی
سیمه او سهیل ته یی یو سخت غرمو قعیت لری ، ددغی واد ی‌پورتنی
برخه تنګه ده او ځنګلو نه نلر ی‌او ښکتنی برخه یی آباده او حاصل
خیره ده او هغه زرا عتی بو ټی اوپیدا وار چی په خراسان کی

موندل کیږی دلته هم شته چه ده غی سیمی منځ کی دو یمه قبیله میشته ده‌ وای نو دغه وادی په هم د پښنين يوه برخه گڼل کیده ځکه ددو ی تر منځ کوم فاصل حد نشته په دغه سیمه کی زیاتره د کاکړ دلو لادی دتر غزی او سنتیه ځانګی میشته دی.

## د هنسه وادی :

ددغه وادی خوله دشال تـــــــرسیمی پور ی رسیږی اودچهپر کوتل له نن دی سیمو څخه پیل شوی ده په دغه ځای کی یو لوی پیچو می موجود او له دغه ځای څخه یــوه‌لاره دژور ی وادی‌ته ځی. دشال‌په سیمه کی‌هم دکاکړ و قبیلی‌یو ښاخ‌میشته دی ، د افغانستا ن پا چــا ابدالی احمد شاه دبلو چستا نوالی‌نصیر خان ته دغه ځای دهغه دښو خدمتو نو په بدل کی ور کړی وکه څه هم اوس دغه ځای تش په نـوم په بلو چستا ن پور ی تړ لــی دی،خو دبلو چستا ن در یاست دضعـف په وجه باید خود مختار او خپل‌سری‌وگڼل شی ، له دی نه پرته دکاکړو ملك دلو یدیځی برخی په منځ کــی‌ورى ،ورى سیمی ډیر ی دی لکسه، گوسه ، صحرا ، کوته ، تــوده‌اونــو ر .

## دکنچو غــی وادی:

کنچوغی د کند غره لو یدیځ خوا ته یوه تنکه وادی ده چی‌ډیره ښه ځمکه لری او اکثر ځایو نه یی‌ښـه آباد دی. د پسر لی په موسم کــی تول ملك او هم ددغه ځای غر نــی‌سیمی شنی او له گلانو نه ډکــی وی او دیو گلزار په شان ښکاری‌دکنجو غی دواد ی پور تنی بر خــه تنکه خو ښکتنی برخی یی په تدریج‌سره پرا خیږی او تقریباً دیـــــرش میله اوږ دوالی لری ، دد غی وادی‌جنوب غربی سیمه‌چی ســور و ره ده دکنجو غی په نامه نه بلل کیږی‌اوددغه ځای په قنج کی څو کلــی هم شته چی په هغوی کی څلو یښت‌یا پنځو س کور ونه میشته دی او شاو خوا سیمی یی ښی آباد ی دی‌خو په اکثرو ځایو نو کی یی‌شپا نه خپلی دپسو نو رمی پیا یی، دد غه علاقی تول او سیدو نکی د کاکــړ دنسل دسنتیه ښا خ‌یوه څانګه ده‌اوددغه سیمی خان په اور کس کــی او سیږی .

## د بورې سيمه :

دغه سيمه يو پراخ او اوږدميدان دی ، ځمکه يې حاصل خيز او آباده ده او دبورې دسيمې په باب ځينې خلك داسې عقيده لري چې د پيښنو رد ميدان په شان آباده ده او په هماغه اندازه پراخوالی لري ،دامعلومه نه ده چې دغه روايت به صحيح وي او كه نه. خو دا خبره ځرگنده ده چې نوموړې سيمه ښه آباده او شنه ده او د دغه ځای ټول خلك دكرنې په چاروبوخت دي، دبورې په منځ کې يو ډير ښه سين دجنوب لويديځ خوا ته جاري دی او له دې څخه پرته ددغه ځای ځمکې دغرنيو وياله و په ذريعه هم خړوبيږي . همدا راز څو كاريزونه هم دځمكو داوبولو له پاره موجود دي. ددغه ځای پيدا وار ډير ښه او داروپا ځينې ميوې هم دلته موندل كيږي خو شفتالو پكې نه پيدا كيږي .ددغه ځای خلك دكليو په هغو كورونو لږ څه لري كوم چې جوړ وي او په هغو كې اوسيږي دبورې په سيمه كې دولس بيل بيل ښاخونه او څانگې ميشته دي، دا ټول ښاخونه دسنجر يا سوران ابن تفرق * چې د كاكړ لمسی و، اولاده ده په تيره بيا داري خيلو د ښاخ خلك په زيات شمير اوسيږي چې ددغه هر يوه ښاخ څو كلي بيل بيل او سيږي او دوی دبيلو مشرانو تر واك لاندې ژوند كوي. كه څه هم دكاكړو په غرنۍ سيمه كې نورې وړې سيمې له دغه قبيلې څخه ډكې دي خو د مبحث داوږد والي په سبب يې له ذكر څخه ډډه كيږي.

## دود او دستور:

دكاكړو په شان په يوه لويه قبيله كې ديو واحد دستور او دود شتوالی ناممكن دی په تيره بيا دكاكړو قبيله لكه څنگه چې دنسب په شجره كې ليدل كيږي په شلو ښاخونو باندې ويشل كيږي او بيا له دغو ښاخونو څخه څو نور واړه ښاخونه راوتلي او بيا دكاكړو په لوی ملك كې خواره واره شوي دي نو ځكه ددوی دود، دستور اورواجونه سره بيل دي او په دغه ټوله لويه قبيله كې هيڅ يو ستر خان حاكميت نه لري . دكاكړو هغه ښاخ چې دبرشور په سيمه كې پروت دی ،رواجونه او دستورونه يې ددوی

---

*دغه نوم په اصل کې هم تفرق ليكلی دی (وگ ۲۳۶ مخ) خو په نورو كتابونو كې دغه نوم تغرق ليكلی دی. (رشاد)

همسا یه قبیلی تر ین ته ور تــــه والی لری . اود پا تی لوید یځــــو کا کړو پو ښاك او دستور اخکـــزیدرا نیو ته نږد یوا لی لری او هغــــه شخړی چی ددوی تر منځ پیښیی شــید کلی دملکانو او سپین ږیر و پــه مرسته دسلا او مشـــور ی له لاری فیصله کیږی ،خو په ختیځو کاکــړو کی بی انتظا می یوه څه زیا تــــــه ده دبوری او سیدو نکی ارب خیـل عمو ماء په خپلو منځو کی جنګو نــــه او شخړی کوی که څه هم ځینــــی وختونه سپین ږیری او منصفــــا ن دشخړو داوا رو لو له لار ی فیصله او تلاشو نه کوی خو عمو ماء دغــــه شخړی دتور ی له لار ی فیصلــــه کیږی .داتمان خیلو او دو مــــــړوتر منځ اکثراء دښمنی موجودی دی .

## کسبو نه :

دکا کړو دقبیلی خلك عمو مـــاء په دو وکسبو نو یعني کرنــــه او ما لدا ری پا ندی بو خت دی خـــــوشر نګه چی دکر نی ځمکی ددغــــه بی شمیره قبیلی دګو زاری له پــا ره کا فی نه دی نو له دی کبله دمالداری شمیر دټولو نیما یی ته رسیــــــږی،دوی په خپل کسب کی زیار کـــښی دی .دغرو نو په مینځ کی دپو ونده‌وتوری کیږدی او دپسو نوډیزی رمی تر ستر ګو کیږی . دوی اکثـــراء دخپلی قبیلی په مقبو ضه غرو نو لی څلور څلور یا پنځه پنځه کیږ دی په یوه ځای کی درو ی او پــــه ما لداری پا ندی خپله ګوزاره کوی‌خو ځینی وختو نه دوښود ډلږ وا لــی په سبب په خپله سیمه کی په یوه‌لوی کمپ کی چی له څلو یښتو نــه تر سلو کیږدیو پوری په کـــــــی‌شاملی وی سره یو ځای اودنـــو رو قبیلو سیموته ځی. ختیځ کاکـــړزیاتره د میږ و اووزو رمی او لـــږ شمیر دغوایانو ګلی هم ساتــــــی‌خو لوید یځ کا کړ او ښان هم‌ساتی. کاکړ ډیر زیات لاسی کارو نه نـه کوی خو تجارت شرم نه ګنی ،مګـر دوی دخپل ملك نه د باندی لږ تـــګ‌راتګ کوی .دپسو نو وړی په زیا ته اندا ز ه ، د دو ی له ملــــــــك‌نه کند هار ته ځی او همـــدا را ز ختیځی خوا ته هم راځی. کو شـــــی‌او لمڅی پخپله دغه خلك دپو ښاك له پاره له وړیو نه جوړوی او ځینی‌کا کړ په تیره بیا کوم چی په کوټه او سهیلی برخو کی اوسیږی دبولان‌په دری او نورو ځایو نو کی لــوټ او لارو هنه هم کوی. ددغه قبیلـــی‌خلك اینجه دتجارت له پاره دهــرات له غر نیو سیمو څخه په‌زیا تـــه اندازه راوړی.

## خویونه او عادتونه :

ددغې قبیلې خلك سپین زړي او ساده دي . دوی په مطلق ډول دعلم سره مینه نه لري ،* خو ځینــــې خلك قــرآن مجید لو لي. دوی دملا یا نو په خبر وباور لري او هغــــه منې خو هغوی ته خیرا تو نه او نور شیان لږ ورکوي ،دوی په مکارو اوغولونکو تعو یذ لیکونکو ملا یا نـــو او پیرا نو باندې زیاته عقیــــده لري که څه هم ددوی روز نـــه علمي اړخ نه لري خوسره لــــه دې هم په دوی کې درواغ ویل لږ دي. لوید یځ کا کړ سو له خوښو ونکې دي. په دوی کې غلا لار وهنه او لوټ کم دي، خوپه ختیځ او سهیل کـــې کا کړان ددغو عاد تو په خلاف اعمال ترسره کوي، سره له دې هم پـــه عمو مي ډول ددغه قبیلې دحالا تـو په برخه کې ددې خبرې لیکل ضروردي چې ددغې قبیلې عمومي کړه وړه ډیر خراب نه دي ،ښځې یې مخو نه نه پټوي او تقریباء هرمانښا م پـه تیره بیاد سپوږ مۍ په شپو دمانښام ډوډی تر خوړلو وروسته ښځـــې اونرپه بیلوډلو کې سره کیني اوداود خپلې سیمې په طرز سنـدر ې وایي. دوی دښې طبعې خاوندان دي .

## خواړه :

په دغه قبیله کې خواړه دهـــرې سیمې دغلو دانو په تولید پـــور ې اړه لري او عموماء اوړ بشې غنم او هغه ځمکې چې زیا تې اوبه لـــري هلته وریجې هم خوړل کیږي، دوی په ځمې کې زیاتره دپسو نو غوښې خوري او کرت هم په ډیره علا قمندی سره خوړل کیږي.

که څه هم په دوی کې د میلمـــــه پالنې شوق ډیر نشته خودقـــدروړ میلمنو ته دخپلو معمولي خوړو پـــه نسبت ښه خواړه ور کوي.

## پوښاك:

کا کړ اکثراء خپل پو ښاك دپسو نودسپینو وړیو نه جوړوي دوی او د دوی ښځې داوبوء صابون په واسطه له وړیو نه یو ډ بل لمڅې جوړوي او بیا وروسته له هغه نه د خپلې وضعـــې سره سم پو ښاك برا بر وي. ددوی

---

*مگر په کند هار کې چې کــو م کاکړ ان اوسي په هغو کې د علـــم برخه درنه ده. (رشاد)

دلمځی ډوله تو کر ښخه کو ښی مشهو ر دی چی د کمیس په ځای بی
دیوی پرا حه او اوږدی چیپی په شان اغو ندی اود ژمی په
موسوم کی دبړ ستنی کار هم ورځخه اخستل کیږی ویل کیږی چی ابدا لی
احمد شاه په خپله زمانه کی یوه وریخ دتوبی په غر ه کی په ښکار بو-
خت و. او هلته یې دکو څی پو شوکاکړو نه ددغی جامی دنوم پو ښتنه
وکړه او ویی ویل چی په دغه جا می با ندی باید درا حت جامی نوم
کیښو دل شی ددی له پاره چی.دغه یوه هوسا یی بخښو نکی
جامه ده ددغه وړینی جامی دزیا تاستعمال اودقبیلی دوګړود زیا توالی
په سبب په پښتنو کی یوه مشهوره مقو له ده:

که کاکړ وخامتا درلود له کزد روپی به خرڅیدله نه دند وانو غنده
خوړ له سیر دروپی به نشوه موندله چی څو مره هندوان تر کاری حواره
دی افغا نان (پښتانه) له هغه اندا زی نه دوی زیات سبری حواره
بولی؟ که څه هم په دی کی شك نشته چی د هغوی وړین پو ښاك زیات د ی
مګر سره له دی هم اکثراء لوید یځ کاکړ د صحرایی درانیو په شان
کالی اغوندی . دبوری دسیمی اوسیدو نکی کاکړ ذتو کر ښخه
جوړ شوی کمیسو نه اغو ندی اودخولی په ځای لو نګی په سروی او
ځینی یی له ملا ښخه لو نګی تړی ،همدا راز ختیځ کاکړ زیا تره دبوری
دسیمی دخلکو په ډول کالی اغوندی خود منځنی برحی اوسیدو نکی کا نړ
ډیر ساده دی،دوی لنډ پر تو ګ چی له زنګنو نه لږ ښکته وی اغو ندی
اود ګرمی په موسوم کی عمو ماً دملا نه پورته لغړ وی، خو په ژمی
کی دپسه دپوستکی ښخه جوړ شوی پوستینو نه یادلمځی نه جوړه شوی
کوڅی یعنی راحت جامه استعما لوی ځینی یی دکوڅی او اوږده پو ستین
نه د شلو ار کار هم اخلی. دمنځنی بر خی او سیدو نکی کاکړ دکړ نی
په نسبت په زیاته اندازه په ما لدا ری بو خت دی او دپسو نو
درمونه پر ته دغو او اوغوایانو ګلی هم ساتی او ځینی خلك دخیبر دخلکو
په شان سمڅی ژوروی او په هغو کی او سیږی دوی له ناپوهی سره
سره سو له خو ښو نکی او بی زیانه خلك دی.

**مذهب:**

دکاکړو تو له قبیله سنی مسلما نان دی ، خود مذهبی
فرا یضو او احکا مو نه ډیر با خبره نه دی اودپخو عمرو نو له خاو ند
انو نه پرته نور خلك لږ لمو نځ اداء کوی په دوی کی دو مره ښه
والی شته چی بی ځا یه تعصب نه لری .

## کورنی شخړی:

دکاکړو تر منځ کورنی شخړی‌لړی دی خود ار بی خیلو ځینـــــی څانگی پښپلو منځو کی دښمنی لری‌او اتمانخیل اودوړ هم جنـګ ا و جګړی کوی ، مگرد فسادو نود لړوالی‌سره سره دگوند لړی بازی او جنبو جوړ ول په کی شته دی.

## بهرنی دښمن:

بلوڅان دکاکړو مؤ روثی دښمنان‌دی اود دوی تر مینځ شخړی او وینی تو یول جاری وی او حتی یودبـــل‌دنامه سره هم دښمنان وی کـــه څه هم دوی دډیری مودی را پـــه دی خوا یود بل پر ملك با نـــدی تیری نه دی کړی . خو هره یـــوه‌قبیله دښمن ته دنقصان درسو لوله پاره تیاره ده. اوهغه مشهوره جګره‌چی‌د سنتیه کاکړو او بلو څو تر منځ دطهماس خان کاکړ په زما نه کـــی‌پیښه شوی وه دهغی نه له سلـــو کا لو څخه هم زیاته موده تیریږی‌او ددی جګړی بیان داسی دی چـــی دکاکړود یرغل په سبب بلو څـــان‌په قهر اود بلو چستان وا لی نصیر خان په مشری .شپږ زره بلوڅـــان‌دشال په سیمه کی‌د حملی له پاره راتول شول او کاکړو دوی خپـــل‌کلك دښمنان وبلل اود دوزخ یـــاد وژك‌سیمی ته لاړل دغه سیمه یوډېر ین میدان دی اود هغو غرو نـــو دپاسه چی ژوره وادی لوید یخـــه برخه وه او تگ راتگ پـــه نی مشکل دی او اکثراء شاوخوا ته یی‌ولاړ غر دی چی دتیریدو لاره په نی نشته ، بلو څا نو په دغه وخـــت‌کی دشال لخوا یر غل کول سخـــت وگڼل اود هغه وادی لخوا دیـــوه‌سخت او صعب العبور غره څخـــه تر تیر یدو ورو سته دیوی تنگـــی‌وادی پا سنی برخی ته لاړل چـــی دهغه ځایه څخه یوه آسانه لاره‌دکاکړو قرار گاه دوزخ یاد وژك تـــه تللی وه . طهماس خان چی دهغـــو کاکړو مشر و غلیم ته یی درا تلـــو موقع ور کړه تر څو پوری چـــــی‌ورو ستی‌سخت پیچو می ته راوسیدل او دلته کاک ړو دخپل زړور مشـــرطهماس خان په حکم پر بلو څا نـــو باندی یر غل وکړ او تقر یباء تـــول‌بلو څان یی دهغوی دمشر فا ضـــل خان سره یو ځای ووژل چی تر هغی‌مودی نه ورو سته بلو څا نـــو دکاکړو په سیمی با ندی کو مـــــه دیادولو وړحمله نه ده‌کړی .

دترین دقبیلی سره هم گا کړو یوځه دښمنی لرله اود ابدالی احمد شاه په وحت کی دکا کړو دبی اتفاقی په سبب تر ینود خپلو حملو له کبله دکلجو غی کاکړ تنګ کړل نو ځکه دهغوی مشر چی، په ورکس کی او سیده دخپلی قبیلی دبی اتفا قی په سبب مجبور شو ابدا لی احمد شاه ته عرض وکړی، کله چی پا چا په توبی کی په ښکار بو خت ونو هغه دپا چا په حضور کی په خپل سر باندی اور کیښود او په فر یا دونو یی پیل وکړ پاچا دهغه عرض واور یده او داسی مر سته یی ورسره وکړه چی د خپل پوځ یوتو لګی یی د تر ینود اصلاح کو لو له پاره ور سره ولیږ له اودسنتیه کا کړو یه نوم یی فرمان جاری کړ چی دخپل خان داحکا مو او اوامر واطا عت به کوی کله چی دسنتیه تو لی قبیلی بیا په خپلو منځو کی سره اتحاد وکړ نو په دی سبب تر ینود دوی سره دشخړو جر ئت ونکړ. او اوس دتر ینو سره زیا تی شخړی نه رامنځ ته کیږی اود پاتی نورو کا و نه یو قبیلو سره هم کومه بدی نه لری، خود کا کړو او وزیر و قبیلی کله کله په خپلو منځو کی شخړی او جګړی کوی .

د وزیر و قبیله دلوت له پاره په دوی یر غلو نه کوی او کله چی په دی پوه شی هغوی تعقیبو ی او جګړه ورسره کوی ، لکه چی پرو سږ کال دری سوه سپا ره او پلی وزیر دژوب دسیمی په ختیځو او سهیلی غرو نو کی دکا کړو درمود لو تو لوله پا ره را غلی وو . چی په دغه یر غل کی اتلس وزیر مړه او شپږ کا کړو وژل شول اود وزیر ومړی هما غلته پا ته شول .

## د قبیلی شمیر:

دکا کړو دقبیلی دشمیر په باب مختلف روا یتو نه موجود دی ځینی یی دو لس لکه ځینی یی اتلس لکه او ځینی یی نه لکه ښیی. ددا سی اختلا فو نو په سبب داګرانه ده چی ددوی صحیح اود ډا د ور شمیر ولیکل شی، خودکا کړودقبیلی شمیر غا لباً دپنځو لکو څخه لږ نه دی .دد غه قبیلی خلک که څه هم دساده ګی له کبله په یو ځی چارو نه پو هیږی خودمخا مخ جګړی له پاره ډیر ښه سپا هیان دی که څه هم دوی دټینګ عزم خاوندان نه دی .دوی بتی دا ره (پو لته یی) اوږده تو پک چی دوی پایی لری او چی ډیر لر ی

لګیږی استعما لوی. په دوی کښې ځینې ډیره ښه ښه ویښتو نګی دی، او دوسله والو کسا نو پـه پر تله یې تو پك لږ دی او فقط څلور مه برخه یې دتو پکو خاوندان دي، خو تقریباً ټول یې یوه توره له ځان سره لري، خو په خپل ملك کی دوی اکثراء بی وسلی ګرځی، ځر نګه چی په دوی کښی داسو نو دسا تلو رواج لږدی نو ځکه دسپرو شمیر یې هم زیا ت نه دی .

## لوبی :

هرډول مستیو او ساعت تیر یو ته لو به وایي، خو دلته د لو بی څخه مقصد یوه عجیبه او غیرمعمولي لوبه ده، په دی ډول چی اکثرا دشپې ډوډی تر خو ړلو ورو سته ځوانان اوپیغلی د کلیو نه بهرسره راټو لیږی او په لوړ اواز سـزه وایی پیر مړندی ژوندی دی او بیا هم په همدی ډول غږو نه کوی او ځا نو نه دلیو نیا نو غو ندی ړمستوی. راوی وا یی چی په دغه حالت کی ددغو ځوانانو، هلکا نو او نجو نو تر منځ به بد کارو نه هم سرته رسیدل خو دغه رواج چی دپیر تاریك د مر یدا نو له خواسر ته رسید. اوس مخ په ور کیدو دی . دتر ین په قبیله کی دغه لو به دتیسوی په نا مه مشهو ره وه .

## د ناغر قبیله :

د نسبی شجری دلیدلو څخه ښر کند یږی چی ددانیډ زوی ناغر قبیله په لو مړی سرکی په دووښا خـو ویشل شوی ده . چی وروسته ورنه خو ځانګی مینځ ته را غلی دی دخیږنو سره سره ددغه قبیلی په باب مفصل معلومات لاسته ندی راغلی نو ځکه ویل کیږی چی دا یوه مشهوره قبیله نه ده او لږ شمیر خلك یې چی دی هغه هم دکاکړ وسره مخلوط شوی دی . یوه پوه سړی ویلی دی چی دکاکړو قبیلی ددمړ ښاخ د ناغر سره یو ځای او سیږی .

## دپنی قبیله :

ددغه قبیلی دنسب شجره وړاندی ولیکل شوه چی له هغه څخه ددغه قبیلي دښا خو نو او ځا نګو ویښنی په ښه ډول ښکاری ددغه قبیلی ښا خو نه هم په کاکړو ورګډ یږی اودپنی قبیلی سیمه چی سیوی نو میږی دکا کړو په ملك کی شامله ده که یو مسافر دډاډ رله سیمی نه په لو مړی منزل دشمال خوا تـه ولاړ شی نو سیوی ته رسیږی . د

سیوی سیمه دیو ی گلکی خاور یښخه جوړ شوی میدان دی چی په ځینو ځایو نو کی یی غرنی ویالی را وو ځی چی دځمکو په خړو بو لو کی گټه ورنه اخستل کیږی، دسیو ی او داد رنیل دیر اعلی جنسیت لری چی په کندهار او ایران کی دملتان دنیل په نسبت زیات خریداران لری اود خیر پو رله نیل سره یی برابر بولی . ایسوټ او مو سی خیل دکاکړو دسیمی ختیځ خوا ته په یوه غره او صحرا کی او سیږی او مو سی خیلو له دوو څا نکو څخه یی د بلیل نسل زیات دی چی اکثریت یی دکر نی په چارو بو خت دی او لهر زی ددو یم ښاخ یعنی بلبل په نسبت کم دی او دغه ښاخ اکثره خلك په مالداری او دغوا یا نو په ساتلو بو خت دی. دلهون ښاخ دچخن او کندر په سیمو کی او سیږی چی دکا کړو دسیمی په لویدیځو برخو کی مو قعیت لری او ددوی داستو گنی له سیمی څخه ما لکه دځمکی له ښوری څخه تر لاسه کیږی .اودغه کسب خلك دا مالگه تو لوی او دا وښا نو او غوا یا نو په واسطه یی کندهار او دکا کړود مندو خیلو ملك او نورو شا خوا سیمو ته دغر ځلا وله پاره وړی او عمو ما یی دغلی سره مبادله کوی ، ځینی وختو نه چی دغلي بیه لوړه وی نو دغلی سره په یوه وزن ور کو ی او کله هم دوه چنده او ربشی ،او جوار ور با ندی اخلی.

دپښتنی ښاخ دخلکو دود او دستوردکاکړو په شان دی خو، امرزی چی ذاو ستر یا نی سیمی لوید یځ ته پراته دی دهغوی دود او دستور شیرا نیو ته دیر ور ته وا لی لری خو دهغوی په نسبت دښه سلوك خا وندان او کم آزاره خلك دی. دپښتنی ښاخ ټول شمیر چی په خپله پخوا نی سیمه کی پرا ته دی اتیاء زرو ته رسیږی .ددغې قبیلی دهغو ښا خو نو ذکر چی نورو ملکو نو ته مها جرت کړی دی ددغه فصل په ورو ستی برخه کی به راشی .

## د داوی قبیله :

ددغه قبیلی دخلکو شمیر هم لږ دی . دکا کړود قبیلی پو ر ی مربوط اودهغوی سره گډ شمیرل کیږی .دنسب له شجری څخه داسی څر گند یږی چی دداوی قبیلی دریم ښاخ چی خو بدی نو میږی دمخزن افغا نی په روا یت د داوی له اصلی نسب څخه نه دی بلکی هغه په دی دول ور سره یو ځای شوی چی ددانی زوی دا وی دخپل پلار دژوند

په وخت کی دآسا نو تجارت پــه منظور په سفر تللی و په دغــه سفر کی له ده سره یو ښکلــی ښځه چی د سید حسن په نامه یو زوی هم ورسره ؤ یو ځای شوه. داوی له هغی ښځی څخه دوطن پو ښتنه وکړه هغی ځواب ور کړ چی له خجند څخه راغلی یم او دا هلك دسید زوی دی او په هغه ملك کی قحطی را غلــی اوزه غواړم چی د خپلی مشری خورکره ملتانئ ته لاړه شم داوی هغوی ملتان ته ور سول هلته هغی دخپلــی خور په مشوره ددا وی سره نکــاح وکړه او سید حسن چی دهغی لـــه لومړی میړه څخه وپه غلا اولوندي پیل وکړ خو څه موده ورو ستـــه له دغه مذ مومو او خرا بو چارو څخه پښیمان او تو به یی وا یستله دداوی له دغی ښځی څخه څلور زامن دنیاته را غلل او څر نګه چی حسن خجنـدی ونو په پښتو کی دغی لهجی تغییــــروکړ او په اختصاری ډول افغا نـــان هغو ته پخپلی ور ځنی محاوره کـــی خو ندی وایی.

## دبا بی قبیـــله :

د غر غښت دنسل دنسب شجره تر هغه ځایه چی ممکنه وه ولیکــل شوه ، ددغه قبیلی حالات هم پــه کمه اندازه تر لاسه شوی دی کــه څه هم دداوی شمیر له دریو زروکسانو څخه زیات نه دی خو په افغا نا نـو (پښتنو) کی با بیان په کند هار اوقلات نصیر خان کی ډیر با همتـــه سودا ګران دی اود خپل ښه سلـوك او نیك چلند په ذریعه دښه ژو ند ښتنان اواکثراء شتمن دی،اوددغه ښاخ خلك دښی میړا نی اوښی رویی په سبب مشهو ر دی که نوروافغانانو (پښتنو) هم دلارو هنی او لوټ پـه ځای ددوی په شان دحلال مـــال تر لاسه کولو کو ښښ وکړی. نـو ددنیا یی آرامی اوښه ژوند نـــه پرته به داخرت له عذاب څخه هـم خلا صون وموهی.

د بابی قبیلی خوراك او پو ښا ك اکثرامیرانه او ددرانیانو په څیردی دبابی قبیلی او ابدا لی درا نیا نـو تر منځ یوه پخوا نی دښمنی موجوده وه او ددغه دښمنی سبب داو چـــی دمرادو په نوم یوه ابدا لی ښځـــه دبابی قبیلی دخان لخواد هغــــی دمور اوپلار له ر ضانه پرته تښتوی شوی وه، ویل کیږی په لو مــــړی جګړه کـــی څرنګه چـــی مراد و دابدالیانو په منځ کی وه او پـــه شپه کی یی دابدا لیا نو تیر کشان په اوبو کی واچول نو ددغه دو کـــی په اثر ابدا لیا نو ماته وخـوړه او مراد وخپل مراد ته ورسیده لکـــه څنګه چی دغه پیښه په پښتو ژبه ، منظوم شوی ده، خو اوس دد وی تر مینځ کومه دښمنی نشته.

## دمندو ځیلو قبیله :

دنسب له شجری شخه څر گندیږی مندو چی د هغه له نسل شخه دغه قبیله منځ ته را غلی ده دغـــرغښت دریم ځوی و، په عوا مو کـــی تر اوسه هم دغه قبیله په منـــدوخیلو مشهور ه ده .ددغی قبیلـــی دوړو ځا نگو دنسب شجره تر لاسه نشوه .

مندو خیل دږوب دواد ی په دواړوغاړو کی ژوند کوی ږوب دهند وباغ له غره نه پیل شمال شرق خوا تـــه غز ید لی دی ترڅو دسر ما غی تـــر ځنگ گومل سره یو ځای او جنوب خوا ته یی مخه کړی ده اوداگو مـــل رود چی له ختیځ شخه راو ځــــی اودږوب رود چی په دغه تنګه واد ی کی جاری دی نواوبه یی اکثر ا لـــه ځان سره نور مواد هم لری چـــی دکرنی او زرا عت له پاره ډیـــر ی گټور ی دی. کله چی دغه ویا لـــه دږوب له سر شخه په لږه فا صلـــه بنکته راځی نو یوی ښی میدا نـــی سیمی ته رسیږی چی هلته غنـــم ،جوار، وریجی، او نور ډول ډول غله کرل کیږی ددغی ویالی په دواړوغاړودمندو خیلو کلی پرا ته دی .

همدا راز دغه میدا نی سیمـــه ډیر ښه ځر ځایو نه لری او درموږ څرولو له پا ره هم ورنه گټه اخستل کیږی او په پور تنی برخه کی یـــی دپوو نده وو ډیری کیږ دی لیـــدل کیږی. دږوب وادی شمالی حدد سیو ناداغ دجنو بی حد له غر نیو سیموسره پوله لری اود گومل دری جنوبی غرته هغه ځای چی دږوب بوری اوسلیمان غره په منځ کی پروت دی د بابړو او هر ییپال دښاخو نو ځمکـــی دی او په ختیځه او سهیلی برخه کی یوه غیر آباده سیمه ده چی داسیو ټاوموسی خیلو ښاخو نه خپلی ر مـــی پکی پیا یی او ختیځی خوا تـــــه مخامخ دحسن خیلو او ابا خیلـــــو شیرا نیو غردی .

دږوب ځمکه حاصل خیزه او اکثره دنهر ونو په ذریعه خړو بیـــږی ،د مند وخیلو دود دستور او کسنبو نـــه دهغو کاکړ وپه شان دی چی ددو ی په مینځ کی او سیږی ، دهغو ی په شان سپین زړی ، ساده او بـــی آزاره خلك دی ، دوی هم په کرنـــه او هم دمالدار ی په چارو بو خـــت دی .

**دهغو ښاخو نو ذکر چې دکاکړواو نورو غر ځبنتي قبیلو نه نورو ملکو ته لاړ دي:**

له دغه قبیلې نه ځینې ځلك له خپل پخوا نی ټاټو بی ځخه دځمکې د تنګوالې او نورو علتو نوله کبله نورو ملکو نوته لیږدید لي او هلته میشته شوي دي چې دهغوی له جملې نه به دلته دهغو ښاخونو بیان و شي ګوم چې مؤلف ته څرګند دي.

## د تیمنی ښاخ :

داد تعجب خبره ده چې ځینې خلك تیمني د چهار ایما قو ځلور م ښاخ بولي، خو د کاکړ و د حال راوی وایي چې تیمن دکاکړ زوی و چې دهغه له نسل څخه دتیمني ښاخ منځ ته راغلی دی خو هغه دومره معلو مات نه لري چې ولې او کله دغه خلك په خپل او سني ملك کې میشته شوي دي ، دغه خلك دسیاه بند غر اود غور ملك په شاو خوا کې دنورو ایما قو سره یو ځای او سیږي .

تیمني په دوو څا نګو و یشل کیږي لومړ ی قبچاق دویم در زی ، که څه هم دتیمني قبیلې له هیڅ یوه کس سره مؤلف ملاقات و نکړ چې له هغه څخه مې ددغه روایت په باب پو ښتنه کړې وای مګر دکابل مرحوم پاچا امیر دوست محمد خان دزوی دشفا هي روا یت څخه څر ګند یږي چې تیمني هم خپل ځا نو نه د کا کړ له نسل څخه بو لي ،که دغه روا یت صحیح وي نودکاکړو قبیلې یو لوی ښاخ باید دغور په شاو خوادسیاه بند غره کې میشته وي.

دتیمني له دوو ښاخو نوڅخه قبچاق اصل ایماق اودر زی افغانان (پښتا نه )ښکاري . تیمنیا ن او ایما ق ټول سني مذ هبه دي او ددوی دود او دستور دنورو چار ایما قو په شان دي .

## دګړو ن قبیله

دا څرګنده خبره ده چې دغه خلك خپل نسب دکاکړو یو ښاخ بو لي، څرنګه چې دغر غښت داولادي کاکړ، ودنسب شجره او مفصل حال وړا ندي ولیکل شو ،سره له ډیرکوښښ دا خبره په پوره ډول څرګنده نه شوه چې دغه قبیله کله او له کوم ځایه را غلې او په او سني ملك کې میشته شوي ده.

# د ګدون د نسب شجره



ددغه قبیلی یو سپین پیری ئ اوتقه سری روا یت کوی چی دسا ـ هنگ ، ابن پنی په نوم یوه‌سړی‌دعلی خیل او موسی خیل نه پر تـــه دوه نور زامن هم در لودل چی دوی‌دواړه ددښمنی او مر ک ژو بلی‌له امله له خپلی قبیلی څخه بیل‌شول،څه موده په سپین غر کی او سیدل او بیا له هغه ځایه هزاره اوچهچه ته راغلل او اولاده یی هلته ابـاده شوه، که دا روا یت صحیح وی نوغالبا به کدو ن دهغو ی له نسـل نه وی او څنگه چی بیتنی او کاکړ اکثراً خلك یو بولی له دی املـــه کدون هم دکاکړ و یو ښاخ یو لـــی‌دکدون قبیله دنسب شجر ی پـــه لومړی سر کی دوه ښاخو نه سالار او منصور مشهور دی، له هغو ی نه خو نوری څانگی مینځ ته را غلـــی‌چی پخپل وار سره دنسب په شجره کی لیدل کیږی.

اکثر کدون خصوصاً سالار دهزا ره‌غرونو ددو ړ په نامه و یا لی پـه دواړ وغاړو کـــی د اورش ترسیمی‌پوری میشته دی.دهزاره سیمی‌دکدونو ښکتنی برخه ډیر ښه، شنه او حاصل‌خیزه سیمه ده چی د جها نگیـــرد سلطنت په دورا ن کی کله چـــی‌ددلا زاك قبیله لو ټ او تباه شوه نو دغه سیمه په تدر یج ســـره‌ددو ی لاس ته ور غله خو دلتـه هغه کدون په زیاته اندازه دذکـروړ دی چی دابا سین په لوید یځ او دمها بن غره په سهیلی بر خو کـی‌میشته دی . مها بن‌یوه لر غو نـی هندی کلمه ده په‌سن سنکریت کـی‌مها لوی ته اوبن ځنگله ته وا یـــی یعنی لوی ځنگل اوددی غره دتسمیی‌وجه بیخی صحیح ده. د کـــدو ن دقبیلی دواړه ښا خو نه یعنـــــی‌سالار او منصور هدی غره له څـو کی نه تر ښکتنیو سهیلی برخو پوری‌قبضه ، لری . که څه هم دد وی‌د کو چنیو باندو شمیر تقریباً شلـــوته رسیږی خو در ی لوی کلی‌لری په کندپ کی تقریباً له شپــــږوسو و څخه ز یا ت کـــو ر ونه‌دی چی د دغه ځای د ســـا لارښاخ مشهور او لوی کلـــی دی اود اتو زیو تقر یباً تو لی څانگی په کی‌میشته دی ، دغه ښاخ په‌دوو کلیو یعنی گند پ او دالو ړی با نـــدی‌قبضه لری . چی او س میربـــاز عیسی خیل ، جها نگیر علیشیرخیل،نواب قلندر خیل، خانی محمد خیل او طوطه علی خیل ددغه ځای ملکان ا ومشران دی .

د سالار د بناغ دمت خـــواز ی ځانګه په با بیتی نومی ځای کـــی چی انګر یزی سر کار په سیمه کی موقعیت لری او سپری ، اشر ف او افضل چی دار سله خان زیده پـه زمانه کی لوی غله و اوس ملکـان دی .

د سالار بناغ د سلیما ن زیـوځانګه په پاده ، شنی ، کولا کراو پولا ا چپ لی چی واړه کلـــی اودمها بن په سیمه کی واقـــع دی قبضه لری .

د منصور د بناغ لوی کلـــی بیسك دی او تقر یباً دری ســـــوه کورو نه لری . ددغه بناغ څخــه دالدوز ی او دو لـــه زی ځانګی په بیسك کی میشته دی د بیســـك مشهور ملك او سپین ږیر ی عیسی خان و لی خیل دی چـــی پـــه جر ګو او نو ر و معـــا ملو کـــی خلك هغه ته لوړی وایی ها شـــم علی قاسم خیل ، قابل خان شا هی خیل ، میر خان الله داد خیل ، غلام شاه او صحبت ددغه ځا نګی ملکا ن دی او فتح خان دو لــــــــه ز ی هم یو معتبر ملك دی، خدر زی پـــه ملکا ګړ ی کی اوسیږی چی ز نګی اوهو س دد ی ځانګی ملکان دی.دګندپ او بیسك اکثره دکرنی وړ ځمکـــی دانګر یزی سر کار دمیدان دسیمـــی په دننه کی مو قعیت لری او لـــه همـــد ی کبله حکـــو مت پـــه معقو له تو ګه دهغوی دفسا دو نومخنیوی کوی . ګند پ ، بیسك او ملکا ګری دغره په لمن کی د میدان دعلا قی تر څنګ مو قعیت لری چی دغه ځا یونه ماپه خپلو ستر ګـــو لیدلی دی . ددغو کلیو ځمکه اکثراً للمه او نا قصه ده خو په هـــره اندا زه باندی چی دغرو نو په دننـــه کی مو قعیت لری هغه اکثراً شنی، آبی او حاصل خیزه دی .

په مها بن کی غنم، جوار او و ریجی ډیر ی پیدا کیږی ددغه قبیلـــی زیاتره خلك دکر نی او ما لـــدار ی په چارو بو خت دی دمها بن میښنـــی مشهوری او ښی دی. ژیړ غوړی اودو دانیو لر کی له غرو نونه راوړل کیږی او دانګر یز ی سر کارداتمان له سیمی څخه ښښه ، توکراومالکه اخلی او دغو سیمو ته وړ ل کیږی هغه مجرما نچی له سر کار ی سیمو لکه دراو لپنډی ضلع او نورو ځایو نو څخه و تښتی اکثره ګنـــد پ او بسك ته پناه وړی چی دد و ی په لاربښو ونه ددغه ځای خلك هم دغلاو نورو جرمونو په نیت دســـر کار ملك ته راځی .

که څه هم دمها بن گدو ږدخپلی قبیلی دو سلة والو کسانو شمیر

دولس زره تنه ښیي خود خیبر ښوخه، داسی څر گند یږی چی دنوموړی قبیلی دوسله، والو کسانو شمیـــرپنځو زرو تنو، ته اود او پکو شمیر

یی ددغه اندازی نیمایی ته رسیږی‌خو توره دهر یوه سړی سره وی که څه هم په عمومی ډول دد غه، قبیلی‌خلك جنګیا لی نه دی خو پـه دوی

کی ځینی ښه سپاهیان هم مـــونـــد ل کیــږ ی . دد و ی د توپکو کولی درفل توپکونه پرتـه ویږ لیری نه لګیږی .

## غور غښتـــی :

دوی درا و لپندی د ضلعی پـه چهچه او هم دهزاره په سیمو کی میشته دی ، لکه چی په چهچه کی‌یوه لو یه سیمه دغور غښت پـه نامه یاد یږی .

دغور غښتی دسیمی او سیـــدونکی هم ځا نو نه کاکړ بو لی. په دی کی شك نشته، چی هغوی دغورغښت (غر غښت ) لـه اولا دی اود

کاکړ ود پنی له ښاخ څخه دی .دهزاره په ضلع کی‌یوه سیمه د پنی په نا مه او ددکن په سیمه کی هم‌په‌دغه نامه یوه سیمه شته خـو دا څرگنده نه ده چی دوی کـله او پرڅه علت دغه ځای ته راغـلی او هلته میشته شوی دی . په دکن‌کی‌ددغی قبیلی تقر یباً زرتنه ژو نـد کـو ی .

## هندو ستا نی کاکړ:

څر نگه‌چی وراندی و لیکل شول‌چی په افغا نانو (ښپښتنو) کی بـه داسی یوه لویه قبیله یا ښا خ‌نه وی چی دهغی اولاده په هندو ستان

کی ونه لیدل شی خو په هغوی کی‌ځینی داسی خلك هم شته چی لـه خپلی ورا ند ینی قبیلی داو سیدلوله ځای څخه خبر نه دی اود ور ـ

ورگلوی اړ یکی خو په کی پـــه مطلق ډول نشته په هند ی ډولد کاکړ و اکثر ډلی دهندو ستا ن په‌ځینو ضلعو کی میشته اود ځمکـو

خاو ندان دی لکه چی در هتـــك‌دضلعی په کو ها نه نومی ځـــای کی د تغرق ابن کاکړاولادی د علی‌خیلو له ښاخ څخه دابو سعید زی

څانگه او نور کاکړ ابـــاد دی اوشمیر یی تقریباً دریو زرو تنو تـــه رسیږی .

داسی روایت دی چی دسلطان ابراهیم لودی دوا کمتی پـه دوران کی عبدالمالی ابو سعید زی ئاکړ دخپلو دریوورو نو او خو تنو نورو سره له خپل ملك څخه ولاړ او په کو هانه کی میشته شو. د سلطان ابراهیم تر مړینی وروسته عبدالمالی بیر ته خپل اصلی استو گنځی یعنی بوری ته راستون شو خـو دهغه ورو ر دنورو کاکړو سره هلته پاتی شو چی تر اوسه هم هلتـه اوسیږی . دبلندشهر په ضلع کی د پښتنو شپږ بوی سیمی شته چـې دهغوی له جملی څخه دولس ځایونه مشهور دی او په هغو ځایو نو کـی هم پښتا نه کاکړ او سیږی ، په تیره بیا ددوی زیات شمیر د خورجـه په سیمه کی ژو ند کوی ، په غالب گومان سره په دبلند شهر په ضلع کی ددوی شمیر له څلـورو زرو کسانو نه لږ نه وی . دد وی نـه پر ته نور افغا نان (پښتانه) هـم هلته ډیر دی او داسی اور یـدل کیږی چی په بنگال او دکن کی هـم دکاکړ و د قبیلی خو کور نی شته او په نورو ضلعو کی هم کاکړ لید ل کیږی . دهند و ستا نی کا کړودوجودفزیکی جوړ ښت ، دود او دستور په حیث د ول دافغا نستا ن له کاکـړو سره ور ته والی نه لری او په پښتو ژبـه نه پو هیږی .

## دقیس عبدالرشید د دریم زوی شیخ بیټ د نسب شجره




* د بیټ اولاده بیټنی هم بولی

# د کجین ابن شیخ بیټ د نسب شجره



# دریم فصل

## دقیس عبدالرشید دریم زوی

## شیخ بیټ یا بیټن د نسب شجره

### دبیټنی قبیلی حالات:

دا څر ګند ، خبره ده چی شیــخ بیټ ( بیټن) له خپلو دوو ورو نو څه په عمر کو چنی و ، خود خپـــل نیك خوی زهد او تقوی له کبلــــه یی ډیر شهرت وموند . ده پــــه ور کتو ب کی تر عرا ق او عر بـو پوری سفرو نه و کړل او د ډیـــرو لویو خلکو سره یی لید نی کتنــــی وکړی او د هغو ی له صحبت نه یی فیض وموند . دی د سلیما ن پـــه غرونو کی میشته وخو تر مړ ینـــی ورو سته د غز نی په شاو خوا کی ښخ شو .

د شیخ بیټ ( بیټ نیکه ) نسـل یا اولادی ته په مجمـــو عی ډول بیټنی وایی چی د تسمیی وجه یـــی دده ی دلو ی نیکه بیټن څخه منځ ته راغلی ده. څر نګه چی د نسب په شجره کی لیکل شوی شیخ بیټنی دری نار ینه اولادو نه در لود ل، چـــی اسمعیل ، ور سپون او کجین نو ــ میدل او دوړ سپو ن نوم دمخـــزن افغا نی کاتب او نورو په غلطـــی اشپو ن لیکلی دی ، ددغو دریـــو زامنو نه پر ته نو موړی یوه لـــور هم در لود ، چی بی بی متو نومیده او شاه حسین غور ی ته یی په نکاح ورکړی وه چی ذکر به یی په راتلونکی باب کی راشی .

دبیتنی نیکه له دریو زامنو څه مشربی چی اسمعیل نو میده دبیتنی نیکه مشر وروړ سړبن تبرکا له ځانسره واخیست او پاتی دوه اولاده یی دبیتنی په نامه سره مشهور دی.

په تیرو زمانو کی دغه قبیلی خلك دسلیما ن غره په لوید یځه خواکی اوسید ل او د بهلو لد زوی سکندر لودی دوا کمنی په دوره کی دغلجی قبیلی د غلبی له امله لـه خپل پخوانی تاتو بی څخه وکوچیدل او د سلیمان غره ختیځی بر خی ته دکومل دری ته راغلل او هلته میشته شول . دد غه قبیلی اکثره خلـــك دسو داگر ی او نورو دو لتی چارود موندلو له پاره هند ته راغلل له دی کبله چی هغه وخت په هند کـــی افغا نانو (پښتنو) یا چهی کو له نو ځکه هلته افغا نان ( پښتا نـــه ) ډیر قدرت ښبتنان و وله همد ی کبله د بیتنی قبیلی ځینو کسا نـــو هم د لویو رتبو خاو ندان شول. چی تر هغه وروسته فتح خان بیتنی د بنگال دعلاقی د کور سیمی خـــودمختاره او مشهورصوبد ار یاگورنرو چی ورو سته دهغه تخت و تاج پـه چل سره دکر لا نی قبیلی لاس ته ورغی او په همدی ډول ددی قبیلـــی څو تنه نور هم د پښتنو پاچاپا نـــو په دوره کی امیران و، هغه ډله چی دگو مل په دره کی اوسیده هغه چی په شمیر کی یی زیاتوالی را غـــی نو دخپل ملك په لو یو لو یواودنورو سیمو په نیو لو یی پیل وکړ تـــر هغی، چی دوه توی ته نـــی کا نی گورم ته نږدی موقعیت لـــرئ ،ورسید ل او دلته دوزیرو او مسعودو سره مخامخ شول ا وپه هغه جگړه کی چی دد وی ترمینځ پیښه شوه ماتی یی وخوړه او بیر ته تك ته مجبـورشول او دکر نګی له کلا څخه هـم بنکته راغلل او س نو مو ړی کلادمسعود و قبیلی د بهلو ل زیو بناغ دشنکی څانکی په لاس کی ده.

کله چې وزیر واو مسعـــــودودمقبو ضه ملك له لیولو پر ګیـــنه

دهغوی په ملك باندی هم تیـــر ی‌پیل کړ نو په دغه وخت کی ځینـــی
بیتنی خلك له خپلو کورو نو شخه وو تل او دربدر د خپلو خپلوا نـــو
په سیمه او امید دهندو ستا نخواته ولاړ ل او چیر ته چی دو ی ته
پناه ور کړل شوه هلته میشته شول‌مګر د ګجین داو لادی زیاته بر خه
او دهغی نه دوړ سپو ن او لاده دسلیمان غره په ختیځه بر خه کـی
میشته دی . ویل کیږی چی په هغه وخت کی چی د کبر غر چی دبنـــو
جنوب اود ټانك شما ل‌ته پروت دی‌او دور ګا ړابناخ دوړ سپوڼ بیتنـــو
په قبضه کی و په نو موړی ښـــاخ‌باندی دګر بز قبیلی پر غل وکړاو
بی شمیره ور ګاړ ی یی وو ژل اوددو ی ملك یی ونیوه او داســـی
روا یت هم شته چـی دهغی‌مظلو می‌فــــر قی په منځ کی‌یوه امید واره
(حامله )ښځه هم وه چی ژو نـــدی‌پاتی شوه او د لکی په نوم یوه ځای
ته راغله او په دغه ځای کی دی‌ته ځای دوه غبر ګو نی زا من‌ور کړل
چی په یوه باندی یی دادم او بـــل‌باندی یی معرو ف نوم کیښـــود او
کله چی دغه یتیما ن دبلو غ‌مرحلی‌ته ورسیدل نو دخپلی مور نه یــی
بتنی قبیلی ذپا تی‌خلکو حال ترلاسه کړ او په ګومل دری کی دګجین او
وړسپو ن او لادی ته ور غلل اوله هغوی نه یی مرسته وغو ښتله
او هغوی یی له خپلی مظلو مـــــی‌نه‌خبر کړل او ور ته وویی ویل که
چیری تاسی زموږ پخوا نی ملـــــك‌ونیوه نو دوی حصی یی ستاســـو او
دریمه برخه یی موږ ته را کـــړ ی‌دګجین او لادی دغه شرط ومنـــه او
هغه خواته یی لښکر ی و لیږلـــی‌اوپه هغه جګړه کی چی ددو ی تر
مینځ پیښه شوه کیجنو ته بر ی‌وورپه برخه شو او ګربزو تښتیدل اود
هغوی داو سنی ملك لو یدیځ خواته ولاړل . تر بر یالیتو پورو سته‌یی
مفتو حه سیمه د پخوا نی شرط لـــه مخی په دریو برخو وو یشله چـی
دوی برخی دګجین او لادی ته اوپاتی‌دریمه برخه یی اصلی خاو ندانوته
ور کړل شوه او دد غه ویش پـــه مطابق ددغی سیمی دڅلرو وا کـــی
تر سره کیدی . خو اوس دکبرسیمی‌اکثره ځمکی د ګجین او لاد ی‌د نانی
ښاخ دبیخی او ګرو ی په ذر یعـــه نیو لی دی .

## د زراعتي ځمکو قیمت :

په هغه ملك کې چې دوی په کې اوسیږي څمو صاً دکبر په سیمه کې دا یې ځمکو دلږ والـــی او داوسیدو نکو دزیاتوا لي له امله ددغو

ځمکو بیه ډیره لوړه ده تر هغه ځایه چې یوه بخره ځمکه چې تقر یباً دری کناله او شلور مر له کیږ ی* په متوسط ډول په سل روپی حر -

خیږي ، دد وی ترمینځ د ځمکـــی حساب دبخر ی په ذریعه کیږی .یوه بخره شلور کند که اویو کنـــد ك شلور پاوی . دوی په خپلی طریقی

یوه رسی چې شو لاسه اوږده وی دهغی له مخی دبخر ی او کند نو نو شمیر نعینو ی او ددوی مقـــیا س، یوه پا شلور مرلی کیږی . نهـــری ځمکه ډیره کمه ده او دللمی یـــــا بارا نی ځمکی حر شلا واو اخستنه ارزانه او لږ ده .

## اوسنی استو گنځی :

بیتنی پر ته له هغه چې پــــه هندو ستان او نورو خـــوړ و ورو سیمو کی میشته دي د دوی زیات شمیر په سر حدکی او سیـــمې ی هغوی آباد ی دګبر غره شمال او دکویی دری له سهیل څخه پیل کیږی دسور غره له لمنی څخه د ټا ك تردری پوری دملا زیو له سیمی سه، پور ته علا قو پور ی امتداد لری .دګبر غره نه پر ته سور غره زیاته اندازه گرم دی چې هلته شینوا لـــی لږ لیدل کیږی.

داخلك په ډیرو وړو څپرو کې چې له یو بل څخه په لږه فاصله کـــی جوړ وی ژوند کوی .ددوی لو یدیځ ته دوزیرو او مسعود و غـــر او ختیځ ته په اوارو سیمو کی دمروت قبیله او سیږی . دو ی له مسعودو سره پخوانی د ښمنی لری، دمرو لو قبیلی سره او بې دوی په سو لـــه کی ژو ند کوی او همرو لو قبیلی دموسی خیلو او نو تا خیلو دمینځ ....

اکثره ځمکی دغه خلك کری او دغرو په لمنو او اوارو سیمو کـــی ددو ی یوه اندازه ځمکه دسر کار دسرحد په دننی برخه کی پر ته ده له دی

---

* شل مرله یو کنال کیـــــږی دمځکی دکچ کولو له پاره د غـــه مقیاسو نه په پنجا ب کی باب دی. شلور کنا له یوه بیگه مځکه کیږی، بیگهه دمځکی دکچ کولو له پـــاره هندی مقیاس دی .

(پوښتنه ۲)

کبله دانگر یز ی سر کار سره یو اندازه اړیکی لری ، خوتر او سه هم دمرو تو د سیمی فرار ی مجر مان ددو ی غر نیو سیمو ته پناه وروړی دغه قبیله دډیری جګړه مار ی عادت نه لری خود خپل سخت دښمن یعنی دمسعود و او وزیرو د مو جود یت په سبب ددو ی هر یو بالغ غړ ی وسله ساتی . دوی اوږده چقمقی توپك ساتی . دو ی اوږده حقیقی توپك سا تی او کله چی خ‍ـــوك وغواړی پر دوی یر غل و کړ ی نو ډیر ژر دجګړی له پاره تیاریږی .

## ددغه قبیلی شمیر :

دبیټنی د نسل زیا توا لی ددهٔ نورو دوو ور ږو داولادی په نسبت خوړا لږ دی . ددغه قبیلی دوسله والو کسانو شمیر په سر حد کی تر دریو زرو نه زیا ت نه دی او دوی هم په متفر ق ډول د ټا ك له در ی نه نیولی دګبر غره تر قطبی برخو پوری خواره شوی دی .

ددغه قبیلی د شمیر دلږ وا لی په سبب دوی دوخت د حاکمانو سره دمقا بلی نه ځانو نه بچ او کو ښه کړی دی . په عمو می ډول تر اوسه ددوی چلن دانګر یز ی سر کار په مقابل کی بدنه دی خو ډیر ښه هم نه دی .

## د ملکانو حالت :

هره یوه ښانکه ځانته بیل ملکان لری او دهغودله نو م نه پر تــه کوم امتیاز و نه نه لری دملـــك وظیفه په عمومی ډول داده چی کله کومه شخړه را مینځ ته اویا کو می مشور ی ته ضرور ت پیښی شی نود خپلی مربو طی ښانکی خلك راټولوی او ټاکل شوی امر ، ور بانـــــدی تحمیلوی . همدا راز دو ی دقبیلی ترمینځ شخړی ، دجر گی او سو لی له لاری حل کوی بیا الفشاه تاج بیګ خیل ، دراز باکل خیل او چندن پای خیل دبو باد ښاخ ملـــکان دی . همدا راز میسرا ، میر ا عظم ، شاد مانی او با تور دبو بك دښاخ ملکان دی . لا جمیر او فتح خان دور کارړد ښاخ او ایندز اسپ ( اصف) اوشاه مدو دتتا په نسل کی او حیدر ، خاترم لو غیبی د شخی فر قی معتبر ملکان دی .

## دمغو ښاخونو بیان چې د بیټني قبیلي د نسب په شجره کې راغلي خو د مغو د اصلیت په باب نور روایتونه هم موجود دي

۱) دا څر ګنده خبره ده چـــې د کو تي خا نګه په اصل کې سیـــن دي او دبیټ لمسی ابراهیـــم بـــن ورسپون یو سید زاده ماشوم پـــه زوی توب ونیوه او هغه یې لـــوی کړ چې دغه ماشوم کو تي نو میده چې د کو تي ښاخ هم دده پـــه ، نوم نو مول شوی دی او هغه دابراهیم داصلي زوی دوتانی څخه نیمـــه ، برخه واخیسته نو ځکه دبیټني په قبیلي کي وشمیرل شو . اوس هـــم دده او لادې نه سیدان وا یی اود ښو په ضلع کي یوه سیمه دکو تـــي سا دات په نامه بلل کیږی چـــې هلته دده نسل اوسیږی اود دوی خیری اود وجود نور فز یکي جوړ ښـــت دبیټني له نورو ښاخو نو سره توپیر لری .

**۲) دتتا ، دناو کتا او لاده :**

دوی چې دکبین دنسل څخـــه شمیرل کیږی دمغو په باب یو بـــل داسی روا یت هم موجود دی چـــې در ی وار مد کبین له کورنی څخه وو خو ا وس دبیټني په قبیله کي داسی ګډ شو ی دی چي ددوی تر مینـــځ هیڅ تو پیر نشته ددوی بر خـــی خیری او دوجود فزیکي جوړښتو نه، سره یو دی بلکي دتتا اودنا نســـل دشمیر دزیا توا لی په سبب دتو لی بیټني قبیلی مخکښ دی.

**۳) درتن زی ځانګه :**

دوی په اصل کي بیټني نه بلـــل کیږی نور بیټني عقیده لری چـــې دبو بك، زوی علي یو کو چني ماشوم چي نسب یی ښکاره نه وو مونـــد او رتن نوم یی ور باندی کیښود اوهغه نسل چي دده له ښېنته منـــځ ته راغلي درتن زی پنا مه بلل کیږی.

# دریم باب

## دمتی قبیلی بیان چی غلجی، لودی او سروانی یې کی داخی دوی مجموعاً دمتی په نامه بلل کیږی

وړاندی تر تولو باید ووییل شی چی د مستی زی دنسب دسلسلی په باب ځینی اختلافونه موجوددی. په دغو روایتو نوکی چی کوم روایت صحیح ښکاری دهغه لیکل ضرور دی. ویل کیږی چی د خلیفه ولید ابن عبدالملک بن مروان دخلافت په وخت کی حجاج بن یوسف ثقفی دیوه زړه ور لښکر په مشری دغور سیمی دنیولو له پاره وټاکل شو او کله چی دغه پوځ دغور سیمی ته ورسیده او بریالیتوب یی تر لاسه کړ نو په هغه سیمه کی لوی اختلافونه منځ ته راغلل په هغه وخت کی دغورد امیرزاده گانو څخه یو ځوان چی شاه حسین نومیده دزمانی دوقایعو په وجه دخپل وطن نه جلا او شیخ بتن ابن قیس عبدالرشید ته ورغی په مجمع الانساب کی د شاه حسین دنسب شجره په دی دول لیکل شوی ده:

شاه حسین بن شاه معز الدین بن جمال الدین حسینی بن بهرام بن شنسب چی دغور دواکمنانو څخه و اود امیر المؤمنین حضرت علی المرتضی (رض) دخلافت په دوره کی یی ایمان راوړ اودغورستان دحکومت فرمان یی له نوموړی خلیفه څخه تر لاسه کړ. بهرام ابن شنسب دوه زامن لرل چی مشرزوی یی شاه جلال الدین نومیده چی دهغه له نسل څخه سلطان معزالدین چی د سلطان شهاب الدین غوری په لقب سره هم بلل کیږی اود کلکی ارادی خاوند وتیر شوی دی. ددوی دکورنی حالات په لومړی برخه کی، راغلی دی. دبهرام دویم زوی جمال الدین نومیده چی دشاه حسین نیکه و. مورخ دغوری کورنی دطرس پاچا ضحاک تازی او لاده گنی چی هغه دایران بل پاچا جمشید وژلی او سلطنت یی ور څخه تر لاسه کړی و.

دبهرام ته ورا ندی چی دد غنی گور نی دنسب شجره دضحاك تازی او حضرت نوح پیغمبر ترو ختـه پوری په مخزن افغانی کی راغلی. هغه دتار یخ فرشته له روا یت څخه ډیر تو پیر لری. او لـه دی کبله چی مؤلف ته دنسب دشجری صحیح ثبوت او اطمینان نه و حاصل شوی نو ځکه دا غوره وګڼل شوه چی ونه لیکل شی.

دمخزن افغانی لیکوال دبهرام نه ترضحاکه پوری (۳۹) پښته شمیرلی اود ضحاك نه پورته په خلورم پښت کی حضرت نوح ته یی دنسب شجره ور رسولی لی، لنډ مدا کله چی شاه حسین دغربت په حال کی شیخ بتن ته ورغی نو غالب گمان دا دی چی په هغه وخت کی به شیخ بتن ډیر سپین ږیری او ضعیف شوی و، نـو په دغه وخت کی شیخ بتن دیـوه مهربانه پلار په شان شاه حسین ته په خپل کور کی ځای ورکړ اود بیت زامنو ور سپورن او کچین هـم شاه حسین ته دخپل ورور په شان کتل ان تر دی چی دکور تولی چاری به یی دشاه حسین په سلا او مشوره ترسره کولی او ددغه اعتبار پـه سبب اود ځوانی دوران دغو ښتنی له امله دشاه حسین سره د شیخ بتن لور متو مینه پیدا شوه تر څو چی ددوی تر مینځ دمور او پـلار تر رضاء پر ته دوصلت مزی تینګ شول تر څه مودی وروسته، پـه متو کی دحمل (امیند واری) اثـار را ښکاره شول ، او کله چی دمتـو مور په دغه حال خبره شوه خپلـه لور یی ملامته کړه مګر هغه څـه چی باید نه وای تر سره شوی ،هغه شوی وو او پرته له دی بله لاره نه وه چی دمتو مور شیخ بتـن خبر کړی او هغه سره یی دا سـی سلا وکړه وراندی تردی چـی په دی راز باندی څوك پوه اودغـه خبره دخپلو او پردیو غوږو نو تـه ورسیږی مناسبه داده چی متـو دغه ځوان ته نکاح کړو ،شیخ بتن وویل چی د دغه سړی نسب ما تـه څر ګند نه دی نو څنګه به دغـه وصلت ومنم . دمتو مورد شاه حسین نه دهغه داصل او نسب په بـا ب معلو مات تر لاسه کړل، هغه وویل چی دده پلر ونه او نیکو نه دغورد سیمی حکمرا نان او اشراف وو که زما په خبره ستا سی باور نه راځـی نو خپل یو اعتبا ری سړی هغه ځای ته واستوی تر څو په دغه بـا ب

ځیږنه وکړی اودغه خبره دمتو مورخونبه او شیخ بیتن ته یی هم دغه خبره وکړه او نو موړی شیخ بیټن یو سړی چی کاغ دوړ نو میده دشاه حسین له لیك اود معز الدین له هغی کو تی سره چی شاه حسین له ځان سره سا تلی وه غور تـه ولیږه تر څو داصل او نسب په باب معلو مات را وړی . کله چی کاغ غورته ور سیده اود شاه حسین خبره تائید او تصدیق شوه ، کله چی کاغ دلیك دځواب سره بیر ته راغی نو لو مړی یی ځان شاه حسین ته ورسا وه او هغه ته یی وو یل چی ستادصالت په باب مۆچی ځیړنه وکړه هغه دلمر په شان روښا نـه ده او هغه به په دغه شرط منکاره کړم چی زما هیله هم ومنی شاه حسین دهغه شرط ومانه او کاغ ور تـه وویل چی زما لور هم باید نکاح کړی اوهغه قبوله کړه. ترهغه و روسته ,کاغ شیخ بیتن دشاه حسین په اصالت او نجابت باندی خبـر کړ او هغه هم بی بی متو شاه حسین ته په نکاح کړه .څه موده وروسته شاه حسین د دوړ کاغ لور چـی مهی نومیده ځان ته واده کړه اوکله چی دمتو دحمل وخت پوره شو نـو خـدای نار ینه اولاد ورپـه برخه کړ او څر نګه چی دغه ماشوم تر نکاح وړا ندی دغلا محصـو ل ونو ځکه یی غلزی نوم ور بانـدی کیښود. ✱له دی کبله چی پـه پښتوژ به کی له غلزی څخه مقصد هغه اولاد دی چی په پټه او لـه نکاح څخه وړ اندی مینځ ته راغلـی دی نو ځکه دغه پیښه دغلز یـو دقبیلو دتسمیی وجه شوی ده . تـر هغه ورو سته دکاغ له لور مهـی څخه دشاه حسین بل زوی دنیا تـه راغی او سر وانی نوم یی ور با ندی کیښود او تر څه مودی ورو سته د بی بی متو بل زوی پیدا او ابرا هیم نوم ور باند ی کیښودل شو.او ابراهیم په لودی باندی شهرت ومو ند.

# دلودي دتسمي وجه

داسي و یل کیږي چي یو وارکله چي شیخ بیټن له کلی څخه دخپل داستو کنی غره ته بیرته ستون‌شو نو خپلی میر منی ته یی وو یل چي بسم الله کړه او د پخوا نـــی‌نغری څخه اوروابا سه اوډوډی پخه او ماته یی راوړه تر څو زه‌یـــی‌پخپله وو یشم او وګو روچي‌زماله لمسیو څخه کوم یو بختوره دی کله چي هغی لو مړی ډوډی پخه کړه نو دبی‌بی متو کو چنی زوی ابرا هیم‌هغه په چالا کی سره واخیستـــه او شیخ بیټن ته یی راوړه او شیـخ بیټن خو شحاله او په پښتو ژبـه کی وویل چي (ابرا هیم لوی دی)چي‌دهغی ورځی نه ابرا هیم دلودی په نامه داسی شهرت ومو ند .چـــی‌دده تو له اولاده په‌هغه نوم یاد یـــږ دی.

لنډه دا هغه وخت چي نورو زامنودشیخ بیټن نه ډوډی وغو ښتـــه نوده ځواب ور کړ چي له ابرا هیم‌نه یی وغواړی تاسو ته به یـــی در کړی

---

* داوجه تسمیه له مضحکو وجه تسمیو څخه ده دمضحکو وجـــه تسمیو په باب دتعلیقاتو بر خـــه‌وګوری (رشاد)

لو بیښتی ابراهیم ته دعا وکړه .

له دغی کیسی نه داسی څرګندیږی چی شاه حسین دقیس عبدالرشید له نسل نه نه دی لود هغــه اولاده غلزی (غلجی) اولودی یوازی دمور لخوا دقیس عبدا لرشیدسره اړیکی لری او همدا وجــه ده چی دشاه حسین او لاده په پښتو کی دخپلی مور په نامه یعنی متی سره شهرت لری . او له دی کبله چــی سروانی هم دبی بی متو په قبیله کی کی روزل شوی ونو ځکه دهغــه اولادی ته هم متی ویل کیږی. اوس دشاه حسین له دریو وارو زامنــو یعنی غلجی ،لودی لوسر وانــی داو لادی ذکر په جلاجلا دول ســره راځی .

# لومړی فصل

## دغلجي ابن شاه حسین غوري دنسب بیان

### دغلجي دقبیلی حال:

دکابل سیند وادی تر هغه ځایه چې لاننگر هار ته نه وی رسیدلی دغلجیو په قبضه کې ده.

دمبحث د اوږدوالی په سبب ددی ضرورت نشته چې هغه کوچنی وادی چې دهندوکش لړی لــه جنوب نه او بله لویه وادی دسپین غره لړی له، شمال څخه را وو ځی‌اود کابل په سیند ورګډ یږی دلته ذکر کړل شی.

دغلجیو په سیمه کې‌د سوړ والی‌او تود والی ترمینځ ډیر تو پیر موجود دی ، ددو ی غرو نه سخت‌او صعب العبور دی .دغلجیو ملک له شمال نه جنوب او لږ غرب خواته تمایل لری او اوږد والی یې تقریباً یو سلو اتیا میلو تــه رسیږی ، پلن والی یې چې لــه لویدیځ نه ختیځ خواته دی، تقریباً پنځه اتیا میلو ته رسیږی . که څه هم دغه ملك مستطیل‌شکل لری خود ځینو کږ لیچو نو دموجودیت په سبب د منحنی خط په شکل شمال ختیځ خوا ته کوږشوی او جنوبی څنډه یې لویدیځ خوا تــه مایل دی.

ددغه سیمی ټو لی برخی سـرې دی ځودتر نك وادی ښکتنی برخی، صوبې والی تر نورو ټولو سیمــــو لړدی .دلغمان سیمه هم گرمه ده، په ژمی کی دټولو سیمو هوا سره وی او هم په دوبی کی ددغو سیمــو هواد درانیا نو دملك او ختیــــځ افغا نستان په پر تله ســره ده.
ددی باب په پیل کی ددغه قبیلی اصل او نسب اود تسمیی وجه پـــه تفصیل سره راغلی ده. همدا راز دهری قبیلی دنسب شجره هم تر هغه ځایه چی لاس ته راغلی لیکل شــوی ده. په پخوا نیو زما نو کی دغلــزیَ (غلجی) نوم په افغا نا نو (پښتنــــو) کی تر ټولو لوی او مشهورو .پـــه اولسمه عیسوی پیړی کی دغه قبیلی په یوازی ډول ټول اصفهان ونیــوه اود روم دسلطان پر پو ځو نو یی هم بریا لیتو بو نه ترلاسه کړل. پـــه اوس وخت کی هم دشمیر له پلــوه تر ټولو پښتنی قبیلو زیــــا ت اود نوم او شهرت په سبب ددرا نیــو تر قبیلی ورو سته دوهم مقام لــری.
ددغه قبیلی اصلی ټاټو بی د قبس (کیسی) غرو چی، غز نوی سلطـــا ن محمود دوی له نو موړی غره نــــه ښکته اود لوید یځ افغا نستان پـــه میدا نی او ارو سیمو کی یـــــی میشته او دکار یز کیند لو چاری یی دوی ته وسپار لی ،مګر په وروستیو وختو کی سلطان محمود ددوی نـــه ځینی کسان دلو ټماری له کبلــــه ووژل او څر نګه چی په هغه وخـت کی ددوی شمیر لږونو زور، قوت او شهرت یی هم لږ وتر څو دګور ګا نی تیمور دوا کمنی په دوره کی دشمیردزیا توا لی او جنګیا لی توب پـــه سبب دزور خا وندان شول. ددغــــه قبیلی دریا ست او واکمنی حـــــال دسلطان ملخی توخی نه وراندی په خپله غلجیو ته هم څرګند نه دی؛ له خیر نونه داسی ښکاری چـــــی دمیرویس تر رامنځ ته کید وړاندې دتوخی ښاخ دمحمد زی کور نی او هو تکو ښاخ عیسك زی او جبار خیـــــل په ابرا هیم غلزیو کی دخپلو قبیلو مشران وو. او هغه فرمان چی داورنګ زیب عا لمګیر لخوا د(۱۰۲۲) هجری کال دجمادی الاول دمیا شتی پـــه

## دغلجي بن شاه حسين غوري دنسب شجره




* ددوی دواړو دنسب شجره وروسته راځي

د توخي ابن بارو د نسب شجره



# د ابراهیم ابن غلجی د نسب شجره

سلیمانخیل علی خیل اکاخیل — ایزب موسی — عبدالرحیم خیل وش خیل باری خیل

مموزی مش خیل یوسف خیل علیخانخیل علی شیرخیل مندوزی جلال خیل خواجوخیل متی خیل میرخانخیل

کریم خیل مشی خیل نوروزخیل باری خیل ازادخیل کرموخیل محمدخیل مقام خیل پیرخیل جوری زی

خیبری خیل جباری آدم خیل جانوخیل اخوندخیل غورگی میرخانخیل ازادخیل دوری خیل کمال خیل اعظم

سرمست خیل ازارخیل بنگی خیل فرارخیل زیباخیل عمرخیل یاروخیل سلطانی اسمعیل زی پیراخیل

فتح خیل دریاخیل نیکنام خیل میرزاخیل گیداری مقرب خیل تتی خیل شنکی خیل ملکگی شالی خیل شهبازخیل

احمدزی صالح خیل اسمعیل زی بچه سلطان باستانی زی سراز من زی نیک زنخیل تاوخیل کمتی خیل هیبت خیل

داسو عبدالرحیم سلطان — پاینده خیل جلال زی شاتوری دینارخیل سلطانخیل یزب خیل داوزی فاطمه خیل

قیصر — الوزی چون زی اوتوخیل ثخولی زی مغل خیل بابکرخیل جبارخیل

قطب کوتی خیل پیاروخیل اتمانخیل شیرپای جاوخیل امیرخیل

قلندرخیل کلاخیل شه خیل سرواخیل ببری ماموزی مشوی نسوخیل خواجه دادخیل اوریم زی

سدوخیل دولت زی غنی خیل گلداخیل شامل زی درگی لنډی زی خوازک

تیتاخیل یعقوب خیل فتح خیل جانی خیل یحیی خیل حسنخیل ادین خیل محمودخیل شکی خیل سریریکری

بابکرخیل معروف خیل موسی خیل عیسی خیل یحیی خیل کرموخیل لغر باران خیل الهدین خیل نوری گوتی

# د ابراهیم بن غلجي د دوهم زوی موسی نسب نامه



## د کاکړ قوم موسی خیل چې له غلجي اندړو سره ګډ دي

موسی خیل

رستم خیل خریواله باتوری شصت واله اتل خیل نوریک خیل شمشیر خیل دراز خیل کمال خیل

## د ترکی ابن موسی ابن ابراهیم غلجي نسب نامه

ترکی

بادین خیل نا خیل ساک خیل فیروز خیل تسول خیل ګربز خیل

مهری خیل حسن خیل حاتم خیل لالو خیل جمال خیل ګور خیل حریف خیل ګلان خیل بارک خیل

نورور خیل تاجو خیل اناری خیل صابر خیل نازک خیل دلدار خیل شیکی المری

قدرت خیل دوران خیل نجل خیل ظالم خیل شایت خیل تراب خیل سلیم خیل کنجو خیل میری خیل کلو خیل

خیرو خیل کبیر خیل سالی خیل قتال خیل اکبر خیل زرین خیل

تری خیل بستام خیل لاجمیر خیل شاکل خیل شیخ نور خیل تیرین خیل نورخان خیل سدو خیل

شهباز خیل قباد خیل سیینی زی

زلو خیل خان خیل صاحبداد خیل فراق خیل بیګو خیل شاعبدل خیل

تور زی ملکدین خیل موسی خیل ګران خیل براهم خو خیل

تهمة دملك ملخي توخي پهٔ نا مســة ليكل شوی* پهٔ هغهٔ کی لهٔ ده څخه

غو ښتل شوی چی دکلات او قرقولاره‌چی په ارغنداب کی ده دهزاره قــوم
او نورو غلو نه وسا تی .له دغــه فرمان نه څرګند يږی چی ملك ملخی
توخی په‌هغه وخت کی يوزور وراومعتبر سر دارو ، اوغالباء به هغــه
ته د سلطان لقب داور نګ زيب لــه‌خوا ورکړل شوی وی ويل کيږی چی
ملخی په څلور ورځو کی هزاره ګـان‌له ارغنداب نه وايستل ،او پــــه

دغه جګړه کی دخان خيلو دقبيلو نه‌ملك مانی ډيره مرسته وکړه او خپل
زړه ورتوب يی ښکاره کړ. په هغــه‌وخت کی چی سلطان ملخی دتول توران

يعنی دتو خی او هو تکو سردارو نــو‌په دغه وخت کی دجبار په نوم يــو
سړی چی‌د سليمان خيلو دقبيلی‌دجبارخيل ښاخ نيکه دی دتولو براهيمــو
غلجيو ملك و.

نو موړی دياياس په نوم سيمـــه کی دصفوی پاچا سره په جګړه کــی
ووژل شو اودکا بل او جلال آباد تــرمينځ ښخ دی په خاك جبار مشهور دی
او په هغه سيمه کی چی ذجبار قبــرمو قعيت لری ډير ساړه او واور ی‌په

کي وريږی په دغه سيمه کی ليوان‌اوغله ډير دی او ددغه ځای نه خلــك
ډيره کر که کوی او شوم يـــــی‌ګڼی اود کا بل خلك دخاك جبار پـــه

باب ډيری هجوی او هزليات وايی .جبار په خپله ډير زړور او با تدبيره
شخص واود غلجيو اکثره رواجو نــه ده منځ ته راوړی دی .

دسلطان ملخي تو خي تر ټ ينــی‌ورو سته حاجی ميرخان چی‌په ميرو-
يس هو تك باندی مشهور ودسلطــان‌ملخی توخی‌دلورزوی يعنی لسمی‌و،په

دغه باب غلجی داسی کيسی کوی‌چی‌سلطان ملخی دنازو په نوم يــوه
لور درلوده، يوه ورځ نازو دترنـــك‌دسين په غاړه دخپلو همزو لو سره

---

* پهٔ اصل (اردو حيات افغا نــی٢٦١ مخ) کی دانيتهٔ دغسی ليکلی‌ده،
خو عجيبه داده چی او رنګزيب‌عالمګير(١٠٦٨ ـ ١١١٨ هـ ق) تر دغی‌نيتی
شپږ نيم کاله ورو سته (د١٠٢٨هق‌کال دميا نی ١٤) زيږ يد لــی دی او
١٠٢٢ هـ ق داوړ نګز يب عالمګيــر دنيکه جهانګير مغل( ١٠١٤ـ١٠٣٧
هـ ق) دپا چهی اتم کال دی‌ــ دتار يخ‌سلطا نی مولف سلطـــان محمد خــان
بار کزی‌دغه فرمان‌داوړ نګزيب‌عالمګيردزمانی بللی دی خو دهغه نيته يی
نه ده ليکلی . (رشاد)

په لو بو بو ختهٔ وه چی ناڅا پــــــه یو ملنګ (تارك الدنیا فقیر ) لـــــه هندوستان نه راور سیده او هغـــــونجو نو ته یی وویل چی په تا ســـــی کی به کومه نجلی ماته مچی‌راکړی. ټولی نجونی له دغه ملنګ اود هغـــه له بی ځایه سوال څخه وویر ید لی‌او وتښتید لی او یوازی نازو داعتقاد په سبب دمچی ور کولو اراده‌وکړه‌او په دغه وخت کی فقیر دمچی لـــه اخستلو نه. ډډه وکړه ویی ویل چـــی‌ته زما لور یی او ما دا زمیښتـــــــــت له کبله له تا نه داسوا ل‌وکـــــړځه خدای به تاته څلور زا مـــــن در کړی اود هغو ی نه به یوپاچایی‌ته ور سیږی ویل کیږی چی دمیرو ـ یس پلار شاه عالم دملخی سره نوکرو اود ملخی لور چی نازو نو میده په هغه با ندی مینه شوه او دوی‌دواړه‌سره وتښتید ل او تغر تــــه ولاړل خو دد غه ځای اوسیدو نکـــودوي ته پناه ور نه کړه او دو ی‌په بیلو بیلو ځایونو کی شپی او ورځی‌تیرو لی خو په پای کی دننوا تـــی په ډول بیر ته دسلطان ملخي کور ته ور غلل . هغه دوی دواړه‌وبخښل او یوه تو ته ځمکه یی خپلی لورته دکلات د تبخ سر نو می غو ندی په لمنه کی ور کړه . اودجور فـــك‌ولی نه یی ددغه ځمکی دخړو بو لـــو له پاره اوبه ور کړی او هغه سړی‌ته چی دناز ودا یښ جلیب یی نیولی و هغه ځمکی ور کړل شوی چـــــی‌دجخترا ن دغره د چینو په ذریعــــــه خړو بید لی دغه جلو دار (جلـــــب‌نیو نکی) دتوخی قبیلی دکشا نـــــی له ښاغ نه و. خلك وایی چی نازوته له دغه نهر نه د لسو ښبا نـــه روزو په اندازه او جلو دار تـــه ددوور ځو او به ور کړل شوی .

ملك ملخی په هغه جګره کـــــی‌ووژل شو چی دانځر کی او سر غ سنګ دسیمو تر مینځ پیښه شوه .دنازو له بطن نه‌د شهعا لم(شـاه ـ عالم ) د هوتك څلور زامن‌د نیا ته راغلل چی دهغو تفصیل دنسب پـــه شجره کی راغلی دی، له‌هغوی نـــه حاجی میر خان چی د میرو یس پـــه نامه بلل کیږی او دهغه دوړا ندی‌تك په باب لږ څه معلو مات پـــه لومړی برخه کی ذکر شول،دافغـا نستان پاچا شو ویل کیږی ګله چی میرویس خان له ایران نه بیـــــــت‌الله شریف ته لاړ نود حج دفر یضی تر اداء کولو ورو سته یی له‌خدای نه وغو ښتل چی لویدیځ افغانستان

دایرانیا نو له حکومت نه بیــل اوآزاد ئ‌ور په برخه کړئ ، کله چې
یې دغه دعا وکړه نوویده شـو اوهغه وخت چې راویښ شو، ویــې
لیدل چې توره یې له تیکي څخــه راوتلې اویې پو ښه پر ته، ده نو
دغه پیښه یې دملکو نو دفتح‌کو لوپه فال ونیوله او بیر ته را ستون
شو . کله چې کند هار ته راورسیدنو په هماغه ډول چې په لـومړئ
برخه کې وویل شول شهنواز خــا ن‌گرجی یې چې دایرا ن پاچا له خوا
دکند هار بګلر بیګی وو واژه ، اوپه خپله د کند هار وا کمن شو.کله
چې حاجي میرو یس په کند هـارقبضه ټینګه کړه نو د توخی لــه
قبیلې ته یې هم دعا لیې اخستلــو،حکم و کړ ، خو تو خیو دغه خبــره
ونه منله .په دغه وخت کې‌د تــوخیو مشر د علي زو ئ شاه عالم‌چې
دسلطان ملخی وراره و، لوی ملک‌واود ده زوی خو شحا ل خان هم ډیر
یوه ځوان و اود حاجي میرو یـــس‌په دغه خبره باندې د توخیــو او
هو تکو تر مینځ جګړه پیښه شوه‌ترڅو دتو خی ملك دتر نك ته ارغنداب
ته ولیږد یده او پاتې تو خی پـــه دوو برخو وو یشل شول یوه بر خه
یې‌شاه‌حسین خیل اونور ئ قبیلــې‌چې او س دا ب ایستاده یا آب تازی
په شاو خوا کې او سیږئ په یــوه‌ځای سره راټو ل شول ، پیر کخیل
اونور ئ‌قبیلې چې هغو ئ ته نږدې‌پرتې وې هغه په ا مو کا ئ کـــې
سره را ټولې شوې. په خــــا ص‌کلات دسلطا ن ملخی د زو ئ حا جی
عادل سلطه ټینګه شوئ وه اودهغه زوئ چې بای نومیده ډیـــر زړه ور
او جنګیا لي ځوان ؤنو موړی یـــو ه‌کلا ددغه رود په بله غاړه دخجتران
په سیمه کې پرته وه، نو مـــوړی‌دهو تکو قبیله ډیره په تنګ کړه .
په پای کې مخا لفینــــــــو دده لاره‌ونیوه او هغه یې وواژه اونوموړئ
کلا یې دتو خیو نه ونیو له اوهلته یې‌د یحیی زوئ محمد خان چې پـــه
حاجي اینګو باندې مشهور اودمیرو‌یس وراره ؤ قلعه دار و ټا کل‌شو.
په هغه وخت کې خبر را ورسیـــده‌چې ایرانی نا در شاه د کند هـــار
دنیو لو تکل کړی او دغی خوا تـــه راروا ن شوي دی شاه حسین‌هو تك
په دی وپو هیده چې هغه دنادر په‌شیر له یوه قوی د ښمن سره مخامخ
دی او له بلې خوا تو خی هم دده‌دستر کو اغزی دی نومنا سبه داده
چې دوی لومړی و ټکو ل شی. ددی‌مشور ئ له مخې دکند هاراو نورو
ځایو نه څلور زره کسان را غلل‌اودپل سنګی په نامه سیمې کې ســره

واتو لشول او پر پیر ک خیلواوتترا کوباندی یې چې په آموګای کې اوسیدل یرغل وکړ ، څرنګه چې هغوی په دغه وخت کې کمزوري وو او د تو خیو لوی ملکان دخوشحالخانزامن اشرف خان او الهیار خان دارغنداب خواته تللي وو نو تو ل ترا ك له ښځواو اولادو نوسره وژل شول او کله چې دغه حوا شینوونکی خبر اشرف خان او الهیار خان واوریده نو هغوی د ښځو په طلاق قسم وکړ ترڅو چې یې بدل اخستی نه وی نو یوه شپه به هم په کورکې نه تیروی . دواړو ورونو ځانو نه میزان او تیرین ته ورسول او دچینا ران په نامه سیمه کې چې دهرات لویدیځ ته پرته ده . دنادر شاه سره یوځای شول ، نادرشاه الهیار خان په اصفهان کې مقرراو اشرف خان هغه نه د کندهار لار ورو ښود له او هرات یې ترڅو ار لسو میاشتو محاصرې وروسته تر لاسه کړ او په دې ډول لکه څرنګه چې وویل شول کندهار هم فتح شو ، خو دزاړه ښار په یوه برج کې ملا علي غلجي ترڅو ورځو پورې په میړانه مقاومت وکړ خو په پای کې مغلوب شو . هغه وخت چې پر کندهار باندې حملې روانې وې دحاجي انګو زوی عبدالغفورخان د غلجا یې کلات حاکم واو دهغه بل ورور عبدالرسول د خروتو ملك سر روښی ته د غلجیو دلښکرو راټولو او تنظیمو لو له پاره تللی و ترڅو دنادر شاه سره مقابله وکړي ، کله چې نادر دغه خبر واوریده نو په شیبار نومی ځای کې یې په هغه باندې یرغل وکړ او له هغو څخه یې ډیر کسان ووژل . د شیبار دیر غل په وخت کې دمدد خان پلار موسی خان اسحق زی دراني چې په موسی ډو نګی باندی مشهور و د نادر شاه دلښکرو لار ښود و ، په دغه یرغل کې دجان په نوم یو تره کی غلجي هم دنادرسره ملګری و ، کله چې نادر بیرته کندهار ته ستون شو دتره کي دقبیلې نو موړی جان یې د څلور زره پوځ سره د کلات دنیولو له پاره ورتاکه او تر فتحې وروسته جان تره کي دهغه ځای کلادارو ټاکل شو . دغه سړی پخپله قبیله کې ډیر واك او اختیار خاوند و .

دکندهار او کلات تر ټیو لـــووروسته نا دنادرشاه ، تو خیاشرف

هان دغر عنبتو بکلربیکی وټا لـــه او دتوخی بدل یې په دی ډول لـــه

هو تکو څـخه وا خیســـــــتپنځلس سوه کوره هو تك یې ایران

تر کستان او ځینې یې هندو ستان ته تبعید کړل . تر نادر ورو ستـه

کله چې ابدا لي احمد شاه پـا چاشو نو اشرف خان په کلات اوغزنی

کې حاکم او په هندو ستان باندی دلو مړی یرغل په وخت کی دی لـــه

احمد شاه سره ملګری واو کله چی له هغه ځا یه بیر ته را و ګرځیدل

نود راني سر دار انو احمد شـــاه په هغه باندی بد ګما نه کـــړ او

ورته ویې ویل چی د اشرف خان قدرت ورځ په ورځ زیا تیږی ،احمد

شاه اشرف خان او د هغـــه زوی حلیم خان کندهار نه راو عنبـــل

او بند یان یې کړل او دهغه مړیې په یوه جعلی خط با ندی و لګا و ه

او دهغه په ذریعه یې الهیار خا ن لـه اصفهان څخه راو غو ښت او لله

چې الهیار خا ن را ورسیده هغه هم ونیول شو او بیا چا ته پته نشتـه

چې په هغوی باندی څه را غـــلل خو ځینی خلك وا یی چې دزند ا ن

دیوال ور باندی چپه ا و هلتـــه ښخ کړه شول ،له دغی خوا خـــو

داحال و ، او په بیرا هم غلجی کـــی ددغه غلجیو د سلطنـــت تر زوال

وروسته ازادخان سلیمان خیل چې تر ټو لو مشهور او د لوی عـــزم

خا وند و د ایران پر سلطنت دعـــواوکـــړه او مشهوره ده چې ازادخان

د کریم خان تر ټولو قوی او لوی دښمن و ، دکریم خان ایرانیاو افغا ـ

نی مخا لفین دواړه ډلی وا یی چـــی تر سختی جګړی و روسته ددوی دوا ـ

ړو تر منځ دو ستی منځته را غله ، کله تر څو چې کریم خان دفارس

پاچا ونوازادخان ډیر کلو نه لـــه هغه سره په عزت او قدر ژو ندکاوه.

لنډه دا چی ابدا لی احمد شـاه داشرف خان او الهیار خان تو خـی

تر تکولو وروسته د غلجا یې کلات واکی سور کی خان با بکر زی تـه

وسپارلی شوی خو هغه تر شـــو ورځو وروسته د محمد زیـــــو

توخیو لخوا ووژل شو، سور کـــی دوه زامن لرل ،سید رحمت خـــان او

لشکری خان وو .

سید رحمت خان داحمد شاه ابدالی همر کا به شو او لشکری خان پسه کلات کی حاکم و دتیمور شاه تــرپاچا کیدو وروسته داشرف خـــان توخی زوی محمد امیر خان چی پــه آمو خان سره مشهور و له سلیما ن خپلو راوغو بنبتل شو اود کلات، توخی او دهزاره وو مربوطو سیمــو حاکم و ټاکل شو او د حا جی انــکوزوی نور الله خان دهو تکو سردار وټاکل شو او تیمور شاه هغه تــه داخلاص قلی خان خطاب ورکــړ اود دیر ه اسمعیل خان، ،دامان، ،بنواواور کون دسیمو څخه لاس ته راغلی عایدا ت یی ده ته ور کړل او دی یی داعتبار خاو ندو کر زاوه .

لمو خان دکشمیر په جګړه کــــی دآزاد خان دفساد ونو په وخت کـــی ووژل شو او دهغه نه دری زا من پاتی شول چی ولی نعمت خان، فتح خان او میر علم خان نو میدل، کله چی سدو زی شاه زمان دافغا نستا ن پر تخت کښیناست نو ولی نعمـــت خان دخپل پلار په ځای وټا کـــل شو خو څر نګه چی دلږ عمر خاو نـدونو له دی کبله مولیداد خان (مولا داد خان )مو سی خیل یی د هغــه مشا ور او لاربنود و ټاکه ، کله چی درحمت الله خا ن زوی شها ب الدین خان او الهیار خان لمسی مشهور شو نو د توخیو تر مینځ یوه کور نــی جګړه رامنځ ته شوه ، د شهـا بـ الدین د عرو ج ا و شهر ت کیسـه داسی ده چی شاهی امین الملك چی دبابړ وله قبیلی نه وو لی نعمت خان ته په در بار کی سختی خبـــر ی وکړی ، ولی نعمت خان په خوا بـ کی دامین الملك په هجوه کی یو پخوانی پښتو متل استعمال کړ . چی په دی باندی امین الملك سخت نا را ضه شواو شهاب الد ین دولی نعمــــــت خان درقیب پالنه وکړه اود خپـــــل کورنی مال نــه یی دهغه سره مــرسته وکړه ددی شخړی په سبـــب قبیله په دوو ګو ندو نو وو یشــل شوه چی نیمایی دو لي نعمت خان په خوا او نیما یی نوره یی دشهــا بـ الدین په خوا ودر یدل اوپه کلات باندی به کله دیوی خوا سلطـــه ټینګه شوه او کله به دبلی خواپه دغو جګړو کی دولی نعمت خـــان نایب مولیداد خان ( مـــولاداد خا ن )

موسی خیل ووژل شو یو ځل دشــاه یو شمیر اسو نه چی دکابل څخـــه راو ستل کیدل په لاره کی دتو خـــی قبیلی دغلو لخوا لوټ کړی شـــو ل کله چــــی دغه خبر ولی نعمــــت واور یده نو خپل یو شمیر سړی یی دهغو ی پسی ولیږل .

غله غرو تو ته و تښتید ل. په خپله ولی نعمت خان هم مغـــــــو ی
تعقیبول تر څو ووژل شو کله چـــی دهغه ور ور فتح خان دده پر عــــا ی مشر وټاکل شو د شها ب الد ین اوفتح خان تر مینځ جګړی پیښی شـوی
تر څو دغلجی قبیلی او دزا نیو ترمنځ جګړه رامنځ ته شوه اودغه جګړی علت داو
چی دشا ه زما ن او شـــــــــــا ه محمود سد وزی تر مینځ شخړ ی پیل
شوی ، نود شاه زمان دپو ځ پیـــش قراو ل احمد خان نورزی دشاه محمود سره اړ یکی ټینګی کړی او شاه زمان دهغه دبی وفا یی په سبب ما تــــــه
وخوړه . کله چی غلجیو داپا چاګردشی ولیده نو داسی پر یکړه یی وکړه
چی دوی یو بیل حکو مت جوړ کړ ی او په دغه تر تیب یی دنور الله خان
زوی عبدا لرحیم خان هو تک چـــــــی دحاجی انګو لمسی و پاچا و ټاکه او
شهاب الدین تو خی دهغه وزیر وټاکل شو . عبدا لر حیم خان د شها ب
الدین خان مرسته او اتفا ق پــــه دی دول تر لاسه کړ چی خپله لور یــی
چی صاحب جان نو میده او شها ب الدین په هغی باندی مین او دغــه،
ښځه دشاه زمان میرمن او دشهـــزاده ناصر او شهزاده قیصر مور وه دټولو
ګانو فرش او نورو اسبابو نو سره یی شها ب الدین ته ور کړه ، کلــه،
چی دشها ب الدین دزړه دغه ار مان پوره شو نو د لارو د بند و لو پــه
منظور وټا کل شو او په خپله عبدالر حیم خان دسلیما ن خیلو غلجیو د
تحریک له پاره کابل ته راغی او نوران او ابرا هیم د غلجیو دواړه سباــ
خو نه دجګړی له پاره تیار شـــــول دکا بل نه ددرا نیو یو پو ځ دد وی
سره دمقا بلی له پاره و لیږ ل شـــــواو دغه لښکر غلجیو ته ما ته ور کړه
اوله ابرا هیم غلجیو نه پنځه شپـــږزره کسان وو ژل شول او عبدالر ــ
حیم خان بیر ته غلجا یی کلات تــه ستو ن شو بل ځل چی دد رانیو پو ځ
ورو لیږل شو نو غلجیو هـــــــــــــم دخپلو سپا یانو قرار ګاه و ی پــــــه
مضبو طو غر نیو سیمو کی میشته کړی او یوازی سپا یان دجګړی لــــه،
پا ره میدان ته راغلل او فتـــح خان توخی تر جګړی وړا ندی له درا نیو
سره یو ځای شوی و.

دغه خو نړۍ جګړه د جلدک او آموګای تر مینځ په یوه غره کې چې سور غر یې بولي پیښه شوه غلزي یو بیا هم ماته و خوړه او د توخو له قبیلې نه تقریباً اته سوه تنه ووژل شول او ځکه چې اکثره هوتک سپاره وو نو ژوندي پاتې شول، په دغه وخت کې دژمي درار سیدو له امله جګړه په مؤقتي ډول پای ته ورسیده .

د(۱۸۰۲) عیسوی کال پسرلي په غلجیو کې ددو ی دقتل په کال مشهور دی په هغه جګړه کې چې په دغه وخت کې پیښه شوه په هغې کې عبدالرحیم خان هوتک او شهاب الدین خان توخي دغلجیو مشرا ن وو او ددرا نیو دلښکر و مشران عبد المجید خان بار کزی ، سیدال خان الکو زی، اعظم خان پوپلزی ،ښادي خان اڅکزی عر ض بیګي او سمندر خان بامي زی وو .

په دغه جګړه کې ډیر غلجي وو ژل شول او لښکر ی هري خواته خوري شوی .

ددو یم کال په پسرلي کې ،کله چې احمد خان نور زی دیوه لښکر سره غو ښتل کابل ته ولاړ شي کله چې هلان رباط ته راورسیده بو دتو خیو د ښاخ دجلال زیو ځانګړي دملخي لمسي ملا زعفرا ن په مشري په هغه یرغل وکړ خو په خپله یې ماته وخوړه او شپږ سوه کسان یې ووژل شول او احمد خان نورزي بیر ته کند هار ته راغی او یو قوی پوځ یې چې توپو نه او شاهینې* ورسره وو ، دغلز یو تر خود ټکولو له پاره روان شو خو کو مه ګټه یې ترلا سه نکړه دا ځکه چې تو خي دشهاب الدین او فتح خان تر مشر ی لاندې دکلات غرونو ته تللي وو.د درانیو په هغه ځو یر غلونه وکړل خود هغو په خو ښه کومه نتیجه حاصله نشوه په پای کې یې په ارغنداب کې د غلجیو په کور نیو با ندې یرغل وکړ او ډیر بیګناه کسان یې ووژل چې دتو خو هو تکو او درانیو ترمینځ داور و ستې جګړه وه. تر هغه وروسته عبدا لرحیم خان او شهاب الدین خان ، دمې غره خواته وتښتیدل ، تر هغه لږه موده ورو-

---

* شا هین دیوه سپک او واړه تو پ نوم و ، ددغه تو پ ویشتونکي شاهین چي بلل کیده او د شاهین چیانو مشرشاهین چي باشي لقب درلو د،شا هین کلمه په دغه معناسره په ځینو کتابو کې شهنګ لیکلي ده. (رشاد )

سته شاه شجاع الملك د کاکړ ویه سیمه کی پناه واخیسته اودهغه سره شهاب الدین حان ، فتح خان تو حی دعبدالر حیم خان زوی شکر الله حان

هو تك وکتل او ور سره یو ځای شواو کله چی شاه شجاع دڅو ور ځو له پاره پاچا شو نو فتح خان اوشکرالله خان دهغه سلام وکړ او ور ته

تسلیم شول . مگر شهاب الد ین خان دغه کار ونکړ او په دغه خبره باندی شاه شجاع په غصه شواو کله چی یی داخبر ه و اور یده چی نوموړ ی

شهاب الدین خان په ناوه کی یوه کلا جوړه کړی ده نو دهغه خپگان او غصه لاپسی زیاته شوه او کلستان خان اخکزی ته یی ددغی کلا ذوړانولو

حکم وکړ او فتح خان بابکر خیل یی هم ور سره ولیږه او کله چی ناو ك ته ور سیدل نو کلایی محاصره کړه یوه ور ځ هغه وخت چی درا نـــی

لښکری کاملاً غافلی شوی وی شهاب الدین خان په هغوی باندی ناڅا پی یرغل وکړ او دهغو ی سپور فوځ یی تښتنی ته مجبور او توپچیان یـــی

ووژل او دتو پخانی باروت وسوزول شول او دتو پونو په میلو نو کـــی یی موړی ور تك وهل اوتول زمـــی هلته تش توپو نه پراته وو.

په پسرلی کی صحبت خان پوپلز ی دکابل نه دیوه نوی پوځ سره هغی خوا ته ولاړ او تو پونه یی بیر ته فعال کړل څو ورځی یی په کلا باندی

دزی وکړی او بی له دی چی کو مه گټه یی ترلاسه کړی وی بیـــرته

ر ا و گر ځید . اودغـــــــه کلا تر ( ۱۸۳۹ ) عیســــــوی کال پوری په خپل حال پاتـــی وه او ئله چی په دغه کال انگر یزی سرـ

کار کابل ته لښکر ی و لیږ لی دغه کلا یی هم ورانه کړه.

لنډه دا چی د صحبت خان تـــر رستنیدلو ورو سته د شها ب الدین او فتح خان ترمینځ ترډیری مودی پوری جگړی روا نـــی وی اوددوی

ترمینځ دښمنی په دغه خبره شروع شوه چی دشها ب الدین خـــان وروړ چی امیر محمد خان نومیده او د یــــ ړ ه ورانسان وآن تردی چی اوس هم دهـ ړه

زړه ور تیا ستا ینه کیږی د فتح خان له خوا دخاکه په سیمه ی وو ژل شو دغه دښمنی تر هغی چی فتح خان ژوندی و روانه وه اوپه هرفصل کی

په ددو ی ترمینځ دوی در ی جگړی کید ی خو کله چی فتح خان مړ شو

نو شها ب الدین دفا تحی له پـــاره دفتح خان زو ی سمند خان ته ورغی او له دغه وخته ددوی تر مینـــځ دښمنی په دو ستی بدله شـــوه

سمند خان دشتها ب الدین خان له لوزسره واده و کړ او خپله لور یــی دشهاب الدین خان لمسی منصور خان ته ورکړه او تر هغه ورو ستـه دغه کورنی د ښمنی له مینځه ولاړه، تردغه وخت ورو سته دکابل وا لــی امیر دو ست محمد خان دځپل جرئت له مخی څو ځله دتو خیو په ښنا غ باندی یرغلو نه و کړل او دد غـو یرغلو نو په نتیجه کی هغو ی‌تردی الدازی ضعیف شول چی د یا غیتو ب‌قدر ت هیڅ په کی پاتې نشو. او د شهاب الد ین دکور نی مقام اوحیثیت‌هم را تیټ شو په سلیمان خیلـــو غلزیو باندی وزیر محمد اکبر خا ن‌او پخپله امیر دو ست محمد خـــان یرغلو نه او حملی وکړی اودهغو ی‌سیمو ته یی لښکر ی‌ورو لیږ لی‌او ډیر ځایو نه یی ونیول اودهغــو ی‌غوړو نه یی ور تاو کړل اوس سره له دی چی ددوی شمیر زیات دی خوظاهراً دبغاو ت کو مه ارا ده نه لری او نه هم دپخوا په شان یو رئیس‌اومشر لری او دهر ښناخ دځپل ملـک تابع دی او له ټولو خلکو نه مالیه اخیستل کیږی .

## دغلجیو د قبیلی ویش او شمیر :

ددغه قبیلی خلك کله په غلـط‌دغلجیو (۱) په نوم هم یلل کیږی. څرنګه چی دنسب په شجره کی‌راغلی‌دی .

دغـه قبیله په لوړی سرکی په‌دوه ښاخو نو ویشل شو ی‌ده لوړی: تورا نډو یم ابرا هیم او دغه دواړه‌نومونه د غلجی له دوو زامنو نــه دهغوی نسل ته ور دسید لـــی‌دی او په دغه نومونو سره مشهور شوی دی څرنګه، چی توران د غلجی‌مشر زوی و نو ځکه دغه ښــا خ لوړی درجه کڼل کیږی ۰ دتورا ن‌ښاخ په دوو څانګو ویشل شوی دی لوړی هو تك دو یم تو خی او دغه دواړه څانګی ورو سته بیا په نورو ډیرو شعبو او څانګو ویـشل شو ی‌دی چی تفصیل یی دنسب په شجره کی راغلی دی .

---

(۱) په‌دغه کتاب کی په هرځای‌کی دغلجیو په ځای دغلز یو کلمـه استعمال شوی ده او یواز ی دلتـــه دغلجی کلمه استعما ل‌شوی اومؤلف هغی ته هم غلطه ویلی ده.

ابراهیم د وه زامن لرل مکسر دهغه له شپږو لمسیانو نه شپږ
لوی ښاخونه مینځ ته راغلي دي چې دابراهیم غلجیو په نامه یادیږي
په دې ډول سلیمانخیل، علیخیل، اکاخیل، دا دري واړه ښاخونه
مجموعاً دخیل نیکه یعنی ایزب په نوم بلل کیږي، ځلورم سهاك، پنځم
اندړ، شپږم تره کي له دوی نه وروسته ډیری ځانګي نوري هم
مینځ ته راغلي دي. او تفصیل یې په هغه اندازه چې تر لاسه شوی د
دنسب په شجره کي دهر ښاخ ترلاندي ذکر شوي دي خو د ههغو ی
دسلسلي په اړیکو باندي ډیر داډ نشته خو په غالب احتمال به
صحیح وي.
دغلجیو دنسب د شجري د تر لاسه کولو له پاره ډیر کوښښ شوی دی
او زما استاذ ی مو لوی محمد نسیم چي ددغي شجري دلاس ته راوړ نو
له پاره ددوی غږ نیوسیمو ته راغلی وتود سراو مال تا وان یې په
ځان منلي و، دمجبوري په دغه حالت کي احتیاطاً باید وویل شي که
چیري لو ستو نکي د غلجیو دښاخونو دالحاق په باب څه تفاوت ویني نو
دغه ستو نزي باید په یادو لري.
اوس به دهر یوه لوی ښاخ چي وړاندي ذکر شول دشمیر، ویش او
داستو ګنی د ځای په باب مفصل بیان وشي.

## هوتك:

دغلجیو په ښاخ کي د هوتك ښاخ له دي کبله په لومړي سر کي
شمیر ل کیږي چي د غلزیو پاچا له دغه ښاخه راو تلي و دغه ښاخ
وړاندي ډیر شمیر خلك لرل خو دغلجیو د سلطنت دانتقال او زوال په
وخت کي ددوی شمیر لږ شو. ایرانی نادر شاه د کندهار تر فتحي وروسته
دد غه ښاخ پنځلس سوه کورني ترکستان، ایران او هندو ستان ته تبعید کړل چي له هغو نه یو شمیر یې په بخارا، مازندران،
او دایران په ارد بیل کي میشته دي. او س په افغانستان کي
دهو تکو د ښاخ اته یانه زره کورني او سیږي او عموماً دوی په مرغه، د
باري غر په دواړه خواوو او په سور غر کي میشته دي. عیسك زي
په مرغه او اتغر کي، ملي زي په ګردي ځنګل او ښه بو لان* کي، د
برت زي ځانګه په اور غناي، اکازي په خزناي او دمند یاکي، تون زي په
سوري کي، عمر زي په منداو اورامي زي په اتغر کي او سیږي.
دهو تك ملك له کندهار نه ځلور منز له شمال ختیځ ته اود

* په اصل کي: غا بو لا ن

غلجا یی کلات نه یو منزل جنو ب ختیځ ته پیل کیږی . او س په
دغه ښاخ کی دعبدا لرحیم خان هو تک کړو سی میر علم خان او همـدا راز
سدو خان لوی خانان دی . او پـه هر ښاخ او څانگه کی ډیر واړه ملکان
ددوی ترلاس لاندی دی .*

## دتوخو ښاخ :

دتو خیو ښاخ دهو تکو دکور نی دعروج نه وړاندی د غلجیو پـه قبیله کی لومړ ی مقا م در لـود اوسلطا ن ملخی چی د تو خی ښـا خ څخه و دتورا ن دتو لی قبیلی سردارتیر شوی دی ،خود هو تکو دترقـی او وړاندی تگ په دوره کی دغـه ښاخ دوهم ،مقام لری .

ښاغلی الفسنتن دتو خی دښا خ شمیر دو لس زره کور نی لیکلـی دی خود مؤ لف له خیړ نی نه داسی ښکار ی چی او س به د دوی شمیـر په آفغانستا ن کی له پنځـلس ز ره کورنیو څخه لږ نه وی .

دتو خیو په سیمه کی مشهـورځای غلجا یی کلا ت دی تو خی اکثره په تر نك کی د پل سنگی نه نیولی دشیبا ر او د هغه ترشاو حواسیمو پوری او سیږی .دارغـنـدا ب وا دی شمالی برخه چی د هزاره وود ملك تر څنگ پر ته ده او هم میزا نه دتوخیو په قبضه کی ده. همدا راز یو شمیر توخی دناوی وادی په جنو بـی اوښکتنی برخه او یو شمیر یی په خاـ کاك * کی او سیږی . با بکر زی په جنگیو سرا سپ شا مر دان اوناوه ـ کی او سیږی او پاتی شمل زی پـه شیبار ، هلتاغ مندان او نور ځا ـ یونو کی میشته دی . دتو خیو یـو محله دکا بل ښار ته نږدی په ده ـ افغانانو کی شته دی اوس منصورخان دتوخو معتبر خان دی .

---

*دغه نوم په اصل (۲٦۹مخ) کی هم دغسی لیکلی دی ، دتوار یـخ خور شید جهان په ۲۱۹ مخ کی هم خا کاك کښلی دی، خو زما په حیا ل دغه نو م به «خاکه» وی .(رشاد)

## سلیمان خیل :

له تو لو غلجیو نه دسلیما نخیلودښا غ شمیر زیات دئ . د ډیـــرو
روایا تو نه څر گند یږی چیددو ی شمیر د ځلو یښتو او پنځو سو زرو

کو رنیو تر مینځ دی. او ځینی نـــاخبره خلك چی دوئ په لویو غر نیو
سیمو کی په خواره ډول وو یښی نوداسی اټکل کوی .

چی ددو ی شمیر به تقریباً یو لـــك کور نی وی خو دا صحیح نـــه ده.
ښا غلـــی الفنستـــن ددو ی شمیرد(۳۰۰۰۰) او (۳۵۰۰۰) زرو کور نـــو

ترمینځ لیکلی دی ، سلیمان خیل په غلز یو کی ډیر زړه ور او جنگیا لی
ښاغ دی ، دوی په یوه پراخه سیمه سلطه لری ، ددغه ښاغ د ځانگـــو

تفصیل دنسب له شجر ی نه په دیډول څر گند یږئ چی په دوی کـــی
ځلور ځانگی مشهور ی دی خود اوسیدو لو د ځای له مخی په دوو بر-

خو ویشل کیږی یعنی جنو بـــی اوشمالی ددئ دواړو برخو نه سهیلته
قیصر خیل، شمل زی یا اسمعیل زی، لومړی مقام لری . دغه خلك دنورو

مر بو طو ځانگو سره په سهیلی برخو کی په دی ډول میشته دی. دکتواز
په سیمه کی ادین خیل ، نسوخیل ،قلند ر خیل ، شکی خیل، شاه توری،

جلال زئ ، کلا خیل ، محمود خـــیل ،مشی خیل اونور اوسیږی .
دزر مت تقر یباً نیمه برخه پـــه تیره بیا سهیلی برخه یی دسلیما ن

خیلوپه قبضه کی ده اود نانی غنـــدسیمه چی په کتواز پورئ مربوطه
ده له سلیمان خیلونه ډکه ده،همداراز په وازه خوا او نورو سیمو کی

هم په متفر ق ډول او سیږئ پـــه شمالی برخه کی ستانیزی یا سلطان
زی احمد زی په لومړی درجه ښاخونو کی راځی چی ددو ئ په مینـــځ

دمتا نی زیو شمیر زیات دئ چـــی ځانگی یی جبار خیل او با بکر خیل دی
چی دجلال آباد او کا بل تر مینځ لاره کی په لارو هلو کی شهر ت لری.

د للندر در ی لویدیځ ته تیتمور او هم دمیدان په تو له سیمه کیچی
دکا بل نه دوه منز له لو یدیځ خواته پرو ت دی پیارو خیل او سیږی.
په تیز ین، جگد لك، سر خرود اوگند مك کی با بکر خیل او جبار خیل

او دلغمان دا لیشنگ په دره کی یوشمیر جبار خیل شته دی. چی ددوی
مشهور مشر سردار محمد شاه خان وچی شو کاله دمخه یی له جها نـــه

ستر گی پتی کړی دی او په همدی ډول ددغه ځای په شاو خوا درو او نورو سیمو کی ددغه ښاغ څانګی په خواره واره ډول ژوند کوی. احمدزی دلو کړ په ختیځه برخه التمور، سپکه او سرخ آو کی دکبیر غره په لویدیځه لمنه کی پراته دی، مګر خپل ما لونه د غرو لو له پاره ختیځ خواته تر جلال آباده پوری بیایی.

## علی خیل :

لکه څر نګه چی د نسب په شجره کی لیکل شوی . د سلیمان دو یم وروور علی نو میده چی دهغه نسل دعلی خیل په نامه یاد یږی .د علی خیلو ټول شمیر اته زره کوره ښودل شوی دزر مت سیمه چی په پښتو کی ور ته زر مله وایی ، نیما یی او سیدو نکی یی علیخیل دی . پاته برخه یی په مقر او نورو سیمو کی اوسیږی . دعلی خیلو د مندو زی ښاغ یوه څانګه اسمعیل زی دی چی دوی وړی څانګی یی بیندا خیل او چنګښ خیل نومیږی اوددری کوتی په نامه هم بلل کیږی دخو ست په سیمه کی ددوی تقر یبا څلور سوه کوره میشته دی دمقر په علی خیلو کی ښه سپاره مو ندل کیږی چی دوی له سپر لی سره ډیره مینه لری . ددوی نه پر ته په نوروسیمو کی هم ددوی لږ شمیر په همسا یه ډول او سیږی .

## اکا خیـــل :

اکا خیل د شمیر له مخی ډیر لږ دی ، دوی ځانته کومه بیله سیمه نه لری ځینی یی په مقر کـــی اوسیږی او اکثر په پوونده ډول ژوند کوی تغرا ن هم جوړ وی او هغه دله یی چی پوو نده دی دبار وړ لو لـه پاره عمو ما له غوایانو نه استفا ده کوی اواکثرادوړ یا تغراو بدو نکی اکا خیل دی او ښا یی دغه کسب دوی ته له نیکو نو نه پاتـــه وی، دوی دپوونده وبه پاره کیږدی، جوالو نه کندوا ن او داسی ډیر شیان جوړوی، دوی له خپل دغه کسب نه چی دپوو نده ودا حتیاج وړ شیان جـوړه و ی ډیره ګټه تر لا سه کوی مګر نـورافغا نان ( پښتا نه )دغه کسب تـه په سپکه ستر که ګوری ، کاکـــړدوړا ن کسب ګر یا پیشه وربو لی او کله چی څوك کوم کاګړ ته دغـه خطاب وکړی ، نو دغه خبره هغو ی ته دکنځلو مفهوم لری ، ویل کیږی چی په ټول افغا نستا ن کی داکا خیلو شمیر له زرو کور ونو نه لږڅـــه کـــم دی.

## انـــدړ :

دغه ښاغ دغز نی په سهیلـــــی برخو د شلگر په سیمه کی‌اوسیږی. اوپراخه سیمه اولوی میدان تقریباتو له داندړ و په واك کنی ده او په جامرادگی هم یو شمیر اندړ شته دی دجلال زیو دښاخ‌یو شمیروگړی‌هم په زرمت کی او سیږی داندړ ویوکلی دتو خیو د شیبا ر په سیمه کی موجود دي ددغه ښاغ تو ل شمیــــراتلس زره کورو ته رسیږی .

په اندړ و پورې مربوط یو ښاغ‌چی موسی خیل نو میږی دکاکړو له قبیلی سره‌په و صلی دول تــړل‌شوی دی ، ویل کیږی چی‌د مو سی خیلو له ښاغ نه یو تن داندړ و په ښاغ کی یوه ښځه وکړه چی دهغــه له اولا دی نه مو سی خیل مینځ ته راغلل چی دنسب او ځا نگو شجره‌یی وړاندی ذکر شوی ده.اکثره مو سی‌خیل په واغز کي د شلگر لو ید یځ خوا ته دهزاره وو له غره ســـــره‌متصلو سیمو کی او ځینی یی‌د گیرو دسیمی په پناه کی چی د شلگـــردسیمی سهیل ته مو قعیت لري پراته دی . اندړله تولوافغانانو د(پښتنو) سره یو یا دوه کوره دهمسا یه په دول او سیږی .

## تـــره کی :

په افغا نستان کی ددغه ښــاغ‌شمیرپنځلس زره کور و نو تـــه رسیږی او له دوه ثلثو نه زیــات‌خلك یی دایمی استوگنځی لـــری او یوه دریمه یی په پوو نـــده اوکوچی دول ژو ند کوی. دد وی‌اصلی تاتو بی د مقر او ناوی سیمه ده چی‌ددو ی د شمیر په تنا سب دهغو ی ملك او مقبو ضه سیمه وړه ده‌ځرنگه چی د مقر سیمی زیاته انـــدازه دعلی خیلو او خدو زیو په وا ك کی‌ده نوځکه یی دځمکی د لږ والـــی په سبب‌یی یوپردری‌برخه په‌ښپنتوب‌او دحیواناتو په روز لو ژو ند کوی ددغه ښاغ پوو نده خلك د منــی‌موسم په پیل کی دژمی‌د تیرو لـــو له پاره قند هار ته ځی‌او په پسرلی کی بیرته دمقرخواته په را تـــگ پیل کوی او دد غه تکرا تگ پـــه سبب په پښتو ژ به یو مشهور متل مینځ ته راغلی چی ویل کیږی :

## چې چو نګبنی وایي قر، تره کې وایي مقر
## چې‌چونګبنی‌وایي‌غا ر وایي کند هار

ددغه متل مقصد داذی کله چـــې دګرمي موسم په پیل‌کی چونګبنی‌د قر غږ پور ته کوی نو په دغه وخت‌کی تره کی کوچیانو ته خپل وطـــن مقر ور په یاد شی نود دوبی‌دتیرولو له پاره بیر ته مقر ته راځی . نـو کله چې چو نګبنی د یخنی درارسیدو له کبله دغار نار ی و هی نو تره‌کی دژمی دتیرو لو له پاره بیرته کندهار ته ځی او دغه متل او س ډیـر مشهور شوی دی . اوس دخان زو ی‌محمودخان تره کی، زمان‌خان،هارو ـ خان ، مر تضی خان ، او میراحمد خان‌ددغه ښباغ ملکان او خا نان دی.

### سهـــا ك :

د سها ك د نسل شجره ورا ند ی‌لیکل شوی ده ددوی تو ل شمیــــر تقریبا او ومزره کوره دی. دسها ك‌دښاخو نو نه یو سف خیل دشمیر له مخی ډیر دی د سها ك قبیلی دریمه برخه دخر وار په سیمه کی میشته ده او ځینی یی په زر مت کی هـــمژوند کوی . او پاتی یی په پغما ن بیګ تو ت او تګاو کی اوسیږی اوهمدا راز یو شمیر یی په لغمان اود هند و کش لړی په نورو سهیلـــی‌درو کی مو ندل کیږی . ځینی خلـــك اندړ اوتره‌کی دسهاك له او لاد ی نه بولی خو داخبره بیخی غلطه ده. سها ك داندړ او تره کی ورورو .

# هغه غلزي چي په نورو ملكو كې خواره دي

له هغه مقبوضه سيمو نه پرته چي پكي دميشته ښاغلو تفصيل يې پورته راغلی دی په ټول افغانستان کی دوه دوه ، دری ، دری يا کم و زيات غلجی په هره سيمه کی موندل کيږی چی د همسا يه په دول خواره واره پراته دی او هم له افغانستان نه دباندی په ترکستان او ايران کی هم ډير غلجی شته چی دوی اکثره دغو ملکو نو ته د ايرانی نادر شاه په وخت کی راغلی دی، خو په ايران کی دخپل عروج له وخت نه لږ پاتی شوی دی او د بلخ په هژده نهری کی اکثر غلجی اوسيږی ، دبخارا دازبکو په پوځ کی هم نو کری کوی دترکستانی غلجيو دو داود ـ ستور ، خوراك او پوښاك کټ مټ دازبکو په شان دی .

او ريدل کيږی چی په کرمان ، نرماشير جنس او اصفهان کی هم دغلجيو څو سوه کورونه شته او هندوستان کی هم ددوی پوښمير استوگنه لری او بهرنی غلجی په هر ملك کی چی او سيږی دهغه ځای داو سيدو نکو په شان ژوند کوی . دروم دارالسلطنت ته هم څو تنه غلجی له داغستان نه تللی او هلته ميشته شوی دی . لنده دا چی له افغانی (پښتنی) ټو لو قبيلو نه دغه قبيله په ليری ، ليری ملکو نو کی ليدل کيږی .

## دغلجیو دود او دستور :

دغلجیو په شان په یوه لو یــه قبیله کی چی په یوه پراخه اوارته سیمه کی‌استو گنه لری دیــو ډول‌دودونو او دستورو نو لرل ډیر کــم امکان لری . ممکن دی په داسی حال‌کی د قبیلــو د بیــلا بیلو ښنا خو او رواجو نو او دستورونو‌لیکل ضرورو نه کنل شی .د غلجی دقبیلی رواجو نه او دستور و نــه ددر انیا نو له روا جو نو سره ډیــر توپیر لری . دد ی قبیلی دخا نانــو اوملکانو واك او اختیار د درا نیود قبیلی دخا نا نو او ملکانو په خیــر نه دی .

په تیرو وختو نو کی چی دغلجی‌قبیلی خانان د ډیر ا ختیار خاو ندان تیر شوی دی په دی ډول دی لکــه شهاب الدین تو خی عبدا لر حیم خا ن هوتك ، مهتر موسی خان سلیما ن‌خیل ، محمد شاه خان‌جبار خیل، عزیز خان بابکر خیل ، خانا احمــد زی،دسلیمان خیلو له خانگو نه مو ســی خان تره کی ادرو ماما مو سی خیل،مو لیداد خان ( مولاداد خان ) خدا ی نظر خان، ماماسهاك بهاول خان اندړاو نور چی تر اوسه هم ددغو ملکانو کور نیو ته‌دعزت او اعتبار په سترگه کتل کیږی . خو او ښ امیر دو- ست محمد خان دوی‌ته پخوا نی عزت‌پری ایښی نه دئ .

دخان‌او ملك په انتخاب‌کی‌مور وثیت‌ته ډیر اهمیت ور کو ل کیږی خــود کابل امیراومحلی حا کمان هغه شو کغوره کنی چی مو ی‌ته ډیر ی پیسی ور کــړ ی .

ددغه قبیلی په تربیه او اخلا ق‌کی هم‌تو پیر مو جو د دی هغه خلك چی په دښتی او غر نی سیمو کــی‌ژو ند کوی دد وی‌کره ورِه ښــه ندی.

په تیره بیا اکثره سلیمان خیــل‌غله ، لاروهو نکی او وعده خلاف‌دی، خود لو گر او سیدو نکی ښــه د ی‌هغه غلجی چی په چهار دهی اودکابل په نور وشا و خوا کی اوسیږی هغه زیار کښی اودخپلو امیرانو اوخانانو تابع دی . ددوی پو ښاك او ځینی‌نوردودونه او دستور ونه دکابلد او - سیدونکو په شان دیْ . په خورا ك‌کی دغنمو فطیره ډود ی ، کور ته ژیر غو ړی او دپسه غو ښه ډیری‌استعما لوی ، پو ښاك یی له یــو

کمیس ته چی پراخ لستو نی لری او دهغه د پاسه د قبا په شان نه کو چنی چپنه په ځان اچوی .

دوړمی او سړ وپه مو سم کــــی دپسه له پو ستکی نه جوړ شوی یو او ږد پوستین اغوندی او یوه خراسانی خیرنه خولی بی ئی په سروی خوشتمن خلك په تیره بیا دلو یو ښارو نـــو یا هغو ته دنږدی سیمو او سیدو نکی ښه خو راك او پو ښاك لری . دد وی تر مینځ کور نی جنگو نه او شخړی ډیری دی چی دد غو گو ند یو او شخړولیکل ډیر اوږد کار دی . خودلو یـــو قبیلو ددښمنی بیا نول ضرور کنـل کیـــږی .

دهو تکو او تو خیو تر مینـــــځ ددښمنی څر نکوا لی په تیرو پا ئو کی راغلی په اوس وخت کی که څه هـم ددوی تر مینځ کومه جگړه نشتـــه خو په زړو نو کی چندان یوه بـــل ته پاك هم نه دی. دسلیمان خیلـــو او انـړو تر مینځ هم دښمنی موجوده ده لو ئما لی سلیمان خیل دسهـا ك له ښاغ سره دښمنی لـری، ممو ز ی دعلی خیلو سره او یو سف خیـــل دسهاکو سره پخوا نی دښمنی لری .چی آثار یی تر اوسه پوری هـــــم شته . په هم دی تر تیب ددغـــو ښا خو نو دوړو څا نگو تر مینـــــځ هم کور نی دښمنی مو جودی وی. کـه څه هم دوی عموماء دبهر نی غلیـــم سره دمقا بلی په وخت کی سره کـداو متفق کیږی ،خو په داسی وخـــت کی هم غواړی خپل دښمن تـــــه زیان ورسوی .

دغلجیو دقبیلی بهر نی قوی غلیم درانیان دی، چی ددوی د عداوت ، دښمنی او جنگو نو په باب معلوما ت په تیرو بحثو نو کی ولیکل شـــو ، خو اوس ددرا نیو او غلجیو تر مینځ کومه شخړه او جگړه نشته ددرا نیو پرته غلجی له خپلو نورو همسا یـه (گاو ند یو) قبیلو سره هم کله کله شخړی کوی .

دغلجیو نارینه عموماء ډیر تکړه او توا نا سپا یان دی ، ددوی دوسلو په باب خلك وایی چی د خلکو پـــــه تناسب یی دتوپکو شمیر یو پر څلور لږ دی دوی زیا تره پلیته یی تو پك استعمالوی خو چقما قی تو پك هم لـــری .

دهر سړی سره یوه توره وی خـــوځینی خلك یی تما نچی او چړی هــم سا تی ، سپاره یی عمو ماء نیـــزی کر ځوی .

دغلجیو دغم او بنیادی دود اودستور دنورو افغا نا نو (پښتنو) سره ډیر تو پیر نه لری .درو پیو یاجنس په مقا بل کی نجلی ودوی ا و شیربها ته ولور وایی ، کله چی کوژده وشی نو زوم دخپل خسر کور ته تګ راتګ کو لی شی اود خپلی په نامه شوی نجلی سره اوسید لی شی دغه عجب رواج ته چغل بازی وایی اوکله کله ددغی چغل بازی نتیجه داشی چی نجلی دخپل پلار په کورکی حامله یاداولاد څښتنه شی خو اکثره دغه حمل ته دحرامی په ستر که کوری او کو ښښ کوی چی دغه ډول جنین سقط کړی اویا هغه وخت چی داسی ما شوم دنیا ته راشی هغه په یوه ټوټه کی تاووی او پر لاره باندی یی پردی ترڅو یو لاروی یی له ځان سره وا خلی، خو که چیری دکوژ دی په وخت کښی شرعی ایجاب او قبول وشی نو داسی ماشوم نه ضایع کوی .

په مذهبی لحاظ غلجی دخپلو ملا یا نو او آخو ندا نو تا بع دی .هغوی ټول سنی مسلما نان او ډیر متعصب دی، خو شرعی احکام په صحیح ډول نه ترسره کوی. دد ښتو او صحرا او سیدو نکی غلجي لمو نځ او روژه په ښه ډول تر سره کوی او ډیر یی نه قضاء کوی. په هر کلی کی یو جو مات شته او ددغه جومات ترڅنګ یو بل ځای دعوامود کښینا ستلو له پاره موجود وی چی په دغه ځای کی دچلم څکول اود نورو اعما لو تر سره کول شرم نه ګڼل کیږی په دغه ځای کی چی دیوال یی له جومات سره شریک وی دیخنی په مو سم کی تل اور بلوی او خلك پکی را ټو لیږی او دغه ځای ته آتش خا نه وایی چی په حقیقت کی دغه ځای هم دجو ما ت جز وی، خو یوازی دیوه فټ په چکوا لی یو دیوال یی تر مینځ جوړ شوی وی .په آتش خا نه کی دمحراب په ډول یو ځای دچلم دایښود لو له پاره جوړ شوی دی.

دغلجیو په باب خلك وایی چی ددوی جو ما تو نه دوه محرا به لری یو یی لوید یځ خوا ته دلمانځه له پاره او بل یی ختیځ خوا ته دچلم لپاره .

## د ناصر دنسب شجره



# دناصرقبیلی بیان

دنا صر دقبیلی دنسب شجره ددوی نیکه پوری چی ناصر نو میده تر معه ځایه چی لاس ته راغلی ولیکل شوه . ناصر خپل نسب دغلجیو قبیلی دهو تکو ښاغ باندی ورکړ وی خو هو تك دوی خپل رعیت گنی نه دخپلی قبیلی ، خودا ادعاگانی دواړه غلطی ښکاری ځینی ناصرغوری شاه حسین چی دغلجی او لـو دی پلار وخپل نیکه بولی او ځینی یی خپل نسب په سید انو ور کړ وی نو ددغه اختلاف دمو جودیت په سبب مؤ لف یوازی او سنی حالات دلیکلو وړ بولی اوځکه نه غواړی دپخوا نیو حالا تو په باب څه ولیکی.

ځینی خلك وا یی چی ناصر دبلو څو له قومونه رابیل شوی دی که څه هم دهغوی ژبه پښتو او له افغانانو (پښتنو ) سره گډ شوی دی. خو ددوی څیری او شکلو نه افغا نانو (پښتنو) او په تیره بیا غلجیو ته ورته نه دی غالباء داسی ښکاری چی دغه قبیله یاد دوی لوی نیکه یه اصلی ډول له غلجیو سره یو ځای شوی دی .

دناصر ټوله قبیله پنځلس زره کوره شمیرل شوی ده چی له هغوی څخه لږ شمیر یی د کابل په شاوخوا کوهدا منسیمی په گل دره * شکردره اوحاجی کك او نورو ځایونو کی استو گنه لری * په دوی کی خوا جه میر خان لوی خان او قلندرپاچا یو مشهور عالم او فقیر دی، ا و پاتی تقر یباء ټول ناصر څمکه نه لری او په پوو نده ډول ژو ند کوی .له دی کبله ددوی دپوو ندهتوب لاری او مسیر تر هغه ځایه چی معلوم دی لیکل کیږی. دپسرلی په موسم کی له ختیځ دامان نه لږ دی او خبر یږی او هر یوه څا نگه دهوتکو اوتوخیو په ملك کی په گوښی ډول اوسیږی او ددغه ځایه دتجارت مالونه کندهار، کابل او نورو ځایونو ته دخرڅلاو له پاره وړی اوله خپلورمونه وړی اوپسو نه هم خر څوی او کله چی دو ښوکم والی احساس شی نو اکثراء داوړی په نیما ئی کی له یوی یادو کیږ دیونه یوه دیره جوړوی اودرمود پوولو له پاره

---

* په اصل کی دگلدری پر ځای «گاه دره» لیکلی ده . (رشاد )

* دکند هار داحمد شا هی ښارختیځی خوا ته دناصرو یو لوی کلی ستهـ دکندهار دار غندا وپه جو ی لاهور کی هم دنا صرو څو کوره اوسیدکو ټی په لور لایی کی هم څه دپشین ناصر سته . (رشاد)

دوښود پیدا کو لو تلاش کوی او په ورو ورو منزلو کی خپل مالو نـــه څروی. دمنی موسم په پیل کـــــی دجرگی په ډول سره راټو لیـــږی او خپلی کیږدی ټولوی اوگرم میدان یعنی دامان ته چی ددیره اسما عیـل خان په ضلع کی پورت دی روا نیږی. دوی دلیږدونی په پیل کی په دووبرخو ویشل کیږی خان یامشرد قبیلـــی لاربنو نه کوی چی لومړی کو مـــه برخه باید حرکت وکړی دخو مز لـو تروهلو وروسته دا دواړه بر خی

گومل ته نږدی په کنزو رکی سره راټولیږی اوهلته ټول پوونده چی دامان ته د تللو نیت لری سره راټـو لیږی ، کله چی دغه خلك لــــه خپل لو ید یځ تم ځای نه روا نیږی. دشاړو او غیر آبادو سمیو نه تیریږی چی هلته ددوی دملګرو نه پر ته هیڅ څوك نه لیدل کیږی خو کله چـــی

کنزور ته ورننی دی شی نو اکثرآلاری د نــو رو قبیلو د حیـــوا ناتو او رمو په ذریعه بند یـــږی او ځینی وختو نه د دواړ وقبیلـــو رمی او گلی په تنگو لارو کی سره گډ یږی او کله کله دوړا نــدی ورو سته کید ود تکرار په سبـــب دقطار په ډول وړا ندی تگ کو ی ، تر څو په پای کی دغه ټول چـــی دگلو، حیواناتو ، رمو، انسانانـــو او کیږد یونه جوړ شوی دی کنزورته رسیږی په لو مړی سر کی ببــه

ددغه جمعیت شمیر دیرشو زور ته رسیده، خو اوس هریوه پوو نـده قبیله دخپلو بیلا بیلو دلوسره راځی نو له دی کبله په هغه اندازه خلـك په یوه ځای سر ه نه را ټو لیـــږ ی لنده داچی دغه خلك د ورځی لـه خوا دمالونو څرولو په منظور هری خواته خپریږی اودشپی له خـو اد مغا فظت په منظور سره یو ځــا ی کیـــږی .

هره قبیله دخپل انتظام له پا ره ځلو ینبتان ټاکی اود دامان خوا ته روا نیږی . په دغه وخت کـــــــی دوزیر وخلك ددوی دلو ټو لــــو تیا ری نیسی او په خپلو غرو نو کی دو ی دتگ راتگ ځای ته نږدی سره

ټو لیږی او یو یا څو تنه جا سوسان لوړو غرو نو ته دکار وانو نــــو دلید لو له پاره استوی ،کله چـــی قا فله وگوری نود وزیر ودغلـــو

دلی دمال دلوټولو پـــــه نیت په نا صرو باندی یر غل کوی او پـــه هره اندازه زیان چی ورسولی شی ورسوی یی په دغو خطر نا کـــو ورځوکی چی تقریباء یوه او نـــی یا لس ورځی دوام کوی نا صر تـــل دهری ناڅاپی پیښی له پاره تیار وی او ځلو ینبتان داخلی شخړی بند وی. تر څو چـــــــی د بهر نی غلیم دحملو مخنیوی له پاره تیار وی. ټو له

قبیله په یو ځای سره ځلو ینبتا نانتخا بوی دوی دکار وان دښی کینی لو وراندی ورو سته بر خو سا تنه کوی .

دغه محافظه دله اکثراً پلی اوخپنی یی سپاره وی او وار په وار دحملی دفع کولو له پاره چمتو وی‌پاتی ناصر نر او ښځی د حیوا نا تو

دگلو او رمو سره روان وی او تول‌مسلح سړی دد ښمن دحملی له پاره تیار وی ، خو وزیر غله هـر کا ل‌دوی بی له دی چی کوم ستر یا کو —

چنی زیان یی ور رسو لی وی‌هغوی‌نه پر یږ دی . وزیر نه یـوازی دنا صرو ، بلکی د تو لوپو نـدوو کلك دښمنان دی،دوی‌عموماً د دغه ډول دښمن له ملك نه ځا نو نـه دزړ گنی دری له لاری ددا مان‌میدان

ته رسو ی او هلته خپر یږی پـه دا مان کی هره قبیله ځان ته بیـل ځای لری چی هلته دوی په ژ مـی کی استو گنه غوره کوی دمالو نود

څرو لو په وخت کی چی‌په هر ځای‌کی ښه څر ځایو نه ومو می هلته د خپلو حیوا ناتو گلی او رمی پیا یی‌په دغه وخت کی دوی پـه‌داده زړه

خپل ژو ند کوی . او دانگر یـزی‌سر کار د ښه انتظام له‌مخی دوی‌په امن اوآرامی سره‌شپی‌ور ځی تیروی.هغوی دبیکار ی په وخت کی ښکیار

کوی ښځی نور کارو نه لکه‌د ډودی پخول یاداوبو راوړل ، او نـوری کورنی چاری سر ته رسو ی .اوددی‌تر څنگ دلر گیو راو ړل اودکیږدیو

درول هم د ښځو له کارو نو نـه شمیر ل کیږی . دنار ینه و کاردادی چی میږی، اوښان او دنورو حیواناتورمی و څرو ی دد غه کار له پاره لږ شمیر سړی کفا یت کوی .

دنا صرو دتجار ت دځر نگوا لـی‌په باب معلو مات په لومړی بر خه کی دنورو تو لو پو نده‌وو سره یـوځای و لیکل شو . دنا صرو قبیلـی

ښځی اکثراً مخو نه پټوی او ښکلـی‌هم دی . او کله چی ژمـی تیر اود سلیمان غره واور ی ویلی شی نـوددغه قبیلی دبیلو بیلو ښا څو نـو

ملکان یوه ور ځ ټا کی او په دغـه ټاکلی ور ځ لوی ملك یا خان تـه دجر گی په ډول ور ځی او هلته راټو لیږی او په دغه جرگه کی‌دبیرته

تگ لاری او ور ځ ټاکل کیـږی .اوپه دغه ور ځ خپلی کیږدی تو لوی او په هغه ډول څر نگه چی راغلی‌وو دپسر لی په مو سم کی بیر ته

ځی چی دغه کار ددو ی همیشنـــی‌دستور او هر کال ور با ندی عمـل کوی ، پوو نده‌نا صر په تجار ت اومالدار ی‌باندی گو زاره کوی هغو ی

دخپلو میږو له وړیو نه کـیږ دی، تغر او نور ضرور ی شیان او بی او دپسو نو له پو ستکو نه پوستینونه هم جو ړوی اوله شیدو نه یی کوچ،

بهتیو او کرت ترلاسه کوی. د پسه غوښه په میلمستیا وو کی استعمالوی . په دوی کی داو ښانو، غوا یانو او په تیره بیا د پسو نو رمی ډیری دی . دوی ټل ددې هیله لري چې خپلو رمو ته په خپل وخت خواړه ور ورسوی او ددغه کار د ترسره کیدلو له پاره ډیر تلاش کوی . دنا صرو کیږدۍ وړی او سپکی وی دد وی دکورو نو اسباب دلیږ د په وخت کی عموماً له دی شیانو نه عبارت دی. یوه یادو ی جوړ ی کالـــی ، داوړو پیوالونه، یو یا دوه مسی یا خـاورین لوښی .

دنا صرو پو ښاک دلو ید یځواوختیځو افغا نانو تر منځ وی، خلك یی اکثراً غنم رنګه ، منځنی و نی او بدرنګ دی *ځینی ناصر بی آزاره او ربښتینی خلك دی . په دوی کی دخان اولوی ملك اختیار ډیر زیات دی . ناصر د عبدا لرحیم خان هو تـــــك له وخته یو اندازه محصو لدهوتکو خان ته ورکوی . دپوو نده نا صرو لوی ملك شهزاده خان ډیر ښه سړی وچی سږ کال یی له نړی نه سترګی پټی کړی .

مدت خان (مددخان) ، الـــه دادخان ، میر عالم خان، دو ست محمد خان او نور ددوی ملکان دی.

## دخرو تو ښا غ :

دغه خلك خپل نسب د غلجیو له دښا غ نه بو لی او دهغو ی نه یـــی ځینی وایی چی مونږ دتو خیو له ښاغ نه بیل یو ، خو غلجی دخرو تـــو ښاغ په خپل نسب نه ور کډو ی او داسی وایی چی سها کاو ایزب دواړه یوه ور ځ په یوه لاره تیر یـــدل، وړاندی یی یو بار کړی خرو لید ه،

*ما چی دکند هار او شکر در ی ناصر لیدلی دی ، بدرنـــګ نه دی بلکه ځینی یی خورا ښا یسته، دی. ( رشاد)

خروټي د نسب شجره




۵۶

ایز ب وو یلچی خر زما دی اوسهاکوویل چی باریی زما دی کله چی خو
او باریی ولیدل نو دبار یوی خواته داور بشودود ی او بلی حوا تـــه
پو کو چنی ماشو م و او سها کدغـه کوچنی ماشو م خپل کور ته راوست

اود خره دبار او دود ی په سببچیپه پښتو ژبه کی اور بشینه دودی
درو تی په نامه بلل کیږی په هغه ماشو م باندی یی دخر رو تـــــه

(خرو تی ) نوم کیښنود *. کله چیخرو تی د بلو غ سن ته ور سیـده
نو دخپلی کور نی له یوی نجلـــیسره یی واده و کړ چی دهغی لـــه

بطن نه دخروتی دری زامن وز یـږیدل چی دهغو ی داو لادی شجـــره
اوښا خونه وړا ندی دنسب پـــه شجره کی راغـــلی دی . او له دی

کبله چی د هغو ی دلو ی نیکه نـومخرو تی و نو ځکه دغه ښاخ دخروتی
په نامه و بلل شو . دد ی ښاخ شمیر تقریبا شپږه زره کوره ښود ل شوی
دی .

خرو تی په هغو غرو نو کـــــیاوسیږی چی د کتواز په ختیـــځ
دسلیما ن د غره د مربو طوسیمو په تر بر ملی پور ی پرا ته دی.دخرو

تو دملك یوه برخه دار کو ن سیمه ده ، چی په هغه کی پر مولی یـــا
پر ملی دتا جکو د قومیو ښاخ هـــماوسیږی . خروتی په ځینو هغو تنکو
میدا نونو باندی هم قبضه لری چـیپه منځ کی یی جك او سختغرو نه

مو قعیت لری . دوی څلور لوی کلیلری چی په دغو کلیو کی سر روضه
لومړی مقام لری اوپنځه سوه کوره پکی میشته دی . دپو ونده خروتونه

پرته نور پاتی اکثرا خرو تی دځمکوپه کر نه بو خت دی . دد وی دکرنی
وړ ځمکی که څه هم دکتواز نه ښیدی خو دکال یو فصل کوی او پـــه

ژمی کی د دریو میا شتو له پاره تـــرواورو لاندی پټی وی . دو ی پـــه
غوا یانو او غواوو باندی پو ی کوی، له دی کبله چی د هغو ی سیمـــه

غر نی ده‌د پسو نو په تنا سب وزی ډیری ساتی ، هغوی ډیر او ښا نهم
ساتی چی په اوارو او میدانی بر خو کی یی څروی . ددوی اکثرا دو دونه

سهیلی سلیما نخیلو ته ور ته دی ،خوپو ونده خرو تی د نورو پو ونده
ویه ښان دی . او په ژبه کی یـــیتو پیر مـــــو جـــود د ی. دو ی

*دا مضحکه وجه تسمیه ده او له حقیقته ډیره لیر ی خـــبره ده .
(ارشاد )

دوزیرو ، ځدرا نو او پر ملـــی قبیلو سره ډیره کلکه د ښمنی لری. دوز یرو او خرو تو د قبیلو ترمنځ دد ښمنی اصلی علت دبر مل سر دی چی په دغه غره با ندی تل دخرو تواوو زیرو تر منځ وینی توین ی . ددی شخړی اساس دابدا لي احمدشاه په زما نه کی را منځ ته شوی ویل کیږی چی په هغه وخت کی دوزیرودقبیلی ملك قمبر نومیده چی دتو جیا خیلو د ښا غ‌شخه و اود خرو تو ملك شمس الدین و، خرو تو ویل چـــی برمل زموږ دی او وزیرو ددو ی ادعاردو له اوهغه یی خپل گا نه کلــه چی دغه د ښمنی دسو لی له لاری فیصله نه شوه نو په پښتو ژبــه یوه بیت جوړ شو چی ددغــه حـــال درو ښا نو لو له پاره دلته راو ړل کیږی :

پرمل پیغله نجل ځینه پریبښـــی .شمس الدین وایی ځما ده قمبر وایی زما په غیږ کی ایښی . له دغه بیت نه مقصد داد ی چی پر مل هغه پیغله ده چی خپلی زلفی یی جوړی کـــړی دی ،شمس الدین یعنی دخرو تو ملك وایی چی زما ده او د وزیـــــــــرو ملك قمبر وایی چی په غیږ کی مـــی پر ته ده یعنی زما په وا ك کی ده.په پای کی ددغی دعوی په سبب دخروتو او وزیر تر منځ جگړه پیښه شوه په دغه جگړه کی خرو تو د مار زك ښاغ پری نښود چی له دوی سره یو ځای شی په پای کی یی دوزیرو له لاسه ماته و خوړه او هغه وخت چی یی دمارز ك له ښا غ نه مرسته وغو ـ ښتله چی ددغی پیښی په با ب هم دپښتو ژبه کی یو بیت شته ، لــه دغه وخت نه مار زك ښا غ ته یــو بیل نوم ور کړل شو .دوی له پرملیو او ځدرانو سره هم دگاونډ یتــو ب په سبب سخته د ښمنی لـــر ی هغه خرو تی چی په دایمی ډول ژو ندکوی دخپل ملك دمو سم په سبب هغو ی هیڅ کار نه کوی دمنی دپای تـــه رسیدو نه وړا ندی دغه خلك دسون لرگیو ذخیره برابر وی او په ژمـــی کی یواز ی ددوی کاردادی چی دخپلو کورو نو له بامو نه واور ی وتو ړی اویا له یوه کور نه بل ته دتـــک راتگ لار ی پاکی کړی په دو ی کی هغه خرو تی چی غریب دی او دژمی دځلورو میا شتو سختی نه شـــی زغملای نو هغو ی تو د وملکو نو ته ځی او دخپل ځان سره اکثرا غوا یـــی او ښان بیا یی . داخلك دگو مــل دواد ی تر سهیلی بر خو پوری ځـــی او د پرمل او وانی خوا ته هم راځـــی او دپسر لی په مو سم کی بیا خپـــل تاتو بی ته ځی پوو نده خلك دو ی غوا یوال خروتی یاد غوا یانو ښتن خروتی بو لی ، په لومړی سر کـــی

دری سوه کور نیو خپله برخه ځمکی‌خو شئ کړی او دنا صر و په شتان یی دلو چیتوب ژو ند غوره کړ دغه عمل تقریباً اویا ٪ له وړا ـــدی تر سره شو او خرو تی دخپل لومړی‌پوو نده ژو ند داختیار و لو سبب دا بو لی چی دملك دتنگ والــــی‌اودگرد چاپیر ه غرو نو د شتوا لی له امله ددوی ابا دی زیا تید لی‌نشوی‌او دهغو ونو د سیور ی په سبب چی په دغو غرونو کی‌په کڼ ډول مـــوجودی دی ، دهغو ی دحیوا ناتو له پاره په پوره اندازه خواړه نه شــی‌برابر ولی ، کله چی ددوی شمیـــر زیات شو د ځمکی دکم والی له امله هغوی په تنگ شول ، ددی له پاره چی دهر سړی میرا ث دهغه نار ینه اولاد ته دشر عی ویش په اسا س ور تقسیموه او دد غو برخو لږ والی‌ددی سبب شو چی دهر سړی‌گوزاره ور باندی ونه شی .

نو ځکه ډیرو خلکو خپله ځمکـــه‌ورو نو ته پر ینښود له او پـــــه شپنتو ب او پوونده ژو ند یی لاس‌پوری کړ . ورو سته چی پوو ـــده خرو تو د خپل همت او کلك عـــزم‌په واسطه دتجار ت په سبب یوڅه شته تر لاسه کړل نو په هما غــه‌ډول دپوو نده وو په شمیر کـــــی زیا توا لی راغی خو تر او سه هـــم‌دمقیمو خرو تو شمیر دپوو نـــده و خرو تو دشمیرپه پر تله زیا ت‌دی.اوس پوو نده خرو تی هغو ی تـــه یوازی دیوه ښا خ په ستر که‌گوری‌او نور د خرو تو په ملك کی ښـــه غرض نه کوی او کله چی دغه‌خلك‌دداما ن او نورو لو یدیځو حلقو نه بیر ته راستنیږی نو د خرو تو ملك‌ته نه ځی، بلکی د لویدیځ افغا ــ نستا ند شلگر سیمی ته چی‌دغز نی‌په شاو خوا کی مو قعیت لـــری او نورو سیمو ته ځی . او یوا زی‌سړی‌یی تجارتی مالو نه‌د خر ځلاو لـــــه پاره وړی او لیری لیر ی ملکونو ته‌روانیږی او کیږد ی، کورنی د ما ــ لونو او حیواناتو سره په یوه منـــا سب ځا ی‌کی‌چیر ته چی ښه ښـــــ ځایو نه موجودو ی پریږ دی چـــی‌دوی ته اوبښ وال وایــــی. ددو ی‌د تجار ت په باب معلو مات په لومړی‌باب کی و لیکل شول ، دلته یوا زی ددی خبر ی‌لیکل ضرور ی دی چـــی‌پوو نده خرو تی او س دتجار ت په چارو کی ښه مشهور اود ښو شتـــوخاوندا ن دی. اوس دخرو تو مشهور ملکان دشا دی خان زو ی، روشن‌خان‌شامو خیل ، زکو خیل اود حکو مـــت خان زوی سرور خان الو خیـــل دی.ددوی نه پر ته په پوو نده خرو تو کی احمد خان محا مد نظر شاه، عمرخان او کریم‌خان ملکان دی. دپوونده خروتو دود او دستور په عمو مـــی‌ډول دپو ونده وو نا صر و پــــه شان دی .

## د محمد وزی ښاخ :

دغه ښاخ اکثراً دمقر په سیمه اوعلی خیلو غلجیو سره یو ځای پراته دی او په مقر کی یوه اندازه ملکیت هم لری .

کند هار ته نږدی په ده خوا جه کی هم ددغه ښاخ تقریباً دوه سوه کوره میشته دی . دوی خپل نسب کله سیدانو ، کله درانی پو پلز یو او کله غلجیو ته منسو بو ی اوداسی ښکاری چی دوی به غـالبـاً دغلجیو د قبیلی یو ښاخ وی خو .دنسب سلسله یی پور ه ترلا سه نه شوه په ټول افغا نستا ن کـی ددغه ښاخ دوه زره کوره شته دی او عموماً دکرنی په چارو بـو خت دی .

## د ژمر یا نیو یا جمر یا نیو ښاخ:

دغه ښاخ د تو خیو د قبیلـی پیرا ن دی او خپل نسب په سیدانو ورکوی جمر یانی اکثره دتو خیوپه ملك کی استو گنه لری ، خود کابل نه تر کند هار ه پوری په متـفرق ډول په ډیرو ځایو نو کی یو یا دوه کوره او سیږی . دو ی دکر نی پـه چارو او ځینی یی په سودا گر ی او نوکری بوخت دی. په ټول افغـانستان کی ددغه قبیلی تقر یباً زر کوره شته دی . دو ی دنو کر ی‌اوتجار ت په دواړو کارو نو کی‌وړاندی تګ کړی او د ښو شتو خاوندا ن‌دی .

## دلودی قبیله :

دنسب له شجری نه څرگنـدیږی ابرا هیم چی په لودی سـره شهر ت لری او دهغه له نسل نـه دغه قبیله منځ ته راغلی ده د شاه حسین زو ی و . دشاه حسین داصل او نسب او همدا راز دلودی دتسمیی دو جهـی په برخه کی دد غـه باب په پیل کی رڼاچول شوی ده. لکه څر نگه چی په شجره کی لیکـل‌شوی دی دغه مشهوره قبیله پـه لومړی سر کی په دریو ښا خونـو ویشل شوی ده یعني سیا نی، نیاز ی او دو تانی .اوس زمونږ په دوره کی‌دغه قبیله د افغا نستا ن دلو یـو قبیلو څخه نه شمیر ل کیږی‌دخدای(ج) شان دی چی په یوه زمانه کـی ددغی قبیلی څو تنو پاچا یانو په ټول‌هندو ستا ن باندی حکم چلاوه خـو اوس دغه خلك ډیر مشهور نه دی.دهغو افغا نی (پښتنی) قبیلو دتاریخ له څیر نو نه چی په پخوا زما نـوکی هندو ستا ن‌ته را غلی داسـی څرگندیږی چی ددغو قبیلو زور اوقوت دهغو ښا خو نو په نسبت چی اوس په افغا نستا ن‌کی او سیږی لږ و .

# دابراهیم یا د لودی ابن شاه حسین د نسب شجره



## د اسمعیل بن سیانی د نسب شجره



د لوحانی بن اسمعیل د نسب شجره

لومړی د ده نوم نوح و او نسل یې د نوحانی په ځای لوهانی بولی



د نیازی بن لودی د نسب شجره




د وضاحت او شجره د دغه کتاب په
دریمه برخه کي راغلي دي

اوس په افغانستان کې د سیاڼی ابن لودی له او لادی نه د لوما ني
ځانګه د نورو ځانګو په نسبت هم د شمیر او هم داستعداد او شتمنی له
مخې بر تری لری . دد غه ښاخ نه ورو سته د نیازیو ځانګه دو یم مقام
لری خو ددغه ځانګی خلك دعیسی خیلو او سر هنګ کو چنیو ځا نګو
نه پر ته نور اکثراً په متفرق ډول ژوند کوی .
ددو تا نیو شمیر خورا لږ دی . اوس دلو دی قبیلی دهر ی ځانګی
په باب په تفصیل سره تر هغه ځایه چې لاس ته راغلي دی بحث کیږی .

## دپړ نګی ښاخ :

د لودی د زوی سیاڼی له دووزامنو نه پړ نګی یی مشرو چې له
هغه څخه دغه ښاخ منځ ته راغلی دی . په پیل کې دد غه ښاخ خلك
په لویدیځ افغانستان کی اوسیدل خو ورو سته له هغه ځایه دسلیمان
غره ختیځی خواته د دامان سیمی په تاك او روړی نو می ځایو نو کی
میشته شول چې د دیری مودی راپه دی خوا دوی په دغه سیمه با ندی
قبضه لر له تر څو دبابر دواکمنی په دوره کې د دولت خیلو، میا خیلو
او مروتو قبیلی او همدا راز دلوحانی دنورو ځانګو نه دغه سیمه
جبراً او په زور سره ونیول شوه او دپړ شمیر پړ نګی وو ژل شول او
پاتی یی متفرق او خواره واره اودخپلی ځانګی له نورو پړ نګیو سره
دهندو ستان په مختلفو سیمو کې ځای په ځای لشول اوس حتی په
افغانستان کې دپړ نګی له نوم سره هم څو ك آشنا نه دی .
خو د هندو ستان په مختلفو ځا یونو کې دوی د لودی افغا نانو (پښتنو)
په نامه استو ګنه لری . په روپړاولود یانه نومی ځایو نو کی هم دد غه
ځانګی خلك میشته دی په د کن کی هم ددغه ښا خ څو کوره شته . هغه
سړی چې دهغه په سبب دلود یا نوتولی قبیلی شهرت ومو نـد دپړ
نګی د ځانګی ډ چې دهغه کیسه. په لنډ ډول داسی ده .

# دهندواکمن بهلول لودی

د سلطان بهلو ل د نسب شجر ه په مفصل ډول وړا ندی ذکر شوی ده. داسی روایت شته چی څو تنــه لودی افغا نان (پښتا نه) په خپلــو منځو کی سره ملگر ی وو او تل به یی دسو دا گری په منظور هندوستان ته تگ راتگ کاوه دد غی ډلی نه یو تن د سلطان فیروز شاه باربك دوا کمنی په دوره کی چی ملك بهرم نو میده او دملك بهلو ل لود ی نیکه و دخپل مشر ورور نه خپه اوملتان ته را غی او هلته دملتـــان دحاکم مر وا ندو لت سره نو کـــرشو او کله چی خضر خان دفیـــروز شاه له خوا دملتان حاکم و تاکل شو نو ملك سلطا نشاه دبهلو ل تـــره دهغه سره نو کراو د تو لوافغا نانو (پښتنو) افسر شو .له نیکه مرغــه په هغه جگړه کی چی دخضر خان اوملواقبال خان تر منځ پیښه شوه نو سلطان شاه دجگړی په وخت کــــیملو اقبال خان وواژه او خضر خا ن ددغه خدمت په بدل کی هغه د ډیـرعزت خاو ند او داسلام خان لقب یی ورکړ او دسرهند حکومت یی‌ده ته و رو سپاره چی نور ورو نه یی هم له ده سره اوسیدل ، خو ملك کالاد بهلو ل‌پلار دملتا ن صو بدار نصیـر خان سره ملازم واو دکما نگرانو په محله کی او سیده . یوه ورځ ملك کالا د ور سپارل شوو کارو نو لـــه پاره بهر تللی و چی د ډیر بارا ن داور یدو په سبب دهغه دکور چــت دده پر ښځی چی حامله وه راولویده که څه هم دهغه میرمن په دغـــه پیښه کی مړه شوه خو په گیډه کی یی ماشوم ژو ندی پاتی شو او پـــه دغه ماشوم باندی یی دبهلو ل نـــوم کیښود .دا هغه بهلول دی چی پاك‌خدای هغه و ساته او د ټول هندوستان واکمن شو، لنډه دا چی کلـــه دبهلو ل پلار ملك کالا دنیاز یو سره په جگړه کی وو ژل شو نو بهلول‌دخپل تره سلطا نشاه سره چی‌داسلا م خان لقب ورکړل‌شوی و او د ســـرهند حاکم و او سیده .ده هلته‌خپله پو هه لیاقت او کلك عزم څر گنـدکړ او سلطا نشاه خپله لور بهلو ل ته په نکا ح ور کړ ه او وصیت یی‌وکړ چی له ده نه ورو سته به دی مشر وی . دسلطا ن مبار ك شاه ترشهاد ت ورو سته سلطا ن محمدشاه بهلو ل دده دخد متو نو او زړه‌ورتیا په سبب دی خپل زو ی و باله اود سر هند نه نیو لی‌تر ملتان پور ی‌یی ټول پنجا ب هغه ته دجا گیریه

ډول ور کړ او د جسرت ګهکـــړ د ټکولو دنده یی ده ته ورو سپار له
خو جسرت بهلو ل د ډیلی دتخـــت نیو لو ته راغب او شو قمن ولیده په
خپله په دغه لارکی دده ملا تــړشو . هغه وخت چی بهلول ته د تخت
نیولو فکر پیدا شو نو ور ځ پـــه ور ځ یی خپل قدر ت زیاتاوه تر هغی
چی سلطا ن محمد شاه له جهان نه ستر ګی پټی کړی او دهغه زو ی چی
علاوالد ین نو میده پاچا شو. خو دی تر خپل پلاره هم کم زور ی اودسستی
اراد ی خاو ند ونو په دغه وخت کی بهلو ل له چالا کي نه کارواخیست
او څر نګه چی علا والدین بداو ن ته لاړ او هلته دعیش او عشر ت پـــه
دریاب کی ډوب شو نو نو مـــوړی دحسام خان او حمید خان فسادو نـــه
(اغتشا شو نه ) له منځه یــو وړل اود (۸۵۵) هجری کال د ربیع ا لاول
دمیا شتـــی په او لسمه نیټه چی دد (۱۴۵۰) ع کال سره سمو ن خوری
دډیلی په تخت کښینا ست او سست مزاجه علاو الدین یولز ی په بد اون
باندی قناعت و کړ .او بهلو ل تـــه یی ولیکل چی زما پلار سلطا ن محمد
شاه ته خپل زو ی بللی وی زه هم تاخپل مشر ورور ګنم او پاچا هـــی
تاته سپارم .لنډه دا کله چی بهلول دسلطنت واکی ترلاسه کړی دسلطان
لقب یی غوره کړ او دخپل لوړ همت په وجه یی دهندو ستان اکثـــره
سیمی تر لاسه او یاغی او خپل سری خلك یی تابع کړل او دخپل قـــدرت
دټینګولو او د ځان دپیاوړ تیا لـــه پاره یی تر هغه ځایه چی امکان یی
لاره له افغانستان نه یی افغـــانان (پښتانه ) وغو ښتل اوپه خپل پو ځ
کی یی تنظیم کړل او دا سی فر مان یی جاری کړ چی هغـــه افغـــانان
(پښتانه ) چی په هندو ستان کـــی دی که دپوځ دخد مت نه پر تـــه
کوم بل کاررو کړی نو دهغه شتمنی او جا یداد به لو ټ شی. بهلو ل د
ډیر لوړ همت اوپوه پاچا و نو موړی دسلطان حسین جونپوری سره څو
ځله جنګیدلی او هغه ته یی ما تـــه ورکړ ی وه . په پای کی ترا تـــه
دیر ش کاله پا چا ئی ورو سته په (۸۹۴ ه یا ۱۴۸۸ ع) کال کی لـــه
نړی نه ستر ګی پټی کړي اوورپسی هغه زوی نظام خان په تخـــت
کښینا ست.

## سلطان سکندر

دبهلول لودی تر مړینی وروسته دهغه زوی نظام خان دسلطان سکندر په لقب دهند واکمن شو او دخپل پلار ځای یی ونیوه . نوموړی با تدبیره ، لوړ همته او حلیم سړی و، او تر (۲۸) کاله او پنځو میاشتو سلطنت وروسته یی له فانی جهانه سترگی پټی کړی .

## سلطان ابراهیم

دسکندر تر مړینی وروسته دده زوی ابراهیم خان دسلطان ابراهیم په لقب پاچا شو ، خو دهغه ورور جلال خان په ځان دجلال الدین نوم کیښود او دپاچاهی دعوه یی وکړه او یو لړ فساد ونه او اغتشا شونه یې را منځ ته کړل له بلی خواد سلطان بهلول زوی شهزاده عالم خان دسلطان علاو الدین لقب غوره او دسلطنت مدعی شو خو کله چی په ځان کی یی دسلطان ابراهیم سره دمقابلی توان ونه لیده نو په کابل کی چغتای محمد بابر شاه ته ورغی . همدا راز په هندوستان کی هم اکثره امرا او افسران دسلطان ابراهیم دتیری او ظلم نه په تنگ شول او ددغه کورنی دله منځه وړ لو ملا یی وتړله ، ددوی له منځه دلاهور حاکم دولت خان لودی دمخالفت جنده او چته او بابر یی دهند نیو لو ته تحریک اووهڅاوه، هغه ته یی هند ته دراتلو بلنه ور کړه . او په پای نی پت کی دسلطان ابراهیم شاه او محمد بابر تر منځ ډیره خونړی جگړه وپیښه شوه چی بریالیتوب بابر ته ور په برخه او په خپله سلطان ابراهیم په دغه جگړه کی وو ژل شو او د ډیلی او اگری پاچاهی دامیر تیمور کورنی ته ور انتقال شوه . دسلطان ابراهیم پاچاهی شل کاله دوام وکړ . دابراهیم تر مړینی وروسته دپړ نگی له کورنی نه هیڅ څوک پاچا نه شول .

# دسوری قبیله

څر نګه چې دنسب په شجـره کی را غلی دیٔ دسیانی دزوی پر - نګی دوهم ورور اسمعیل نو مید ۰اود اسمعیل له در یوزا منو نـــه مشر یی سور نو میده چې دده نسل دسور یا سور ی په نامه یا دوی او ددغه کلمی نه مقصد په پښتــــو ژبه کی سور رنګ د ی اودسـو ر کور نی دپر نګی له کور نی سره یو ځای په دامان کی میشته وواو کله چې له دغه ځایه ولیږد یـدل نو په هند وستان او افغا نستــان کی خوا ره شول . لکه څنګه چـی اوس هم په دامان کی دسو ری او پر نګی څو کـــوره میشتـــــه د ی دراو لپند ی ضلعی په چهچه کی هم دیرش کوره لود یان اوسیږ ی، خو په افغانستان کی دغه کورنی دوړ کیدو په حال کی ده.

## سوری شیرشاه

دسوریٔ کور نی دنا مه داوچتوالی او شهرت سبب سو ریٔ شیر- شاه ګنڼل کیږی . نو مو ړی په ډیر ښه تد بیر او انتظام سره پـــه هند کی وا کمنی کړی ده. دد غـه کورنی د نسب شجره د شیـــــر شاه دلمسی نه پیل او تر لودیٔ پور ی دښا خو او ښا نګو سره په مشـرح ډول ولیکل شوه .د شیر شاه پاچا کید لو او هند ته دد غه کور نی دمها جرت څر نګوا لی په دیٔ ډول دی دسلطان بهلول لودیٔ په دوره کی اکثره افغا نان ( پښتا نه ) دنومو ړیٔ سلطان دفر مان له مخـــی دنو کری له پاره هند ته ولاړل په هغه وخت کی دشیر شاه نیکـــــه ابرا هیم سور له خپل زوی حســـن سره دنو کری په شوق او هیلـــه در وه له ملك یا ختیځ افغانستان غر نیو سیمو نه هندو ستا ن تـــه راغلل او دمغل دافسرانو له یوتن سره نو کر شول څه مو ده دفیر وزی په کلاکی چی اوس زموږ پـــــــه دو ره کی یوا ځی د حصار پـــــــــه نا مه بلل کیږی او هم څه مـــو ده یی د نار نول په پرګنه کـــــــی تیره کړه ، دابرا هیم زو ی حســـن بن ابرا هیم سور څه موده پــــه بجواړه کی دمتهی خان سره ودسلطان بهلول په دو ره کی کله چی دحسن زو ی دنیاته راغلی نو دفر ید نو م یی ور با ندیٔ کیښود اود لـــو دی سلطان سکندر په دوره کله چـی جما ل خان ته دجو نپور حکو مـــــت ور کړیٔ شو، نو هغه حسن ســـورته چی دده پخوانی ملا زم وسهـــرام

پور خوا صبور او تا ندي دجا گير په دول ور كړل او دپنځه سوه ميرو ستر يي وتيا كه دحسن له انو زامنو نه فريد او نظام له يوي موره وو چي مور يي په خته پښتنه وه او نور زامن يي له افغانانو (پښتنو) نه پرته د نورو قومو له ميرمنو نه دنيا ته راغلي وو او حسن دخپلي وروستي ميرمني دسلطي په سبب له خپل زړه ورزوي فريدنه ناراضه شو او فريد په اگره كي دد ولت خان لودي په ذريعه دابراهيم شاه حضور ته ور غي، كله چي حسن مړ شو نو فريدته ددمدپلار جا گيرفرمان ور كړل شو او نو موړي بير ته دغه جا گير ته ور غي او دهغه ميړني ورو نه سليمان او احمد ، محمد خان سور دجو نپو رله حا كم نه مر سته وغو ښته او كله چي لودي ابراهيم شاه دبا بر پا چا سره دجگړ ي په وخت په پاني پت كي ووژل شو اوددرياخان زوي پهار خان لوهاني چي دا براهيم شاه له خوا، دبهار ملك ور كړل شوي و په خپل سري (ياغي) شو او خپل ځان ته يي دسلطان محمد لقب غوره كړ او دحسن زوي فريد نوموړي دسلطان محمد ته ور غي اود هغه سره نو كر شو او يوه ورځ له هغه سره ښكا رته تللي وه چي دښكار په ځاي كي نا څا په يو زمري را ښكاره شو ، فريد له زمري سره مقا بله وكړه او په خپله تو ره يي هغه وو اژه .سلطان محمد دده له زړه ور توب نه خو شال او هغه ته يي دشير خان لقب ور كړ او ور ځ په ور ځ به يي دده مو قف لو ړا وه تر څو يي دخپل كو چيني زوي جلال خان استاد وټا كه څه مو ده ورو سته شير خان دودي نه اجا زه وا خسته لو بير ته خپل جا گير ته را غي او كله چي درخصت مو ده يي پوره شوه شير خان بير ته سلطان محمد ته ور نه غي نود جو نپور حاكم محمد خان ته ښه مو قع په لاس ور غله اودشير خان دوه فراري ورو نه يعني سليمان او احمد يي سلطا ن محمد ته ور وپيژ ندل او اجا زه يي ومو ندله چي دشير خان جا گير له دوي سره وو يشي او كله چي هغه ونه منله نود هغه جاگير ته يي پو ځ وليږه او په لو مړي يرغل كي يي هغه ته ماته وركړه څو شير خان دبا بر ديوه لوړ رتبه سر دار جنيد بر لاس نه مر سته وغو ښته او بيا يي خپل جا گير دتوري په زور ونيو ه او ورځ په ورځ يي خپل قد رت زيا تا وه او دير افغا نان (پښتا نه) يي په خپلو لښكرو كي راتو ل او دهندوستان دپاچاهي دنيو لو تكل يي وكړ او دبا بر پا چا زوي هما يو ن

یی مات کړاو د حضرت اعلی او شیر شاه لقب یی غوره او د هندوستان په تخت کښېناست چی د دغو پېښو مفصل حالات په تاریخ فرشته کی راغلی دي. په پای کی شیر شاه په داسی حال کی چی د کالنجر کلا په نیولو بوخت و چی بار وتو او رواخیست او شیر شاه په دغه اور کی له خپل مرشد شیخ خلیل سره پد اسی حال کی چی ملا نظام دانشمند او دریا خان سر وانی هم ور سره وو و سوز ېدل او کله چی شاهی لښکر و دغه حال ولیده په تول جرئت سره یی په کلا یرغل وکړ په هماغه ورځ یی دغه کلا ونیوله کله چی سو ری شیرشاه د کلادفتحی زیری واوریده د(۹۵۲) هجری کال در بیع الاول لدمیا شتی په دو لسمه نیټه یی له نړی نه سترګی پټی کړی.

نو موړی څوار لس کاله امارت او شپږ کاله په ډیر تدبیر سره پاچا هی وکړه، نو موړی په هروخت او په هر حال کی دعا مو خلکو دکتو او سو کالی غوښتونکی و. دمسا پرا نو دهو سا ینی له پاره یی له بنګال نه نیولی د سند تر رود پوری دعا مو لارو تر څنګ په هرو پنځو کروه فاصله کی پاخه سرایو نه، جوماتونه او څاګانی جوړی کړی چی دغه سرایو نه تر او سه هم په اکثرو ځایو نو کی مو جود دي.

## سلیم شاه

کله چی شیر شاه له جها نه سترګی پټی کړی نو دهغه مشر زوی عادل خان له پخوا نه ولیعهد و مګر په دغه وخت کی دعیسی خان حاجب او نورو امرا و په سلا او مشوره دشیر شاه کو چنی زوی جلال خان چی ده ته نږ دی و دا سلام شاه په خطاب په تخت کښېناست چی نو موړی په عوا مو کی دسلیم شاه په نوم سره هم شهرت لری دی ډیر تیت مزا جه او بی رحمه سړی و ده خپل مشر ورور وو اژه او په پای کی تر نه کالو او څو میاشتو پاچا هی وروسته یی له فا نی جها نه سترګی پټی کړی.

# محمد شاه عدلی یا محمد شاه سوری چی
# په عدلی سره مشهور دی

کله چی سلیم شاه مړ شو نـــو دهغه دولس کلن زوی فیروزخان په ګوا لیار کی دامراء و پـــه سلا په تخت کښېنا سنت خو لا دری ورځی نه وی تیری شوی چــی دنظام خان زوی مبا رز خان چی د شیر شاه ورا ره ود سلطنــت دتر لاسه کو لو له پاره یی فیروز خان په ډیره بی رحمی سره وواژه او په خپله په تخت کښېناست او سره له دو مره ظلم یی ځا نتــه دسلطان محمد شاه عادل لقب غو ره کړ خو عوا مو خلکو به ور تـــه عد لـــی وا یه . لنـــــده داچه په حقیقت کی دسلیم شاه مړینــه په هنـــــــد کی دپښتنو دوا کمنی زوال و. دعد لی نه پرته دشیر شاه نورو خپلو انو هم مختلف نو مو نه لکه سلطان سکنــدر اوسلطان ابراهیم په ځا نونو کیښو ـ دل او په نتیجه کی کور نی شخړی او فسادو نه منځ ته را غلل ، دغه فساد ونو دری شلور کا له دوا م وکړ چی ناڅاپه په (۹٦۲) هجری کال بیا همایون دوا کمنی پـــه پیل سره دهندو ستان په ملك کی آرامی او نیك مر غی را منځ ته شوه او سلطان سکندر سور دهما یو ن پا چا دسپه سا لار بیرم خان ترکمان له لاسه ماتی وخوړه اودسوا لك غر ـ ته وتښتیده او ابرا هیم شاه ورو سته دسلیمان کر ړا نی دخیا نتاو دوکی په ذریعه داو ډیسه په ملك کی وو ژل شو او پـــه دی ډول افغا نی ( پښتنی) سلطنت جر ړی دهندوستا ن له ملك نه وا یستل شوی چی دهغه نه ورو سته پـــه هندو ستان کی له پښتنو نه هیڅ څوك پا چا هی ته ونه رسیدل .

## دلوحانی ښاخ :

دنسب دشجری له لید لو نـــه داسی ښکا ری چی د اسمعیل زو ی نوخان له دوو میر منو نه شپـــږ زامن لرل ، ویل کیږی چـــی د ده اصلی نوم نوح وچی ورو سته په نو خان سره مشهور شو اود هغـــه اولادی ته نو حـــا نی ویل کیږی.خو افغانان یا پښتا نه یی پـــه خپلو ور ځنیو خبرو کی لو ها نـــی یالوا نی بولی .

دنو حان دلو مړ ینی میر منی نه چی شیری نو میده د مروت په نوم پر خوی دنیا ته را غي چــی اولاده یې دخپل بیکه مر وت په نامه سره مشهوره ده .دمرو تود ښا خځینو خلکو ته سپین لو حا نی هم ویل کیږی خودا کلمه دو مره عامه نه ده. نو حان له خپلی دویمــی میر منی تو ری نه پنځه زا مــن لرل چی اولاده یی دتــو رولــو حا نیو په نامه یا دیږی خودا لقب ډیر لږ استعما لیږی اوس دلوحانی ښاخ دهری یوی څانگی ذکر په لانــد ی ډول کیږی .

## دمروت څانگه :

دمرو تو دڅانگی دنسب دشجری ذکر ددی کتاب په دریمه برخه کی راغلی دی .له دی کبله چی مروت دبنو په ضلع کی او سیږی دد عی ضلعي عام او د قومونو تاریخ پــه دریمه برخه کی راغلی دی .

## ددولت خیلو څانگه :

دنسب دشجر ی د څیړ نو نــه داسی معلو میږی چی دنو حــا ن زوی مماله دریو زامنو نه دیاسین داولاد ی نه ددولت حیلو څا نکــه منځ ته راغلــه پ مما دنور ی اولا دی په نسبت دد لت خیلو څا نکــه دښمیر او واك له مخی دو مــره برتری تر لا سه کړه چی دممــا داولادی نور ی وړی څانکی ددولت حیلو پور ی مربوطی کڼل کیږ ی.

له دولت نه و روسته په پنځم پښت کی کتی خان منځ ته را غی چی د هغه اولاده د کتی خیلو پــه نامه مشهوره ده ، ویل کیږی چــی دلو حانی ښا خو نه لده کتی خیل ،دولت خیل ، میا نخیل ، مروت ،تتور او نور وړا ندی تر دی چی په ټاك کی میشته شی تولوپه یوو نــده ډول ژو ند کاوه او تر یوی انداز ی دسوداگری په چارو هم بوخت وو . که څه هم دوی اکثراً په کتــواز کی اوسید ل چی ددغه سیمی پــه سهیلی برخه کی یوه اندازه (کړ نی وړځمکی هم لری خو د وانه پــه غره او نورو سیمو کی چیر ته چــی ډیر ښه څر ځایونه وو هلتــه دما لدار و لو حانیو کیږدی وی ا وکله کله به دژ می د تیرو لو لــه پاره ددامان دټاك سیمی ته هم راتلل . کله چی د کتواز سیمه پــه هماغه ډول څرنگه چی دمروتو په برخه کی راغلی دغلجیو قبیلــی دسلیما نخیلو ښا خ له، لو حا نیــو نه ونیوه له هماغه وخته دوی په

وانه اوس می ددامانو تاك ته دهغو تنگ راتگ پیل شو او دلو حانیو دبناخ هریوی ځانگی یو سری درئیس په دول لاره او نهاد حن به ورته ویل کیدل . ددغه خانترلاس لاندینه د هرخیل او زایی ملکان او معتبران وو . چې ددغوخانانو او ملکانو به لار ښوونه به د مربوطو ځانگو یا ښاخونو چاری تر سره کیدلی خود تول لوحانی ښناخ مشری یاخانی دکتی خیلو په کورنی پوری چې ددولت خیلو یوه ځانگه شمیرل کیږی مربوطه وه .ویل کیږی چې ددولت خیلو اونورو ځانگو نه وړاندی دتاك په سیمه کی دیرنگی ځانگه چې دلوی ښاخ نه رابیله شوی ده اوسیدل او ددغه ځای ځمکی او نور ملکیت ددوی په لاس کي و ،خو څرنگه چې دلو حانی ښاخ پوونده دی می په موسم کی دتاك سیمی ته تلل او اکثرا به دهغوی څارو یو دیر نګیو زر اعت ته زیان رساوه نو ځکه ددوی تر منځ شخړی او کلکی دښمنی رامنځ ته شوی خو په پای کی دیرنگی کورنی اونور د بابر پاچا دغضب ور و گرځید لی نو په دغه وخت کی یی دکتی خیلو له کورنی نه شهباز خان چې دخان زمان لقب ور کړل شوی و دلو حانی ښاخ تولی ځانگی یعنی دولت خیل ، تتور،میاخیل ، مروت او نور یی له ځان سره متفق کړل او دیرنگیو نه یی دتاك دسیمی دنیولو اراده وکړه . ده دټول لوحانی ښناخ نه لښکر ی راټولی او همدا رازیی له هغو پووندو نه چې له یرنگیو نه په تنگ شوی وو مرسته وغوښتله لو دتاك په او سیدونکو یرنگیو باندی یی یرغل و کړ تر څو جگړو و روسته لو حانیو دشهباز خان یاخان زمان په مشری په یرنگیو باندی بریالی شو اوله هغو نه یی ځینی زخمی لو ځینی وو ژل او ځینی یی دتاك دسیمی نه وشړل او دغه ځای شهباز خان ته په لاس ور غی او دخپل ښاخ دولت خیلو ونورو ځانگو سره هلته میشته شو او دتاك دسیمی د کرنی تولی ځمکی او د آب سیاه په گډون په څلور وبرخوو ویشلی په دی دول چې دولت خیلو ته یوه برخه ، تتور ته یوه برخه ، مروتو ته یوه برخه لو میاخیلو ته هم یوه برخه ور کړل شوه او هغه وخت به چې کال پای ته ور سیده نو دمروتوا و میا خیلو خانان به ددولت خیلو کتی خیلو

مشر خان زمان حضور ته را غلل اوهغه به په منا سبه اندا زه دخلور
مي بر خي له با بته هر یوه تـه خپله بر خه. ورکو له او رخصتول
به یي، خو دتتور ځانګی په هغـه سیمه کی استو کنه غوره او پـه
خپله بر خه ځمکه با نـــد ی یی قبضه ټینګه کړه او په خپلـه
به یی کر له او کته به یی ورنه اخیستله .
دمروتو نه دخلور می بر خــی په ویش با ندی له خانزما ن کتـی
خیل سره شخړی را منځ ته شـو ی اودخپلی برخی د نیولو په منظور
یی په تاك باند ی یر غلوکړ او په هغه جګړه کی چی د دوی تر منځ
پیښه شوه دولت خیلو ته یی ماته ورکړه او هغه یی دخپل مشر سره
له تاك نه خا رج او په خپله یـی په دغه ځا ی باندی قبضه ټینګـه
کړه ، خو دکتی خیلومشر له جبیل‌خان‌نه چی دکنداپور قبیلی مشـر
او په هغه وخت کی یی په پوونده‌وول دامان ته تګ را تګ کـا وه
مرسته و غو ښته اود مرو تـو سره یی دمقابلی تکل وکړ خو خـر-
نګـه چی‌مرو تو له ده سره‌دمقابلی‌توان نه لاره نو ځکه یی دتاك‌سیمه
خوشی کړه که څه هم خا نزمــــان‌دمرو تو څلور مه بر خه ضبط کړ ه
خوسره له دی‌هم که د مرو تــو کوم خان به ور غی نو هغه به یی
تش ...لاس بیر ته نه لیږه .
تردغه لړه مو ده ورو سته دمیاخیلو څلور مه بر خه هم ضبـط
کړای شوه نو ځکه دتتو را نو له بر خی پر ته دتاك نو ری ټو لــی
سیمی دو لت خیلو ته پـــه لاس ور غلی ، چی اوس هم د دوی پـه
لاس کی دی اوله دی امله چـــی‌دو لت خیل په دغه اندا زه زیا ته
ځمکه نه شی کر لی نو ځکه لــــه دوی سره‌همسا یه یار عیت هم‌دیر
میشته شوی دی، دو لت خیل لـه خپلو رعیتو سـره تقر یبا اته زره
کور نی د ی. ددوی خو کوره پـه کار نده ، زیمه ، کا فر قلعه او د
کا بل به شاو خوا کی اوسیږ ی‌خوا همیت یی ډیر نه دی.

# دغه ځانګی دمشری څرنګوالی

مو نږ دمخه وو یل چی دد غه ځانګی مشری له پخوا نه د کتـــی خیلو نور نی پوری مر بوط وه خو هر یوه مشر د خپلی ځا نګی یسی دو لت خیلو سره بنـه اود ورو رولی چلند کاوه . خو کله چـــی مشری دسلیم خان زوی قتال خا ن ته ورسیده‌نو هغه په خپله قبیله با ندی سختی را وا خیسته او څرنګه چی‌په‌خپله هم یوتند مـــزا ـ جه‌سړی ونوله دی کبله د دولـت‌خیلو ، لټی‌خیلوخلکو داسی مشوره وکړه او قتال خان او دهغه زو ی‌اکبر حان یی ووژل او دقتال حـــان مشر زوی سر ور خان له دی‌پیښی‌نه بچ‌پاتی شو او دګل خان د ورور ظفر خان په ملګر تیا دمرو تـــوسیمی ته راغی او څو زره رو پـــی یی دخپل پلار دیوه ملګری نه پورکړی نو په کا بل کی‌د افغانستا ن پاچا ته په عرض راغـــی ، دکا بل‌پا چا څلور زره پوځ او څو توپونه د غلجی هوتك عبدا لرحیم خان په‌مشری دسرور خان مر ستی‌اودپلار ځای دنیو لوله پاره هغی خوا تــه‌ولیږل . ګل خان ما مون او سر و ر خان دتاك حکو مت و نشو سا تلای،هغه وخت چی سر ور خان دشا هی پو ځ په مر سته تاك ته نږ دی‌شو نوګل خان دسر ور خان ددښمنـــی سره سره دو لت خیل و پو هو ل چی‌دسرور خان ملاتړ وکـــړی او سر ور خان قسم وکړ چی پخوا نی‌خبری به هیری او چا ته به زیا ن نه رسوی ، دو لت خیلو دسر و رخان خا نی ومنله مګر هغه لو ړی یوا زی تر هغه وخته پو ری دوام‌وکړ تر څوچی دد ولت خیلومعتبران او ملکان دسرور خان حضور تــه‌را ټول شول او په دغه وخت کـــی سر ور خان هغه اتلس تنه‌مشران‌او معتبران چی زیا ترو یی دهغــه دپلار دوژ لو په سلا او مشوره‌کی‌ګډ ون کړ ی‌و ووژل . په دغـــه وحت کی ګل خان ونه وژل شو خوسر ور خان‌هغه‌څه مو ده وروسته وو اژه، او کله چی یی دښمنا ن‌له منځه ولا ړل دهغه مشری ا و خا نی ټینګه شوه او هیڅـا دد ه‌سره دمقابلی توان نه لاره . هغه دخپل پلار قا تلان په تدز یجـــی‌ډول او کله به چی لاس ته ورغلل وژل او خپل قـــدر ت ئی زیا ت‌وه‌سر ور خان له ځان سره پسنځــه سوه سپا یان وتا کل اود تاك پــه‌سیمه کی یی یوه کلا او یو بـا غ جوړ کړ. هغه به دملك په چار و کی دعدل او انصاف‌نه کاراخیست که څه هم غر یب رعیت دهغـــه‌حکو مت نه نارا ض نه وو خـــو

دولت خیلو دګبر او پڅیل سرې په وجه دهغه سیا ست را تیټ ګړی
و ډیر په تنګ او نارا ض وو .خو سره له دی هم هغه دا سی بندو
بست وکړ چی هیڅیا هم سر جګ نه کړ. دټاك دسیمی هر ډول عا یـــد
دهغه شخصي‌مال وخود دولت خیلو نه هغه هیڅ ډول محصول نـــه
اخیست . دی‌په سخا وت کی‌مشهورو. کله چی‌یی‌دګند ا پور او میاخیلو
په لښکر بریالی شونو قوت یـــی‌لا پسی ډیر او په خپلو سیالانوکی
ډیر مشهور شو.
سرور خان په ( ۱۸۹۲) بکر می کال کی مړ او کله چی الله دادخان
دخپل پلار په ځای مشر و تا کل‌شو یو کال‌لا تیر شوی نه وچی په (۱۸۹۳)
بکر می کال کی کنور نو نهال‌سنګ‌دسکانو دیو پوځ سره ددیر ی ا و
دامان سیمی ته راغی‌او کله یی‌چی‌دټاك دریاست‌دمصاحبانو او مـلاز ــ
مینو د بی اراده کی نه خبر شو نودالله داد خان اود هغه دریا ست
په خلاف یی دټاك په لوری خپل‌پوځونه ولیږل ، کله چی اللـــه داد
خان دنو نهان‌سنګه درا تلواودخپلوسر دارا نو او ملا زما نو په بـــی
وفا یی باندی وپو هیده نود خپلـوزامنو او منقو له شتو سره یـــی
دمسعود و او وزیر و ملك ته پناه‌وروړه او ټاك دسکا نو لاس تـــه
ورغی .د مخا لفینو د پلټنی له‌مخی‌الله داد خان دغره په هغه کلاکی
چی سر ور خان جو ړه کړی وه‌ساما نونه ،وسلی ، په لکو نو روپی او
نور شیان ایښی وه او الله داد خان‌دغه ځای ډیر محفوظ ګانه ور غلل
اودهغه ټول‌شته او مالو نه یی‌لوټ‌کړل داللـه‌دا د خان بی وفـــا
ملا زمین اکثرا دده له دښمنا نـــوسره یو ځای شول او هغه نا چاره
شو چی دخپلی کور نی سره‌لومړی‌دکا بل والی‌امیر دو ست محمد خان
ته ور شی او له هغه نه مر سته وغو اړی خو کله چـــــــــــــی
پوه شو چی له هغه نه کو مـــه مرسته لاس ته نه راځی نو بیرــ
ته دمسعود واو وزیر و غرو تـــه‌را ستون شو او څر نګه چی‌کنـور
نو نهال سنګه دټاك سیمه د ملتان‌افغا نانو ( پښتنو ) یعنی پا ینده
خان خوا جك زي ، حیات الله خان‌سد وزی او عا شق محمد خان علی
زی ته دجا ګیر په ډول ور کړ ی‌وه. نو الله داد خان تر ډیـــر ی
مودی پو ری دسکا نو او ملتا نیانوسره وجنګیده او تل به دټا کـــپه
سیمه جګړی کید لی او وینی بـــه‌تو یدلی او نو موړی الله داد خان

خېل توان عمر په جګړو کې تېر کړ تر څو مړشود الله دادخان له د وو زامنو نه یې محمد شاه نواز خان یې دپلر نی مشری دتر لاسه نو و له پاره ډېری هڅې وکړی چې لـه نیکه مر غه تر ډېرو جګړو ورو ـ سته په (١٨٤٦) ع کال کې پـــه لاهور کې دانګر یزی سر کار لـــه خوا په لاهور کې د(وزیـد نـتـبـی )دنده تر لاسه کړه. په دغه وخت کې

محمد شاه نوان خان دحق د ترلاسه کو لو له پاره لاهور ته ولاړ او د کرنیل سرهربرت اډ وار دتس حضورته ور غی چې په هغه وخت کـــې په لاهور کی ا ستنت رز یډ نــــټ اوه کشمیر دنیو لو په وخت کـــې

دشیـــخ امام الدین همر کا یې او دنومو ړی سره کشمیر تـه لاړ او د هغه ځای نه بیر ته لاهور ته راغی په لاهور کې داډ وارډس په همر ـ کابی د ( ١٨٤٧ ع) کال په و ر وستیو و ختو نو کې بنو ته را غـی

اود بنو نه ټاك او ډیره اسمعیـل خان ته اوبیا دنوموړی په ملګــر ـ تیا بیر ته لاهور ته ستون شو ا وهلته دپخوانی استحقا ق او اډوار ـ س دمهر بانی له مخی دټانك مـــورثی حکومت شاه نواز خان ته ور ـ کړل شو چې تر او سه پوری دټاك دسیمی واکمن او مشـــری دی،د ( ١٨٥٧ع) کال دبغاو تو نو نـــه وروسته دهند دکو ر نمنټ له حوا دده دښو خد متو په بدل کی ده ته دنوابی لقب اوفا خره خلعـت و ر

کړل شو اوس دټاك نواب محمدشاه نوازخان ډیرمشهور دی، چې هغه ته انګر یزی ځا ګیر او هم دپــــو ځ حکمرا نی ور بخښل شوی ده.

## دمیا خیلو یامی خیلو ښاخ :

، ددغه ښاخ دنسب شجره وړاندی ذکر شوی ده . میا خیلو ته میان خیل هم وایی خود ښا خود نســب لاندی شجره دعطا الله خان تحصیل دارنه تر لاسه شوه خودا احتما ل موجود دی چې دشجری په سلسله کی به څه تو پیر مو جودوی . ویـــل کیږی میا حیل په پخوا زما نو کی توړ پوو نلو وراو په تجا رت ا وما لداری بو حت وو لکه څنګه چې ددولت خیلو دبیان په بر خه کـــې داما ن ته د تولو لوحانی ښاحو ســه د راتګ څرنګوالی لیکل شو و پـــه هما غه ډول دغه ښاخ هم داما ن ته تګ راتګ کاوه اودمیا خیلـــودداییمی استو ګنی نه دمځه پـــــه خاص در ابن او ددرابن او چو ډی کی سوا نیو استو ګنه لر له ،کله چې دکتی خیلو مشر خان زمان دپرړنګی ښاخ دټاك او دستور ی ښا خ

یعنې له روړی نه وشړل او په ټاټ باندې د ولتخېله قبضه
ټینګه او ور وړی وران شو له هغه نه څو کاله وروسته د بختیار د
قبیلې چې بیان به یې وروسته راشي او د سرو انیو د ښباخ تر منځ
چې پخوا یې په درابن باندې قبضه درلوده د زراعت د منځه تللو
په سبب جګړې وشوې د بختیار و قبیلې هغه ما لدا ران چې د میاخیلو
د ښباخ سره په ښو او بدو کې شریکوو سروانیو ته ما ته ور کړه او
هغه چې له مرګ نه بچ پاتې شول هغه یې وشړل او بیا یې د
میاخیلو په سلاو مرسته د درابن په سیمه کې قبضه ټینګه کړه
او لملمي ځمکې یې په څلورو برخوو یشلې درې برخې میا خیلو نه
ور کړل شوې او څلورمه برخه بختیار و ته پاتې کړه او هغه
ځمکې چې داوبو په ذریعه خړوبیدلې ( ابي ځمکې ) یې هم په
خپلو منځو کې وو یشلې او لسه دوارو فا تحو ښا خو نو نه ځینې
خلکو د دایمي استو ګنې ژو ند غوره او د کر نې په چارو بوخت شو ل
څو ځینو نورو یې پوونده ژو ند غوره او تر اوسه پورې هم په
دواړو ښا خو نو کې د دوا ړه د لیشته دي یعنې ځینې یې ځمکه
وال او ځینې یې پوونده سوداګر دي. د میا خیلو هیڅ یوه ځا نګه
په داسې نه وې چې خلك یې لږ یا ډیر په دغه دوو کارو نو ویشل
شوې نه وي . مګر سیدخیل او شادي خیل تقریبا ټول مقیم ژوند
لري او د کر نې په چارو بوخت دي. د پوونده میا خیلو نه ځینې
سوداګر ډیر شتمن دي او له ټولو پوونده نه وړاندې میا خیلو تر
لیري لیري ملکونو پورې په تجارت لاس پورې کړ چې له بخارا نه
تر کلکتې پورې په دغه برخه کې د دوی نومونه مشهور دي . د میا-
خیلو د خانوالۍ لړ دی او له دې کبله چې نیما یې میا خیل پوونده دي نو
په هغوی کې هم یو خان یا یو معتبر ملك د ټول له پاره موجود وي.
د لیږد په وخت کې څلو ینبتان د چارو انتظام کوي مګر د جګړې د وخت نه
پر ته دوی هیڅ واك نه لري ، کله چې پوونده میاخیل د ژمي په
موسم کې دامان ته راځي نو د هغوی فالتو یا هغه اوښان چې په کار یې
نه دي د مکلوات میدان ته د څیریدو له پاره ځي . د دې ښباخ خلك

بی‌آزاره اودښه چال چلند خاوندان‌د ی.او دښه مودې را په دی‌خوا د دغه ښاخ خانې دسیدخیلو د څانګی‌دخدو خیلوکورنی ته په لاس‌ورغلی ده ،لکه چې اوس‌هم دد را بـــڼ‌دسیمې معتبر خان عظیم خا ن، خدو خیل دی چې په کال کې زر روپۍ تنخواه له سر کار نه تر لا سه کوی او په موسی زیو کې میرعالم‌خان لوی ملك دی . دمیا خیلودښاخ ټول شمیر دری زره کوره دی چې‌دهغوی نه یې څلور مه بر خــه بختیار تشکیلو ی همدا راز څـــوکوره دو تانی او متهی هم له دوی سره یو ځای دی .

# دبختیارقبیلـه

ځینی خلك دوی سیدان بو لی.دا خلك په اصل کې له ایرا ن نه راغلی دی * چې ددو ی دقبیلـــې بختیار او س هم‌دیردی.ددوی یـو شمیر دایرا ن داصفهان په جنو ب‌لوید یځ او یو شمیر په بخارا کـی هم ژو ند کو ی . په درا بڼ‌کې هم‌ددغه قبیلی اوه یااته سوه کو ره شته او په مرغه کې هم تقر یبـاپنځه سوه کوره او سیږی. هغـه بختیار چې په درابڼ کې او سیږی .هغوی دمیاخیلو سره په کټــه ، تاوان اوجر ګه کې شریك‌دی اولکه څرنګه چې د مخه وویل شو ل تـر مخنی‌ورو سته دد غه ځای څلورمه برخه دوی ترلاسه کړه چې تـــر اوسه هم وربانډی قبضه لـری .دمرغه اوسدو نکی بختیار که څه هم له دوی سره یو ځای نه‌اوسیږی‌خو په اصل کې یودی او دضرور ت په وخت‌کې له یو بل سره مرسته کوی . د بختیارو نه ځینی‌پوو ند ه سودا ګر دډیر کلك عزم خاو ندا ن‌دی دمیاخیلواو یا نورو پښتنی‌قبیلو سره ددو ی دنسـب یووا لـــــی‌شجره تر لا سه نه‌شوه .

**دتتور ښاخ :**

دغه ښاخ د شمیر له مخې‌ددریوسوو کو رونه نه اوړی. ددی‌دټاکل په لوید یځه برخه کې‌میشته دی.دو د اودستوریی دمیا خیلو سـر ـ یوالی لری او اکثرا دکر نی پـــه چارو بوخت دی .

---

*ـله ایرانه څخه دپښتنـــــو بختیار و راتګ دمولف‌عندیات دی. رشاد

## دهودا و تبع ښاخو نه :

ددې ښاخو نو په باب له نورو منابعو نه چې په شجره کې لیکل شوي نور څه معلومات لاس ته نه دي راغلي ، همدا راز ددوی نوم هم چندان شهرت نه لري که ددغه ښاخو نوښوکوی هغه هم په لوحانیو کې داسې ورګډ شوي چې په آسانۍسره یې تو پیر نشي کیدای. ګومان کیږي چې ددغه ښاخ شمیر به خورا لږ وي .

## دنیازي ښاخ :

دنسب دشجرې له لیدو نه څرګندیږي چې دلودي زوی نیازي له خپلو درې ورونو نه دریزمان لرل چې په دوی کې باهي چې دسروانی له لور نه وډیر پر هیزګاره او دنیوی چارو ته یې پاملرنه لږه وه .

نیازي په پیل کې دغزني په شاو خوا کې اوسیدل چې اوس هم دنو موړي ښاخ څو کوره هلته میشته دي . دسلطان بهلول لودي له زماني نه راوروسته دغه خلک هندوستان ته تللي او دسوری شیر شاه د واکمنۍ په دوره کې دوی ته لوړ منصبو نه ورکړل شوي وو . هیبت خان نیازي چې داعظم همایون لقب ورکړل شوی ودلاهور صوبدار تیر شوی و ، په هندوستان کې دنیازیو قدرت په ډیره چټکتیا سره زیات شو تر دي چې دوی دسلیم شاه سوری سره سخته مقابله وکړه دغه بغاوت ددوی دتباهي باعث و کرځیده چې دغه کیسه په مفصل ډول په دریمه برخه کې لیکل شوی ده .

اوس په افغانستان کې د عیسی خیلو ، مو شانیو او سرهنګو ښاخو نه چې ددوی دنسب شجره او تاریخ په دریمه برخه کې راغلی دنیازیو بله کومه څانګه مشهوره اوقوي نه ده اوپه اکثر ځایونو کې څوڅو کوره په متفرق ډول میشته دي دېنګښو د سیمې په توغ اونورو ځایونو کې هم نیازی او سیږي په کندهار ، غزني، لوګر دکابل شاو خوا شیو کیو کې هم ددوی څو کوره شته دي . په هندوستان کې هم لږ شمیر نیازي اوسیږي خو ددوی دشتو استعداد او شمیر دکم والي له کبله، چندان شهرت نه لري . مرحوم نیازي، ګندي

لز متهی په پوو ندہ توب او سو دکری په چارو بوخت دی. په
هماغه اندازه چی دغه ښاخ په هندوستان کی نوم اوورترلا سه
کړی و په هماغه اندازه په افغانستان کی کم زوری او شمیری
لږ دی.

ځرنگه چی دوی په مختلفو او بیلو بیلو ځایو نوکی او سیږی نو
ځکه یی رواجونه او دودونه هم سره بیل دی.

## دتو تانی ښاخ:

دلو دی دزوی دو تانی دنسب شجره وړاندی و لیکل شوه ددغه
ښاخ شمیر لږ اوله دو و سوو کورو نو نه زیات نه دی. ددوی نه
ځینی پوو نده او هم دسوداگری په چارو بوخت دی او په دغه لار کی
زیات کوښښ کوی نو ځکه دوی دنورو پوو نده وو په منځ کی
دیر شهرت لری.

ددوی داستو گنی او لیږ دخړ نگوالی د نورو پوو ندی و په شان
دی خو ځینی دوتانی دوانه په سیمه کی میشته دی، دغه سیمه
دشیرا نو دقبیلی دهری پا ل شمال خوا ته دیوه میدا ن دپاسه
په هغه غرو نوکی موقعیت لری چی نشیب یی دکو ملی خواته دی
دوانی ا ب او هواکه څه هم سړه نه ده خو د صحت دپاره ښه ده.
په دغه ځای کی غو ماشی دیر ی دی او دگر می په موسم کی دو زیر و
خلك هم هلته راځی او یوه اندازه دکرنی وړ ځمکی یی هم نیولی دی.
خو سره له دی هم ددوتا نیو یو ه کلا اویو کلی د وانه واد ی په
منځ کی موقعیت لری او د وانه او سیدونکی دو تانی اکثرا دکر نی
په چارو بوخت دی او ددو ی شمیر له اتیاوو کور ونو نه کم دی ا و
سره له دغه کموالی وزیر دو تا نی له دغه ځای نه ایستلو ته نه شی
مجبور ولی. کله کله کاکړ شپانه هم ددو ی سهیلی اولو ید یځو
سیمو ته حیل مالو نه دځرو لو له پاره بیا یی خوددوی سره کوم کار
او غرض نه لری هغه دو تا نی چی په پوو نده ژوند کوی
ددو ی دود او دستور د نورو پوو نده و په شان دی او هغه
دو تانی چی په وانه کی میشته دی تقریبا دوز یرو په شان خوراك او
پوشاك کوی. دغلجی د قبیلی دسلیما نخیلو ښا خ دوانه سیمی
ته ستر کی نیولی دی.

## دخیسور ښاخ :

دغه ښاخ خپل ځانو نه دلو دی اولاده بولی خو دلو دی د قبیلـــی نور ښا خو نه له دو ی سـر ه دیووالی (گدوالی ) نه انکـــا ر کوی او دوی دبل نسب څخه بولی. دلودی داولا دی دنسب شجر ه چی د ډیرو زورو خیړ نو په نتیجـــه کی تر لا سه شوه دهغی په هیڅ ځای کی د خیسور شمو لیـــــت(گدوالی) ښکاره نه شو . که څه هم ددغه ښاخ دوګړو شمیرلږ دی خو خپل ملکیت ته یی دیوه ملــک پنه ورکړی ده . ددو ی ملك د سندرود په لو ید یځه غاړه مو قعیت لری . دخیسور ودملك شمـــا ل ته دعیسی خیلو سیمه لو ید یځ ته یی یو کوچنی غر پنهاله یا پلیا نه نو میږی او مرو ت پراته دی . د دغه ښا خ اکثره وګړی په ونـــه ټیټ ، غنم رنګه او ډنګـر دی، د دوی شمیر له دری سوه کورو نو نه زیا ت نه دی خو خیسورو ســر ه نور متفر ق خلك اورعیت هـــمـا و سیږ ی د دوی په سیمه کـــی دخر ماونی ډیر ی دی . خیســو ردعمر خیلو په نا مه هم مشهـــو ر دی .

## دبلیغ ښاخ :

دغه ښاخ کله خپل نسب دنیازی له کورنی او کله ددولت خیلو لـــه کورنی سره گډ وی او خپل ځـــا ن دلودی اولاده بولی ، خود دو ی د خپل بیا ن نه پر ته بل کوم ثبو ت ددغی خبری دتائیدو لو لـــه پاره نشته ، دو ی په شمیر کی ډیـــر کم دی. دوی عمو ماً په پنیا لـــه کی او سیږی چی دغند شیخ بدیـــن غره سهیلی خوا ته موقعیت لـــر ی او ددیره اسمعیل خان په ضلـــع پور ی مربوط دی ، ددغه ښـــا خ یوه کورنی دمیا نوالی دسیمی پـــه بیلان کی استو گنه لری او دواړه سیمی په خپل ملکیت کی سا تـــی دپنیالی خرما وی مشهوری دی .

# دسروانی قبیله

ویل کیږي چې دشهاب الدین غوري دسلطنت یا تر هغه لږ وروسته دسرواني قبیلی دد رابڼاو چودی او شاو خوا سیمی ونیولی او ددغه ځمکی یی په خپل تصرف کی راوستلی او ددغه قوم مشري دسرپال کورنی په تیره بیا دشیخ ملیح قتال کورنی ته ورکړل شوه. درابڼ له ډیری مودی نه رنګ پروت او هغه درابڼ چې اوس آباددی شیخ قتال سرواني جوړکړی دی لکه چې څنګه په شمالی دروازه یی تر اوسه دنو موړی شیخ نښان موجود دی . خو په هغه وخت کی د درابڼ ښار آباداو ډیری ښایسته او ښکلی ودانی یی لرلی او اوس درو انو اوبواوشنو و نونه پرته څه ښکلا نه ده ور پاتی.

سروانیو ډیره موده په دغه ځای سلطه لرله خو دهمایون دوا کمنی په دوره کی له دغه ځایه ووتل او ددوی دو تلو له پاره دوه علته موجود دی ، لو مړی دشمیر لږ والی او کمزو ری دویمه ددو ی ما تی . لو مړی علت یعنی ددو ی کمزور ی له دی نه منځ ته راغله چې دستو ر ی ښاخ یوه سړی چې دروړی ښار او سیدو نکی و دنو موړی ښاخ یوه ښځه و تښتولو له اودسروانی قبیلی ته یی پناه ورو ړه اودرا بڼ ته ور غی او دستو ری ښاخ دغه مجرم او ښځه له سروانیو نه وغو ښته سروانیو دهغه بیر ته ورکول دپښتنی ننګ خلاف و ګڼل او د تښتید لی ښځی په بدل کی یی دپنځو ښځو ور کول و منل خو سروانیو دتعصب او غرور په سبب دیو ی ښځی په ځای د پنځو پیغلو تر لا سه کول و نه منل او د جګړی له پاره یی تیاری و نیو له او همدا راز سروانی هم د پښتنی غیرت په وجه له دوی سره جګړی ته تیار شو ل . په پای کی په زاړه درابڼ کی ددواړ و خوا وو ترمنځ لو یه جګړه پیښه شوه او له دواړو خوا وو نه ډیر تکړه کسان وو ژل شو ل او کله چې ددواړ وخوا وو پاتی کسا نوو دغه حالت او مړی و لیدل نو ډیرپښیمان او بوره یی جګړه مناسبه و نه بلله او دیو بل له وژلو نه یی لاس واخیست او هری قبیلی خپل مړی چې په زرها وو کسه وو په وړ و وړو قبرو نوکی ښخ کړل او بیر ته خپل استو ګنځیو ته ستانه شو ل ، ددغی جاهلا نه جګړی نتیجه دا شوه چې له هغه ورځی نه د سور یو او

# د سروانی ابن شاه حسین دنسب شجره



## د مالیر کوټله کورنۍ د نسب شجره




۸۱

---

* په تواریخ خورشید جهان (۲۳۳ مخ) کې د عظم خان لیکلی دی. (رشاد)

** په تواریخ خورشید جهان (۲۳۳ مخ) کې نواب سکندر علیخان د نواب محبوب علي خان ورور ښودل شوی دی
خو په شوکت افغان (۲۹/۳ مخ) کې د حیات افغاني د لیکنې ملاتړ شوی دی. (رشاد)

سروانیو شمیر دیر لږ اوتر هغې اندازې کمزو رې شول چی دخپل مخالف دهیڅ مخالف قوم سره یې مقابله نشوه کولای تر هغه،

وروسته دهمایون پاچا د وا کمنی په پیل کی کله چی دمیاخیلو لوحانی ښاخ او بختیارو په پاتی سروانیوپر غل و کړ تر لږې مقابلی وروسته.

یو شمیرسروا نی وو ژل شو ل ا وپاتی یی مغلوب او د رابن لـه سیمی نه یی لاس لنډ شو او دغه سیمه دمیا خیلو او بختیارو لا س

ته ورغله او سروانی چی دیر لږ پاتی وو ځینی یی خواره او ځینی یی دمالیر کوتله مشرته چی ددوی قبیلی نه وور غلل . دمولف په خپلو مقبو ضه کلیوکی دواه سیمی نه تقر یبأ یو میل شمال ختیځ ته دیو ی للمی ځمکی په منځ کی چی دو چکارا میرا په نا مه

یادیږی دزړو کنډ والو نښی چی سروا نی یی پنډ بولی لیدل کیږی. داسی گمان کیږی چی دا به هغو سروانیو جوړ کړی وی چه دغه ځایه خار ج شوی او لږ دید لی دی ،اوس په افغانستا ن کی دغه ښاخ

باید دور کید و په حال کی وکنل شی ، خوا ورید ل کیږی چی دروالپنډی دضلعی دچهچه پـه سیمی کی به څو کوره موجود وی .

اوس دمولف په دوره کیدد غـه ښاخ دمالیر کوتله کورنی یادو لو وړ ده .

## دمالیر کوتله کورنی :

ددغی کورنی دنسب شجره تـراوسنی مشره پور ی وړاند یراغلی ده اوله هغی نه جو تیږی چی شیخ احمد زنده پیر چی دسروانیو لو ی

نیکه و له ده نه دسرپیال دښا خ په دیار لسم پښته واو دهغه لـه پنځو زامنو نه مشر زو ی یـی شیخ صدر الدین چی په صدرجهان

مشهور و یو عابد او پرهیز گاره انسان و . دی دخپلی اصلی تاتوبی درابن نه دهند و ستان دلیدو لپاره لپاره روا ن شو او دمالیر سیمی

ته ور سیده اود ستلج دسیـن دیوې ویالی په غاړه یی چی آثاریی اوس هم لیدل کیږی یوه څپـر ه ودانه او هلته دخدای (ج) په عبادت

بوخت شو ، په هغه وخت کـی دمالیر دودانی نښی نښانی هیـڅ موجود ی نه وی . خو د جهوم په نوم یو کوچنی ځای دشیخ صدر جهـان

عبادت ځای لنډ مو جود و او پـه هغه کی یوه ضعیفه ښځه چی دمالی قوم نه او مسلما نه وه له پخوا نه اوسیده هغه صالحه ښځه لو مړی

دشیخ معتقد او مرید شو، کله چې صدر جهان دسلطان بهلول لودي دلور سره لګاو ونکړ نو دلته یې دپوه ګلي دچړو لو بیت وکړ او د مالي له نامه سره یې د (ر) توري چې د رب دنوم لومړی توری دی یوځای او په دې سبب یې په دغه آبادي د ملتان نوم کیښود * سلطان بهلول لودي دلور سره صدر جهان په دې ډول واده وکړ چې کله سلطان بهلول د ډهلي دسلطنت دنیولو په نیت روان شو نو هغه پوه ورځ دصدر جهان څونګړې ته نږدې ورپېښ شو او دهغه سره یې ملاقات وکړ، هغه په خپل زړه کې نیت وکړ که چېرې دډهلي ته ورسېږم او سوبه مې په برخه شي نو خپله لور به دغه عابد او زاهد ته ورکړم نو دبهلول دغه مقصد تر سره او دخپل نیت د پوره کولو له پاره یې خپله لور لومړي شیخ ته واده کړه او دولس ګلي او شپږ نخوس کوچني سیمې او د واده لوازم او اسباب یې ده ته ورکړ. تر هغه وروسته شیخ صدر جهان د راجپوتانو د کورنۍ د یوې ښځې سره هم واده وکړ. ده په (۱۵۱۵ع) کال کې له جهانه رحلت وکړ او دخاص مالیر ددرګاه په انګړ کې خاورو ته وسپارل شو چې دده مزار د خاصو او عامو زیارت ګاه دی. دخدای غوښتنه دده هغه اولاده چې د شهزادګۍ له بطنه منځ ته راغلي وه دشیخ صاحب د خانقاه مجاوران شول چې تر اوسه یې هم اولاده هلته مجاورین دي او هغه ته پیسې او نذرونه ورکول کېږي. دوی ته عملي خلك خلیفه او څوله ور ته مجاور وایي خو دواړه دلو ته دخان صاحب لقب ورکړ شوی دی او هغه اولاده چې د راجپوتنې ښځې له بطنه پیدا شوي دي دمشرۍ او دجاګیر خاوندان دي د صدرجهان او بازید خان تر منځ پنځه پښتې د نسب شجره په مسلسل ډول تر لاسه نشوه، خو دبازید خان دوخت نه چې اوسني رئیس او مشر دی تر نه پښتو پورې ددغه کورنۍ د نسب شجره لیکل شوې ده.

---

* دغه وجه تسمیه په ګوشه پنجاب نومي کتاب کې هم لیکلې ده خو په شوکت افغان (۳۲۳ مخ) کې یې دا یوه مضحکه وجه تسمیه بلل شوې ده. (رشاد)

با زید خا ن دمالیر تر ښنګ بسل ښتار چې کوټله نو مېږئ * ډيـو ئ پخې چار ډېوالی او یوه خند ق سره جوړ کړی دی او په ډېرو کليـــو باندی چې ميراثی جاګیرو نه یـــــوو خپله قبضه ټينګه اوله مالیرنه یې خپل استو ګنځي کوټلي تــــه ولیږ د اوه . او په خاص کوټله کې یې د ریاست له پاره یوه ودانـــی جوړه کړه ، دده نور ورونه پــــه همانغه ډو ل په مالیرکې اوسیږی .

دبازید خان تر مړ ینې و روسته دهغه دزامنو له جملې نه فیرو ز ـ خان رئیس او مشر و ټاکل شوچــې دښه بخت خاوند او د حکو مت پــه چارو کې ډیر پوه و ، تر هغــــه وروسته ددم زو ی شیر محمد خــان ددم ځای و نیوه نو موړی پــــــه (۱۷۰۲ع) کې د سرهند دنا ظـــم دپو ځ سره یو ځا ی د سکـــهانو ددلار بنود ګورو ګور بندسنګ سره وجنګیده او ددیلی پاچا د امر سر ەسم درو هيله سردار د نيولو لـــه پاره بداون ته لاړ اوهغه یې و نیوه او در بار ته یې حاضر کړ ، دی د عالمګیر اورنګ زیب په دوره کـــې وفات شو . هغه دخپل ریا ست په وخت کی یو ځای دشیرپور په نامه جوړ کړ چې اوس هغه ځای دپټيالی دوالی په لاس کې دی تر هغـــــه وروسته د غلام حسین خان درياست په وخت کی یعنې په (۱۸۳۰ع) کال کی عثمان یار خا نرو هيله چـــی دهغه پلار دشیر محمد خان له خوانیول شو ی و دزیا تو لښکرو سر ه دمالیر کوټله دنیولو له پاره راغی غلام حسین خا ن له جګړی نـــسه سولی ته تر جيح ورکړه او د بلا لن په نو م اجلی یـــــــــــــــــی عثمان یار خا ن ته نکاح کړه اوهغه هم دخپلی لاوړه د ډولی سره خپـل ملك ته ولاړ .

---

* کوټله دکوټ مصغر دی لکـه په دهلي کې د فيرو ز شاه کوټله ـ په پيښور کې د محسن خان کو ټله مشهوره ده ـ معز الله خان مو مند چې دپښتو ژبی ښه شاعر دی ددغی کوټلی او سیدونکی و . (رشاد)

دغلام حسين تر مړينې و روسته که څه هم دده اولاد و نه موجود وو، خو د شيرمحمدخان زوی جمالخان دمالير کوټلی رئيس و ټاکل شو ،خو جمال خان په (۱۷۵۵ع )کال دسرهند په جګړه کی ووژل شو او دهغه مشرزوی بهيکن خان رئيس شو . دهغه په وخت کی ابدالی احمد شاه ډيلی ته را غی او نو موړی په دغه کورنی ډير مهربانی و کړه ، ددوی دمقبوضه سيمو حدود ، يی پراخه او سکه يی جاری کړه ، په (۱۷٦٤) عيسوی کال د پټيالی دمهاراجا الا سنګ دمور څاو بهيکن خان تر منيځ جګړه ، و شوه. چی په دغه جګړه کی بهيکن خان وو ژل شو او دسرهند پخوانی ښار چی دوېلی د پاچا له خوانياز خان په کی حاکم ودسکها نو له لاسه داسی تباه او لوټ شوچی تر اوسه هم ورا ن دی .

تربهيکن خان ورسته دده کوچنی و روړ بهادر خان درئيس په توګه و ټاکل شو ، خو هغه هم په (۱۷٦۷) عيسوی کال کی دسکهانو سره په جګړه کی ووژل شو او دمالير کوټله درياست ډيری سيمی دپټيالی دوالی لاس ته ور غلی.دبهادر خان تر مړينی و روسته د ده کوچنيو ورونو عمر خان ،اسدالله او عطا الله خان هر يوه په خپل وار سره حکمرانی و کړی او مړه شول ، تر څو په (۱۸۱۰) عيسوی کال بيا دغه رياست دبهيکن خان له اولا دی نه دا کبر اولادی ته په لاس ورغی خو له دغی موده ی نه دوه کاله دمخه يعنی د (۱۸۰۸) عيسوی کال په ورستيو ورځو کی دلاهور والی رنجيت سنګ خپلو ځونو را ټول او دکوټله درياست په خوا روان شو اودمالير کوټلی درئيس عطاالله خان نه يی تقر يباً يو نيم لك روپی نذرانه تر لا سه کړه ،عطا الله يو څه رو پی نغدی ورکړی او دپاتو له پاره يی د (پټيا لی )(جيند ) او(نابهه ) دسيمو واليا نو يی ضمانت و کړ او دغو ضا منا نودمالير کوټله په سيمه کی تا ني جوړی کړی .

دمحفوظه ملکو نو د رئیسا نوخنو صا دمالیر کو تله دکوز نی د نیك مرغی‌په سبب‌د (۱۸۰۹)عیسوی‌کال په پیل کی ددو ی دغو بشتنی له امله جنرال اکترلونی دانگر یز ی سرکارله خوا دملك دانتظـــام او حفاظت له پاره انبالی،لودیا نـــی‌اونورو سیمو ته راغی او دملـــك دچارو . دسمون له پاره به خپلـه نوموړی جنرا ل کوټله ته‌لاړ او د تانو دحالا تو دترلا سه کولو پـــه تر څ کی د پټیا لی او نا بهـــــی دضامنو والیانو تانی یی په زو رورانی کړی‌او دما لیر کوټله سیمه یی پخوانیو حکمرانا نو ته ورکړ ه‌اودرنجیت سنگ سره یی د ستلـج سیند سر حد و تاکه او دا دانگریزی‌سر کار له خوا یوتړ ون و او پـه.

دغه وخت‌کی دپنجا ب د شاو خـواسیمو مشرانو د آرامی احساس‌وکړ، که څه هم په هغه کی رئیـــــس‌عطا الله خان ژو ند ی و خـــو دپهیکن خان مشر زو ی و زیرخا ن‌دپلرنی ریاست دلاس ته راوړ لو له پاره دجر نیل په حضور کـــــی‌دعوا و کړه او د مالیر کوټلـــــه، ریاست د وراثت په باب د تحقیقا توپه تر څ‌کی عطا الله خا ن مړ شو او په (۱۸۱۰) عیسو ی کال دغـه ریاست دانگر یزی سر کار له خوا وزیر خا ن ته وسپار ل‌شــو او دعطاالله‌خان داولادی قبضه یواز ی په خپل جاگیر باند ی محدوده شوه،وزیر خا ن په (۱۸۲۱) عیسوی‌کال له جها نه سترگی پټی کړی او دده‌په ځای دده زوی امیر خان‌دریا ست مقام تر لا سه کړ ، او امیر خـــا ن‌نه، وړاند ی دمالیر کوټله رئیـس دخا ن‌صاحب لقب لاره . خودانگریزی‌سر کار د لطف له مخی دامیر خا ن له وخت نه راپه، دی خوا دوی تـه دنواب صاحب بها در لقب ورکـړل شو.

نوا ب امیر خان په (۱۸٤٦) ع‌کال وفا ت شو او دهغه ځای دده زوی نواب محبوب علی خان و نیو ه‌په پای کی‌هغ ه هم پـه، (۱۸۵۷ ) عیسوی کال‌کی‌مړشو، دده نه‌ورسته‌سکندر علی‌خان صاحب خلف‌الصدق ددغه ریاست خاوند شو چی تـــراوسه هم ژو ندی دی .

دیوه یوه سری په قول ددو ی‌عایدات یوازی دکال دوه نیم لکه روپی‌دی‌چی‌یولك‌یی په خپله‌دنواب‌صاحب له پاره اوپاتی یی په ټولو ورونو او حقدار انو باندی و یشل‌کیږی .

# څلورم باب
## د کرړان د اولادې بیان

څو کلنه ده چې د گوړا لیو د پلرو لواو لیکو نو په باب ډیر مختلف روایتونه هسته او څرنګه چې دغه روایات د دوی داولادې د نو یو ښاغلو نو بیان په شفاهي ډول په خلګو کې موجود دی له دې امله د ځان سرا یلی اعتدال هم په کسی شته.

د دلازا کو ښاغ چې د کسرړان نسل یو قومي ښاغ دی دوی وایي چې د کرړان پلار سید قاف و چې د هغه نه وروسته اتم پښت یې د نسب په شجره کې حضرت امام حسین (رض) ته ور کله یږي او د ختیگو ښاغ د کو ړان پلارهو نسبي یولی او خپله شجره د سرښي افغانانو (پښتنو) سره کډ وي.

د شیتك د ښاغ ځینې سپین یږي خلك وایي چې کرړان د کو مشهزاده زوی او د خوګیا نیو ښاغ عتیمد ولري چې دی د عبدالله او د مړ زوی و که څه هم د دوی د نسب او اصلیت په باب ډیر اختلافو نه موجود دي، خو دوه له اولادې نه ځینې ښاغلو نه په دې اتفاق لري چې کرړان نومی ماشوم چې نوی دلیا ته راغلی و، په هغه ځای کې وموندل شو چې په هغه ځای کې لښکر یوه شپه تم شوی او سهار له هغه ځا یه تللی و. څرنګه چې دغه پاك ماشوم د یوی او سپني تر کړایي لاندې او یاد هغې په بدل کې عبدالله ته ذاور مړ و قبیلي څخه ورور سپده او څنګه چې د پښتو په ژبه کې کړایي تــه ګوډي وايي نو ځکه ده ته د گرړاني نوم ورکړ شو *او د داسي پیښې را مینځ ته کیدل له امکان نه لیری خبره نه ده، د پښتو په یو ه پخوانی کتاب کی دا خبره لیکل شوی ده چې دغه هلك د ژمي په مینه (قشلاق) کې په

---

* داهم له مضحکو تسمیو څخه ده. (رشاد)

لوید یځ افغانستان کې پیداشوي و. ددې روایت له مخې دا خبره جوتیږي
چې کړلان د قیس عبدالرشید لمسی اولاد ی نه و ، خو خدای (ج) د
هغه اولاده دومره ډیره کړه چې اوس تر نورو افغاني ( پښتنو)
قبیلو نه په توره او جنګیالیتوب کې کم نه دي . لنډه دا چې عبدالله
د نارینه اولاد د لښتو الی له ګبله کړلان په زوی توب ومانه او د هغه
روزنه او پالنه یې وکړه او کله چې هغه د بلوغ عمر ته ورسید د
نو خپله لور یې ور ته نکاح کړه چې د دوی نه دوه زامن دنیا ته
راغلل یوه باندې یې کودی او بل باندې یې ګکی نوم کیښود چې
ددوی د دواړو د اولادې نسب تا مه د پښتنو تر سره یو ځای د نسب په
شجره کې راغلی ده، د کړلان پښتانه په مجموعي ډول تر کړلاني پسا
کرلاني هم وایي. او دلازاك ،اورکزی ، منګل ،حو کیانی، اپریدی ،
ختك ، وزیری ، شیتك یعنې بنوڅي ، دوړ ، محمدراڼ ، او اتمانخیل،
ټول هغه پښتانه دي چې د کړلان له نسل له میغځ ته راغلي دي چې
د ځانګړو ذکر یې د نسب په شجره کې لیدل کیږي .
مخکې له دې نه چې د کړلان د دویم زوی ګکی د نسب د شجرې په
باب څه ولیکل شي نو په لنډ ډول به د کودي د اولادې د لویو پښتو خونو
ذکر وشي .

# د دلازاك قبیله

د کړلان د زوی کود دی مشر زوی دلازاك و چې د هغه اولاده ډیر ژر ژر
ډیر شول دوی ډیر زړه ور خلك وو. چې د ټولو پښتنو نه وړاندې د لاهور
دراجا د کمزور تیا په وجه چې د مخه یې ذکر راغی د خیبر له لارې
پیښور باندې چې په هغه وخت کې بکرام ورته ویل کیدل ، یرغل
وکړ او د ګوډی په زور یې په دغه ځای یې قبضه ټینګه کړه تر څو
پورې چې د سند ختیځې برخې یې هم تر لیرې ځایو نو پورې په خپله
قبضه کې راوستې ، پر سو منات باندې د سلطان محمود غزنوي د
حملې په وخت کې د دوی زیات شمیر د ملك یحیی په مشرۍ د سلطان
محمود په لښکر و کې شامل وو . د دغې قبیلې ځینې سپین ږیري
د خپلو پلرو نو په باب داسې روایت ګوي ، کله چې په پیل کې د دلازاك
قبیله د افغانستان ختیځو برخو ته داخله شوه نو د هغوی نه وړاندې
د پیښور په ضلع او د سند رود په لویدیځو او ختیځو غاړو کې مر ه

کافر او سید ل - ویل کیږي چې هغوخلکو ته چې سره کافر ویل کید ل دګریك او بکتر ین له نسل څخه وو او په لو مړی سرکې ددیکان او داصلي سوا تیو نیکو نه هم دپیښو ر دضلعي اورا ولپنډی په حدود کې ترجلال آباده پورې اوسید ل چې بیا دلازاك په تدریجي ډول دسوات اوبو نیر دغر ونو لمنو ته په شاه وتمبول او خپله قبضه یې پر ی ټینګه کړه . لنډه داچې ددغې قبیلې دحکومت دوره دمرزا الغ بیك تر وخته پورې ډیر ه مشهوره وه ،خو کله چې دوی خپل زور اوقوت ته مغرور شول نو لومړی دخلیلو او مو مندو له خواچې دکابل نه پیښور ته راتلل مات او د پیښور پر یښودلو ته مجبور شول او بیا دویم ځل له خرنګه چې په صراحت سره په دو یم باب کې لیکل شو ی دي . دیوسفز یواونورو هغو قبیلو نه چې له یوسفزیو سره یو ځای شو ی وی ،سخته ماته وخوړه او دسند رود له لار ی دچهچه او د هزار ی ضلعې ته ننو تل او هلته یې په خپلو پخوا نیو عاداتو ، لو تمار ی اونورو پیل وکړ . ددغو فتنو په سبب چې دجهانګیر پاچا په وخت کې رامینځ ته شو ی دو ی له داسې تبا هې سره مخامخ شو ل چې د مخکنیو حادثو نه ډیری سختې وی او هغه کسان چې له دغې پیښې نه ژوند ی پاتې شول ددو ی اکثرا دخپلو کور نیو سره دکن ته ولیږل شول چې اوس هم هلته زیات شمیر دلازا ك موجود دی .

ددغو دلازا کو نه یو شمیر یې دهزاره په ضلع کې او سیږی .

دوی ته دخپل تکبر او بغاوتونو په سبب دانتیجه ور په برخه شوه چې ددغه لوی ښاخ نه یوازې یو څو کوره دهزاره په ضلع کې اویو څو کوره په متفرق ډول دچهچه په سیمه کې یو شمیر یې په پیښور کې استو ګنه لري .ښا یې په افغا نستا ن کې دغه ښاخ له مینځه تللی وی .

# د کرېران یا کرلان د نسب شجره



# داورکزی قبیله

ددغی قبیلی دلو یو ښا خو نـــوشتمیر پنځو ته رسیږی ، لکــــه
څرنګه چی دنسب په شجره کـــی‌راغلی دی دهغو ی نه ځینی وړ ی
څانګی مینځ ته راغلی دی ، دغـــه قبیله اکثرا دکو هاټ دضلع پـــه
غرنیو سیموکی او ځینی یی له دغی‌ضلعی نه دباند ی دسپین غــر ه
ختیځ او دتیراه په جنوبی وادیوکی‌میشته دی . دو ی دګر می پـــه
موسم کی او هم هغه وخت چی‌کومه‌خطر ناکه پیښه رامینځ ته شـــی
دتیرا غرو نوته ځانو نه رسو ی.دبنګښو د ښا خ نه وړاند ی پـــه
کوها ټ باند ی اور کز یو سلطه لرله او تقریباً (٤٠٠) کاله‌وړاندی
بنګښو کو ها ټ دسختو جګړ و نـــه‌وروسته دهغوی نه ونیوه ، خـــو
بیاهم ددغه ملك دنیولو له پار ه‌ددوی تر مینځ خونړی جګړی‌وشوی
او داسی ویل کیږی چی یو ځـل ددواړ و دښمنو ډلو دملکا نوتر مینځ
دسولی درامینځ ته کولو په‌منظوردر سمند ته نږد ی جر ګه شوی‌وه
هرې یوی څا نګی به غو ښتل‌چی‌په دغه سو له کی زر خیزی ځمکی او
علاقی تر لاسه کړی له دی امله‌ددو ی تر مینځ سو له ونه شو ه
اونږد ی وچی بیا ددو ی‌تر مینـــځ‌جګړه منځ ته را شی چی په دغــه
وخت‌کی یو سپور سړی له لیری نه‌رابښکاره شو او دجرګی دملکا نوپام
یی ځانته را واړ اوه .څر نګه چی‌دا دواړه قبیلی له ډیر و جګـړ و
نه په تنګی شو ی‌وی نو په دغـه‌خبره یی اتفا ق و کړ چی که چیری
دغه سپور راشی نو دو ی به‌ورته‌دبنګښو او اورکز یو دښا خو نو د
سیمو دو یشلو سو ال وکړی ا وهغه‌څه‌چی‌دی‌وو ایی نو هغوی‌دواړه
خوا و ی یی منی . دوی په دغـــه‌خبره اتفا ق و کړ او دخیر دعاوشوه
او قسمو نه یی هم یاد کړل پـــه‌دغه وخت کی نو موړی سپور چـی
دای نومیده او دقبیلی مطـــرب راورسیده نو دواړ و خـــوا وو د
دغه‌معا ملی په با ب له ده سر ه‌سوال او ځوا ب وکړ . هغه دا س
پر سر په پښتو ژ به‌دغه شعـــرجوړ او ځواب یی ورکړ :

# دای خو داسی وایی

## چې سمه دبنځمښ څرداور ګز ی

. کله چې دای داخبره وکړ نـــوو تښتیده . اور کز یو دده دمر ګ
تګل و کړ حو هغه دبنګښو پـــــه مرسته وژغورل شو . ویل لیږ ی چې
له هغا څې ورځو، نه دهمدې عجیب‌ویښ مطابق عمل کیږی خو سره له
دې هم هغوی تر مینځ دښمنی بیځی‌له مینځه نه ده تللی .داور ګزیو
دجنګیا لیو شمیر شپا ړس زره تنه دی ، خو د ټولو ښا خو لو نه ددونت
زیو او مسو زیو شمیر زیا ت دی . له دولت زیو نه دمحمد خیلـــــو
لولاده ډیره زیاته شوی ده. محمدخیل شیعه او پاتی‌لور ی ځالګـــی
یی سنی منهبه مسلمانا ن دی،دتیرااو سیدونګی سید محمود دشیعـــه
مذهبو د ستا ینی او احترا م‌ورسری‌دی . دغه ښاخو نه پخپلومنځو کی
چندا ن یووالی نه‌لر ی اوپه دو وډلو ویشل شو ی دی یوه یی‌دسمـــل
ګوند ی دو یم یی دګاړه ګو نـــد ی‌ده . دنسب شجره کی دهر یوه‌ښاخ
دنو م په سر باند ې‌د (س) دتوری‌نه مقصد دسمل ګو ند ی اود ګ ،
توری د ګاړه ګو ندی ښیي. ددغـــه ښاخ سره چې کوم نور ښاخو نه په
ګته او تاوا ن کی شر یك دی‌دهغوی‌شمیر څلورو یا پنځو ته رسیږی .
دوی په اصل کی اورك زی نه د ی‌خود دو ی سره یو ځای ګڼل کیږ ی
لګه دعلی خیلو دښا خ پنځـــــــه څانګی یی په‌لانـــد ی ډو ل دی :
برهیم خیل ، سو ګړی ، اختا ن ،مسو را ، کند ه تلی ،اود میشیتی
ښا خو له چې دهغو ی له مامازی ،حیدر خیل او داد ی خیل‌را و تلـــی
دی ، اوشیخا ن چې په دوو څانګـــوویشل شو ی دی ، میرزا خیل رنګین
خیل او میرزا خیل ښتو خیل ، چلی‌له پور ته خوانه ملاخیل دی او د
هری یوی لو یی څانګی په سر کی‌څوڅو ملکان دی . په اوس و خت
کی دتیرا اوسیدو نګی سید محمو د‌په دو ی‌کی دډیر اعتبار خاو ند دی
اوخصو صاً دمحمد خیلو څـــــــانګه دته ډیر اعتقادلری‌نوځکه دشیعه
مذهب دوړاند ی تګ په حال کـــی‌دی . ددغه ښا خ څلور و خوا ووته
متالفی قبیلی او سیږی . نو ځکـــه هریو سړی یی تقر یباً یو تو پـــك
لری، توره اولویه چاړه چې پـــــه تیرا کی جوړیږی تقر یباً له هـــــر
بالغ سړی سره شته ، همدا رازدوی‌تمانچي او پیش قبضی‌هم ساتی .

اورګزي جنګيالي خلک او ښه سپايان دي . ددوی د ديستي (وطني) تو پکو دجملې نه دجزايلونه پر ته دنو روداندا حت سا حه لنده ده اوليري نه لګيږي خو دوی ښه لښه ويشتو نکي دي دخلکو وني يې جګي او متوسط اندامو نه لري. دوی ډير فعال او زيار ايستونکي دي . دوی دګزني په چارو اولې شمير يې په مالداري بوخت دي دځمکو ډيره برخه يې للمي خو د يره حاصل خيزه ده تر دي چې په ځينو ځايو نو کې دوه فصله حاصل ګوي . په غلو کې وريجې ، غنم او اور بشې ډيرې کرل کيږي ،شلغم او کدو په زياته اندازه کرل کيږي او حاصل يې دومره ډير دی چې خلک يې د چوی اوتريل فصله پوري يې خوري په عمده ی ډول هورلز غلې داني هم دلته پيدا کيږي چې عمده ډو ل يې ګرخي * (لو بيا)دی چې زيات حاصل ور کوي .

ددوی دملک دخوراکي موادوپيداوار دد وی له پاره کفايت کو ي خود پو ښاک له پاره په هومره اندازه تو کر له نورو ځايو نو نه را وړل کيږي ، دګو هاټ، پيښور اوخوست له بوډين او رنګه لسو ګران اخيستل کيږي.

دوی دقحطي او غلې د کموالي په وخت کې نه ننګښيږي ، کسور مي او خوست نه غله اخلي.

دعلما ور اختيار او واک په دوی کې ډير دی او ګله چې ګومه شخړه پادښمنې ده زي تر مينځ پيښه شي دعا لما نو دګلي ملګانو له خوا فيصله کيږي . په دو ی کې کو رنۍ دښمنۍ ډيرې دي،اواکثر دوو کو ندو نو تر مينځ جګړې روا نی وي.

دوی معتبر او قدر منديلمه ته په ډيره مينه اواخلاص عزت ور کوي او پالنه يې کوي خوخوراک يې چتل دی. ځوی دجوارو دوډۍ استعما لوي او دپسه غو ښه په نا قص ډول په اور کبا ب کوي او خوري يې.

---

* اصل : کوزخي

# دمنګلو قبیله

دغه قبیله تقریباً له شپږ سوو کالو نه را په دی خوا دهغی دقبیلی په ګلهون دبنو په سیمه کی‌او سیده . لکه څنګه چی دشیتک (بنوڅی)ښاخ په حالاتو کی‌وویل‌شول.دوی دشیتکو دغلبی په وخت کی دبنو سیمه پریښی ده او د خوست‌او کور می لو ید یځو غر نیو سیمو ته‌را غلل او هلته میشته شو ل‌چی تر اوسه هم هلته اوسیږی،

دځدرا نو قبیله دهغوی سهیلی‌ګاو ندیان او دهغوی پخوانی دښمنان دی دوی خپل پو ښاك له وړینو توکر انو نه جوړوی .په خوراك کی د غنمو او اور بشو نه ډیره استفا ده کوی .دوی په زیاته اندازه په ما لداری بوخت‌اوهمداراز کر نه په کی لری

ده. دغه خلك ډیر جنګ جو یه نه دی او شمیر یی تقریباً یوولس زره تنو ته رسیږی . منګل په خپلو منځو کی لږی جګړی کو ی‌او تول په یو ه کبو ندکی دی. هغوی زیا تره دوړ یو او حیوانا تو په پلور لوسره خپله کو زاره کوی‌اود زر مت اوخوست په سیمه کی غلی اخلی . دوی ناپوه اوبی آزا ره خلك دی. منګل‌له خپلو غر نیو سیمو نه لر کی دخرڅلا وله پاره خو ست ته راوړی . یوه با وری سړی دد وی دیوعجیب‌رسم په باب داسی ویلی دی ،چی کله دچا په کور کی نار ینه اولاددنیا ته راشی او که په هغه ورځ کوم میلمه دغه ځای ته را شی نودهما غه میلمه نوم په ما شوم باندی ږدی .یاد کو می لو یی‌پیښی نوم ور با ندی ایښو دل‌کیږی چی په هما غه ورځ مینځ ته‌راغلی‌وی.

## دمقبلو قبیله :

دمنګلو دقبیلی قطب اود ځاځیوښاخ په لوید یځه غرنی بر خه کی دمقبلو کو چنی قبیله استو ګنه لری . خو ددو ی په باب ډیر معلوما ت تر لاسه نه‌شو ل. ددغی‌قبیلی یو څو کوره دخو ست دلکن په سیمه کی‌هم دهمسا یه په ډولږو ند کوی ، داسی ویل کیږی چی هغوی به ساده اوبی آزاره خلك وی .

## د کرلان د دویم زوی ککی د نسب شجره

ککی

برهان | خوګیانی | سلیمان | شیتک — د باقی دریو نسبنامې وروسته راځي

عثمان یا آفریدی | لقمان یا ختک | جدران | اتمانخیل — د دغو دریو ورونو نسبنامې هم وروسته راځي

د عثمان شجره به راتلونکي مخ کې وګورئ

## داپریدو د نسب شجره

92



# داپریدیوقبیله

دد غه قبیلی لوی نیکه عثما ن‌نو میده . دد وړ دتسمیي وجـه داسی ده‌چی یوه ورځ څو مفلس او بی‌وزله میلمانه دعثمان کورته راـ غلل . دژمی موسم و. دسوړوا لی‌په وجه میلما نه یودبل تر څنـګ

کښیناستل . کله چی عثمان راغی‌نو دوی پو ښتنه وکړه چی داڅوك، دی هغه په پښتو ژ به ځواب ورکړ چی دا هم آفر یده دخدا ی ،(ج) دی چی له دغی ور ځی نه دآفریده‌په نوم یا دیده‌اوډیر استعمال پـه سبب په آپر یدی سره مشهورشول‌چی په مجموع کی دده اولاده داپرـ یدی‌په نوم‌یادوی* . په دغه قبیلی‌پو ری چی څو مره مشهور ښاخونه مربوط دی دهغوی نو مو نه دنسب‌په شجره کي راغلی دی. په‌دو ی کی دشمیر له مخی د اولا نسل«اولاخیل» تر ټو لو ډیر دی چی پـه دوی پسی فیر وز خیل او بیادمیراحمد خیلو شمیر زیا ت‌دی.داقبیله ډیره جنګیالی او لوټ ماره ده اوله‌دی‌کبله چی په سختو او صعبـ العبور و غرو نوکی او سیږی نـو په‌خپله خپلواکی‌باندی‌ویاړی ددغه قبیلی ستره پناه‌ګاه دتیراء سیمه ده. که څه هم تیراء ډیری غر نـی سیمی لری خو په دغه ملك‌کـــی‌دغره په سر یوه اواره او میدا نی سیمه ده چی ښه او سړه هوالری. پـــر تیر اء با ندی وړا نـــد ی نو ر و قبیلو سلطـــــــــــه لرله‌خونو موړ ځا ی اپرید یـو د

دتورږ په زور له هغونه ترلا سه کړی دی .او هغه لړ شمیر اصلـی تیرا یان چی پاتی شوی وو هغـه‌لو ید یځ یعنی دننګر هار خوا تـه ولا ړل . دجها نګیر دوا کمنی پـه دوره‌کی د پیر روښا ن‌لمسی احداد چی‌دنوموړی‌کیسه دا ور مـــړ و دقبیلی‌په بر خه کی لیکل شو ی‌ده. داپر ید یو پیرو . دهغه دچا لا کی‌او مرستی په ذر یعه اپر ید یوله تیرا اتمان‌خیل خارج او دا ورکزیوسره هم وجنګید ل اود تیرا شمالی

بر خه یې ونیو له، دغه زړه و ره‌قبیله دختیځ لو ری ته دختکـو د حدود واو کاکا صاحب زیا رت ته نږدی نه‌را نیو لی لو ید یځ خواته دراجګل او خیبر سیمی نه ترننګـرهار پو ری په هغو غر نیو بر خـو چی دپیښو رد ضلعی دحدود نـــه دجنوب لویدیځ خوا ته نښتـــی‌دی

---

* دد غی عا میا نه، اومضحکی تسیمی په باب دتعلیقا تو بـسرخه، و کوري = (رشاد)

قبضه لري . ددوی په سهیل کې داور کز یو قبیله او بنگش او به سپین غره کې خمکني لویدیځ ته سنگو خیل شینو اری او په شمالي خوا کې مو مند دد وی گاونډیان دي. له دغو بناخونو او قبیلو سره او س دوی دو مره سخته دښمني نه لري. خو داور گز یو سره ، دپخوا نی دښمنۍ نه پرته دسمل او گاړی ډگو ند ونو په ارتباط او همدا راز دشیعه او سني مذهبو نو په پنادد وي تر مینځ په وار وار جگړی مینځ ته راغلي دي او د سنگو خیلو ،شینوا رو سره هم دکوکي خیلو اپریدیو مرگ اوژوبله شوی ده اپریدی ټول سني مسلما نان دي.

ددی قبیلې دټولو وسلو وا لو کسانو شمیر داحمد شاه ابدالي د سر شمیرنې له مخه (۱۹) زره گنه ښودل شوی دی په دی دو ل چې ملک دین خیل چې دتیرا په میدا نگی او سیږی له خپلو ټولو ځا نگو سره دری زره ، قنبر خیل هم دخپلو ټولو ځانگو سره دری زره چې دغه ښا خ هم دتیرا په میدانگی استو گنه لري ، کوکي خیل چې دراجگل او خیبر په شاو خوا کې چې دتیرا په میدا نگی میشته دي دری زره گنه ، زخه خیل چې دتیرا په میدا ن گی استو گنه لري دری زره ، اکا خیل په وړا ن ، سه پای په باړه او قصري په متفر ق ډول په غرو نو کې دری زره او آدم خیل چې دکوهاټ په شمالي دره او هغه غره کې چې په ختیځ کې د ختکو له حد سره یو ځای کیږی د هغه غره په شمالي او جنوبي دواړو خواو کې او سیږی څلور زره تنو ته رسیږی .خو او س دغه شمیر صحیح نه دی او په هر یوه لوی ښاخ کی هغه تفاوت چې او س مینځ ته راغلي دهغه نه داسی ښکاري چې په عمومي ډول دد غه شمیر په نسبت یې شمیر ډیرزیات دي .

که څه هم ددغه قبیلې اصلي کسب کر نه او زراعت دی خو دکرنې ځمکود کموالي په سبب دغه کسب لږ دی . دا ځکه چې دتیرا دمیدا ن دسیمې له پر ته ددغه علا قې غرو نه لوړ او زور دی او د کرنې له پاره مساعد نه دی.دکرنې نه پر ته دوی په ځلا، د سون په لرگيو ، مالداري او په سوداگر ۍ خو لو له لاری خپله گو زاره کوی ،دوی دغرو نو دلمنو لـه و چو لرگي او بو ټي دغوایا نو او خرو په وسیله راوړی او اکثرا د غـه شیا ن دپیښو ر په بازار کې پلور ل کیږی لو ځکه دپیښور دلر گیو په منډیې کې هر ی خواته چیرو کتل شي داپریدیو غوایان او او ښا ن لیدل کیږی .

په همدې ډو ل دکوهاټ دضلعې شنه مالگه هم دد رنگ ( دما لگی

کان ) نه دغو ځلاو له پاره‌راوړي . په تیره بیا د آدم خیلو ښاغ په زیات اندازه د مالګې سودا ګري کوي . د دغه قبیلې آواره خلک د غلا او لوټ سره ډیره مینه لري. خصوصاً د زخه خیلو او کوکي خیلو ښانګي په دغه عادت کې ډیر مشهوري دي او د کابل او پېښور تر مینځ لاره چې له خیبر له تیریږي او مسافران ور باندې تګ را تګ کوي . د دوی له لاسه خطرناکه شوی ده او هغه روپۍ چې د کابل د امیر له خوا د لارې د خلاص ساتلو په منظور یې دوی ته ورکول کیږي له هغو نه هم چندان ګټه نه ترلاسه کیږي . ځکه چې دغه روپۍ اکثراً خانانو، ملکانو او مخورو خلکو ته ورکول کیږي خو د دوی عادي خلک د مسافرانو د لوټولو انتظار باسي او که د دوی پسې اساس چا ته یو څه ور په برخه هم شي په خپله برخه قناعت نه کوي.

له کوهاټ نه هغه لاره چې د آدم خیلو له مقبوضه درې نه پېښور ته تللې ده په هغې کې هم دوی لوټ کوي او سره له دې هم چې ځینې وختونه دوی ته د لارې د خلاصون په منظور انعامونه ورکول کیږي. سره له دې هم د دغه درې لارې بلدې وي او د دغه عمل د بندولو په منظور به ښه داوي چې یو مستقیم سړک د کوهاټ نه د سرکاري سیمې په مینځ کې اټک ته وایستل شي .

اپریدي عموماً په خوراک کې له غنمو ، وریجو ، جوارو او اوربشو نه ګټه اخلي او د پسه‌ی‌حمتا او د سپینو وړیو نه جوړ اوبده کمیس اغوندي دوی د خوراک او پوښاک د ضروریاتو د رفع کولو په منظور تل پېښور ته تګ راتګ کوي چې د دوی د پېښور اهمیت له د مخنیوي او بدل اخستلو له پاره یو ګټور رعمل شمېرکیږي. د دغه قبیلې خلک د نګر خو ګلک ، تګړه زیار ګالونکي او اکثراً جګې ځواني لري ، هر ځوان سړی په خپل کورکې توره ، سپلاوه چاړه او له تسمونه جوړ شوی ډال ساتي . او همداراز چقمقي رخدار ټوپک چې لیري لګیږي او هم یو یا دوه تمانچې ساتي ، د تیرا توري او چړې په ښو ښو لوکې مشهورې دي . ځینې اپریدي په نښه ویشتلو کې ډیر مهارت لري . ویل کیږي چې د دوی د ټوپکو شمیر او وسله والو کسانو شمیر یې سره برابر دی . دغه قبیله په دوو ګوندولو ویشل شوی ده چې یو یې سمل او بل یې د ګاړې په نامه یادیږي. ملک دین خیل ، زخه خیل، اکاخیل، سپاي او قمري د سمل په ګوندکې او قنبر او کوکي خیل د ګاړه په ګوند کې شامل دي . آدم خیل د دوی تر مینځ منځګړ توب کې ژوند کوي یا کله د سمل سره ملګري او کله د ګاړي سره یو ځای کیږي ، خو د ګوند ی له کبله ځینې وختونه

دوار و ښا خو نو اوښانګو تر مینځ هم کورنی شخړی او فساد و نه مینځ ته راځی که څه هم ددو ی تر مینځ مرګ ژوبله او دښمنی زیا ته د خو سره له دی هم دبهرنی غلیم دخطر په وخت کی سره یو ځا ی کیږی . خو دآدم خیلو ، اولا خیلواو اکا خیلو تر مینځ دښمنی ډیر پخوانی ده . کله چی ټوله قبیله له کو می ستونزی سره مخا مخ شی نو دټو لو ښا خو نو ملکان سره راټو لیږی اوپه خپلو مینځو کی سره سلا او مشوره کوی .او په دغه مشوروکی چی کومه پریکړه وشی نو هر یو ښاخ یی دخپل ملك په مشری تر سره کوی . او س په ملك دین خیلو کی دخان بها درزوی مدت خان چی دده زوی اعظم خان نو میږی ، په قمبر خیلو کی د شیر محمد خان زوی محمد غوث په کوکی خیلوکی عبدالله نور په زخه خیلو کی بوستان او دالله داد زو ی فیروز ، په اکا خیلو کی سلطان محمد ، اوپه سه پا ی اوکمری کی سراج الدین او دآدم خیلو په ښاخ کی عادل ، جنګو شاولی ، پیری او پاینده خا ن ملکان د ی .

داپر یدی یو قبیله ډیر غوا یا ن ساتی همدا راز دوی آسان هم روزی ددو ی دسیمی کچری دجنسیت له مخی ډیری ښی دی اوډیری روز ل کیږی. که څه هم دپسو نـــو اوزوږ می دلته شته دی خو شمیری زیا ت نه دی آدم خیل اوښا ن هم ساتی چی په هغو باند ی د مالګی او نورو شیانو سودا ګری کــوی .

داپر یدیو په قبیله کـــی ډیر ښه سپایا ن موند ل کیږی .او نوی ځوانا ن یی دانګر یزا نو پـــه پلی پوځ کی شا ملیدو سره ډیـره مینه لری لکه چی اوس هم پـــه مختلفو ځایو نوکی ددغه قبیلـــی تقریبا (۲۰۰۰) تنه دسر کار پـه پوځ کی په نوکر ی بوخت دی .

ددغی قبیلی زیات خلك چی ویل کیږی شمیر به یی تر زرو کورونو زیا ت وی دهند په دکن کی میشته د ی ، ا و ر یـــد ل کیـږ ی .چی ددو ی یو شمیر په پا تی پـــت کی او خو کوره نور یی دلودیا نه په ضلع کی استوګنه لری . هغوی دجهانګیر پاچا د واکمنی په دوره کی داغتشا شو نو د رامنځ ته کو لـــواو دپیر تاریك ( پیر رو ښان ) له اولادی سره دګډو ن په سبب هلته ولیږل شو ل او په دکن اوپانی پت کی په خواره واره ډو ل آباد دی. په هغه وخت کی رستم خان اپریدی یو مشهور سړی وچی دده کورنی هم پانی پت ته لیږ دول شوی وه .

ددو ی یو څو کوره په کشمیر ،تونک او همدا راز شل کوره یعنی دمسعود و او و زیر و په سیمه کی چی له هغو نه یی څلور کوره پسه خاص کانی گرم کی استو گنه لری.

**دختکو دشجر ی په باب یادونه :**

دا څر گنده خبره ده چی مغلګی، سینی ، او ریاخیل او څلوزی او په اصل کی ختك نه دی خو ډیر ،مودهوشوه چی ددو ی نیکو نه د ختکوله قبیلی سره یو ځا ی شو ی او څرنګه چی دوی دختکو په قبیله کی ډیرو دونه او خپلوی کړی دی نوځکه له دوی سره داسی ګڼ شوی دی چی اوس دوی هم دختکو په نامه بلل کیږی . دمغلګی ښا خ دمغو ل په نوم دیوه سړی اولاده ده . چی په ختکو کی یی واده کړی و او دهغه اولاده دمغلګی په نامه سرهمشهوره شوه . او د سینی ښاخ هم ختك نه دی او ددلا زاکو دښاخ یوه سړی چی سین نومیده په ختکو کی یی واده و کړ او دخپل خسر په کورکی اوسیده چی دده اولاده دسینی په نامه یادیږی چی دادولړه ښا خو نه په وصلی توګه دختکو قبیلی د بولاق له ښاخ سره ګډ د ی .داوریاښاخ حالات په دی ډول دی چی د مهمند ی په نوم یوی کوندی ی ښځی له یوه سړی سره واده وکړ او د پخوانی میړه زو ی یی چی اوری یا نومیده له ځان سره راو ست مهمند ی ددغه ښځی احترا م پــه سبب نو موړی هلك له ځا ن سره واخیست او په برخه کی یی له ځان سره ګډ کړ او هغه ته یی دکـو م ختك لور نکا ح کړه چی دده اولاده داوریا خیلو په نامه یادیږی او د څلوزی ښا خ دیعقو ب دزو ی رشیداولاده ده .

نو موړی دخلیلو له قبیلی نه و رشید په پخوا و ختونو کی د علی خان په نو م دیوه ختك له لـو ر سره و اده کړی و او دختکو پــه سیمه کی اوسیده دده نسل دده دمیر مئی په نوم چی څلوزی نو میده ونو مول شو . همدا راز دنګر زی هم یو وصلی ښاخ دی. دغـه دری واړه وصلی ښا خونه د تر یــــو سره ګډ دی له دوی سره برابــره برخه لری او ختك ور ته و یــل کیږی .

# دختګو د قبیلې حالاتو بیان

ددغه قبیلې لو ی نیکه لقمــــان نو میده چې د کر ړان لمسی و او د
لقمان نه ختك ته دده نوم او ښتلو علت په با ب داسې ویل کیږی چې
یوه ور ځ لقمان له خپلو ورونــو عثمان اتمان او ځدرا ن ســــر ه
دښکار یا کو م بل کار له پاره صحرا ته تللی و په دغه وخت کی دو ی
ناڅاپه څلور ځوانی ښځی چې ددو ی له کالیو نه دپیغلتوب نښی ښکاریدی
ولید ی چې ددو ی په خوا راروانی وی ، په دغه وخت کی دو ی پــــه
خپلو مینځو کی سلا و کړه چې دا لوی ښکار به تر لاسه کوی او پچــــه
به ور باندی اچوی او دپچې له مخې به دوی ته یوه یوه ښځه ورسیږی .
څرنګه چې لقمان تر نورو مشروویی ویل چې زه به لومړی له دوی
نه یوه خو ښه کړم په پاتی دریــو باند ی تاسی پچه واچوی ، پــــه
دغه وخت کی لقمان له هغو څلور وښځو نه یوه پرته له دی چې مــــخ
یی لیدلی وی یوازی دکالیو لــــه مخې انتخاب کړه او نورو ورو نــــو
یی د پچو په اساس یوه یوه ښځه انتخا ب کړه . کله چې دوی ـ و لیدل
نو دلقمان په برخه یوه توره ا وبدرنګه ښځه رسیدلی وه . خــــو
څرنګه چې هغه دنومړ ی په نا مه شوی و ه له غیر ته یی ومنله کله
چې نورو ورونو یی دلقما ن دغــــه حالت ولیده نو په خندا شــــو ل
او په پښتو ژ به یې وویل چــــې لقمان په ختـه لاړ اوپه پښتو کــــی
دامتل مشهور دی . کله چې څــوك په کوم کار کی بیر ته پاتی شــی
او یا وغو لیږی نو نور ور تــــــه وایی چې په ختـه لاړ .
ددغه عجیبی پیښې له مخې لقمان دختك په نوم داسې شهرت و مو ند
چې اوس دده ټول نسل دختك پــــه نامه بلل کیږی دهمد ی میر منی
نه چې سبا که نومیده ختك دو ه نارینه اولاد و نه دنیا ته را غلل
چې یوه باند ی دتورمان او بل باندی بولاق نوم کیښود چې د ختکو ټو له
قبیله ددغو دو و ورونو اولا د ه ده چې دهر یوه حالات دښاخو نـــو او د
څانګو سره دنسب په شجره کــــی راغلی دی .
دتور مان اولاده له بولاق اولا دی نه دشمیر له مخې ډیره زیاته ده .
دتورما ن له دوو زامنو نه چې دنسب په شجره کی هم راغلی د ی

## د کرران د لسی لقمان یا ختک بن برهان نسب نامه



## دانوخیل بن برکویط بن تری د نسب شجره



د ختک د لمسی ترکی بن تورمان د نسب شجره



د خټک د دویم زوی بولاق نسب نامه



تری ډیر پوه او لایق و ، چی دهغه په اساس دتورما ن توله اولاد د
دتری په نامه سره مشهوره ده .

# دپخوانیو پښتنویان او اوسنی ملک ته ددوی دراتلو څرنګوالی

جوته ده چی په پیل کی دختکو قبیله دشوال په غره کی میشته وه نو موږی غر دسلیمان دغره یوه لوید یځه لړی ده ، چی اوس په دغه غره باندی دوزیرو قبیله تسلط لری.. له دغه ځا یه تقریباً شپږ سوه کاله وړاندی د منګلو او هنی ښاخو نه د بنو سیمی ته ننوتل . ددغه ځای ځمکه ا و ویاله چی سد راون ، نو میږی ا و اوس هلته دوزیرو احمد زیوبیز نخیل سپیرکی او سیږی په هغه وخت کی دختکو په لاس کی وواو څرنګه چی وړاندی وو یل شول کله چی دهنی او منګلو ښاخونه د شیتکو دښاخ له خوا په هماغه ډول چی دبنو څیو دتا ریخ په برخه کی وویل شول له بنو نه وایستل شو ل . نو په دغه وخت کی دختکو سره دبنو څیو دښمنی پیل شو ه اوله دی امله یی دسدراون ځمکه خو شی او قطبی او لوید یځو غرو نوته چی اوس د ختکو دغرو په نامه بلل کیږی لاړل اوپه کربو غه تیری ، چوتره ،لا چی ا وشکر دری باندی یی ترنیلا ب یعنی دسند تر روده پوری یی قبضه ټینګه کړه او څرنګه چی دغه غرپه هغه وخت کی بند آباد شو ی نه و نو ځکه یی هغه بی له کو می شخړی اوجګړی ترلاسه کړ،پد غه وخت کی له ریسی نه نیولی ترکوهاټه پوری داورکزیو قبیله میشته وه، لوید یځ ته دکرمی په لاره دبنګښو قبیله په خانه کوچ ډول راغلی وه او د هغوی اواورکزیو تر منځ جګړه پیښه شوه او څرنګه چی له پخوا نه داورکزیو او ختکو تر مینځ یو لړ شخړی موجود ی وی نو په دغه وخت کی ختکو له بنګښو سره مرسته وکړه اوکوهاټ له اورکزیو نه دبنګښو لاس ته ورغی او ریسی ، پټیاله ، زیړه ، توړه اوتر خیری پوری سیمی دختکو لاس ته ورغلی او دختکو او بنګښو تر مینځ یوغر چی دکدا خیلو اولا چی تر مینځ موقعیت لری سر حد و ټاکل شو،چی تر اوسه پوری هم دغه سر حد پخپل حال پاتی دی . تر هغه وروسته کله چی دختکو قبیلی په شمیر کی زیاتوالی را غی په هماغه تناسب یی خپلو مقبوضه سیمو ته هم پراختیا ور کړه او اوس یی هغه ټول پراخ ملک نیولی چی په پیښور کی د یو سفزیو د سیمی اود

کابل یالنډۍ سیند له شما لیځنډونه نیولی تر کالاباغ، عیسی خیلو، مروتو ،دبنو د ضلعی و زیر و او دسند رود تر لو ید یځو ځنډو پوری غزیدلی دی .

دختکو ملك د کوړ والی سر ه‌سره شمالا او جنو با اوږد پروت ، دی او دغه اوږد والی د کابـــل‌سیند نه دمالګینو غرونو تر سهیل پوری تقر یبا سل میله دی .

منځنی پلن والی یی له ختیـځ‌نه لو ید یځ خواته تقر یبا شلو ــ پښتو ، میلو ته رسیــــږ ی. ختیځی خواته یی اکثرا دسند رود موقعیت لری ، خو دډ ی‌یو ښــاخ‌چی ساغری نو میږی در او لپنډی ، ضلعی دمکهډ په ښار اوله هغه نه‌سهیل ته ترماړی پور ی دسنــــد

دریا ب په‌لو ید یځه غاړه تسلـطلری ،خودمکهډښاراوددغه دشاخوانه پر ته پاتی دختیځی غاړی ختـــك‌کمزوری دی . دختکو د ملــــك لوید یځ خوا ته داپرید یو، بنګښواونورو قبیلو پولی سره یو ځــای ،کیږی او سهیل ته یی دبنو پـــه ضلعه کی میشته قبیلی او سیږی . دختکو دملك سهیلی بر خو تــه سخت او صعب العبور غرو نه‌پراته دی ، دختکو تو‌له سیمه دانګریزی‌سر کار رعیت‌دی .

څرنګه چی پور ته وویل شـو ل‌د دوی ملك د کابل یا لنډی سینـد نه سهیل خوا ته پروت دی .

ددی نه‌پر ته د یوسفزیو پـــه سیمه کی تقر یبا څـــــو ا رلس زره تنه‌ختك او سیږ ی.

## دختکو د مشرانو و ړاند ی تـګ‌اودترقی‌څر نګوالی:

څرنګه چی په تو‌لو قبیلو کـــی‌مرو جه ده‌چی هر یو ښا خ یــــو یا څو تنه ملکا ن لری او دملـك‌خطاب ور ته کیږی ، په همدغـــه ډول دختکو قبیلی هم‌یو شمیـــــرملکان درلود ل‌او دخپل ښاخ مشری به یې دلوټ اولار و هنی په وخت‌کی په غاړه لر له چی ددو ی لــه ډلی نه درویش محمد چی چنجو هم‌بلل کیده او دحسن خیلو دښـا خ مشرو داکبر پاچا دواکمنی په وخت‌کی ډیر شهرت‌موندلی‌اوزړور انسان و. همدا راز دده زو ی‌ملك اکوړ ه‌هم له خپل پلار نه‌کم نه و او د

پیښور او لا هور لو یی لار ی‌دسندرود له لو ید یځو غاړ و نه تر بو شهره پور ی سیمی دده قبیلی‌دخلکو له‌خوالوټید لی.

پخپله ملك دکوړ له اټك نه‌شپږمیله لو ید یځ‌خوا ته په یــــو ه غره کی او سیده او دګیدړ کلی‌دری‌نه تر نو شهر ه پوری مسا فرا ن د ده ښکار کېدل کیدل . کله چی اکبرپاچا له هند نه کابل ته را غـــــی او داټك کلا ښست یی کیښو د نوپه دغه کال کی نو موړی دعمو مـــی

لارو د منظمو لواولا رو هنو د لـه مینځه وړ لو اعلانوکړ او شا وخوا لوی ځمکه وال یی زا و غو ښتل ا وملك اکوړ ته یی دعا مولارودساتني وظیفه وسپار له او ددغه کار په بدل کی له خیر آباد نه تر نو شهره پوری اوله تبی نه تر موسو در ی پوری دشاهی دربار نه هغه تـــه جاگیر ور کړلشو همدا راز زلوزیاوسپین خاك هم ده ته ور کړ لشو او هم د کښتیو دتگ راتگ حـــقاکوړ نه و ټاکل شو له دغه و خته ملك اکوړ په لو یو معا ملــو لا س پوری کړ .

دبولاق دښا خ له خلکونه یی دزراعتی پیدا وار څلورمه بر خه او له یو ی قلبی نه یی دوه روپی محصول اخیسته او په هره څاه باند ی دکابل پنځلس رو پی او که چا بـــــه په خپله کیند لی.وه نو (۲۵)روپی په یی محصو ل اخیسته .

دخیر آباد نه تر نو شهر ی پوری دتر ی ښا خ میشته و ددو ی نـه دپیدا وارو لسمه برخه اوله یـوی برخی ځمکی نه (۳) رو پی محصول اخیسته او دنیل غا ښی نه ترخور ماو سیني پور ی له هر یوه کورنه دلوگی په نامه دوه روپی کلنـــی محصول تر لا سه کیده .

دختکو سیمی دشنني مالگی دکان له پاره یی داسی پر یکړه و کړ ه چی دجټ له کان نه دختکو قبیلــی لپاره دغوایانو په هربار یـــو ه روپی او د اپرید یو اونورو نـــه داوو غوا یانو په باریو ه روپـــی محصول واخلی او د اوښ پـه یوه بار باند ی یوه روپی محصول یـــا قیمت ټاکلشو ی و او د مالگینـــی په کان باند ی دغوایانو له دولسو بارو نه یوه روپی اود او ښ لــه دریو بارو نه یوه روپی اخیستـــل کیده په هغه وخت د مالگی کوم بل کان موجود نه و. له چوترو نـــه په هر کور یوازی پنځه روپـــی دلوگی محصو ل اخیستل کیده اوپیدا واریی له محصول نه معاف وو .

ملك اکوړ ی په لار کی یـــوسرای په خپل نوم جوړ کړ چـــی دسرای اکوړه په نامه یادل کیږ ی. نوموړ ی ډیر مذ هبی تعصب لاره او له هندوانو په تیره بیاله جوگیانوسره یی سخته دښمنی لرله او دجوـ گیـــا نو پـــه و ژ لو کـــی تردی اندا ز ی مشهور و کله چـی په اتك کی داکبر پاچا حضور تـه ورغی نو پاچا دده نه پو ښتنه وکړه چی تا به څو تنه جوگیا نی وژ لـــی وی ملك اکوړی په ځوا ب کی ورته وویل چی شمیر یی زما په یاد نه دی خو دهر یوه وژل شوی جوگی دغوږ

اکړيِ مي په یوه ځاور ین منگو تیکی اچولی دی چی له هغوی ته ځو متو ته ډك دی . نو خدا ی پو هیږي چیدغه سخت زړی ساتونکی به لار ی څومره ساتلی وی .

لنډه داچی ملك اکوړ داکبـــرپاچا سره تر نو کر کیدوو روستــه یو ځلو یښت کاله حکمرا نی وکړ ه، تر څو په پای کی دبولاق د ښـــاخ خلکو نو موړی په پیر سباك کـــیچی داکوړی اونو شهره تر مینـــځ موقعیت لر ی وو اژه . داکوړ تـــرمړینی و روسته دهغه مشر زو ی یحییخا ن دخپل ملك مشر شو چیدده په وخت کی دیو سفز یـــو ، مندړ و او ختکو تر مینځ کلکــــه دښمنی پیښه شوه . یحیی خـــا ن تر یو شپیتو کالو حکمرانیوروسته دخپل زو ی علم خان سره یو ځـای ووژل شو او دده ځای دنو موړ ی بل ځوی شهباز و نیوه . دی ډیـر پوه سړی او ښایی چی د پوهی سـر ه سره یی په عدالت چلند کړی وا ی خو داسی و نه شول اوهغه دډیـروکوچنیو تفسانی غو ښتنو په سبـب د خدای ډیر بیگناه بنده کـــا ن په هغو جگړو کی چی ددو ی ا و یوسفز یو تر مینځ پیښی شو ی ،دده له خوا ووژل شو ل . په پای کی دی هم تریو د یرش کاله حکمرا نیوروسته دکمال زیو ، یوسفز یوپه سیمه کی په داسی حال کی چـــیلوتما ران یی تعقیبو ل دهغه تیر ی په ذریعه ووژل شو چی دده پــــه سر باند ی و لگیده .*

---

*شهبا ز خان په ډبر ه نه د یویشتل سو ی بلکه غشی یی پــر غوږ یچنه نښتی و په تاریخ مرصع (۲۷۰مخ) کی لیکـــلی دی «دی (شهبازخان) په شقیقه په غشـــیویشتل شوی و .» خو شال خـــا ن ویلی دی : « لیك زخمیز تیر بـر روما ند» ــپه دغو ډدواړو )اقتبا ــ سو نو کی غشی اوتیر راغلی د ی. (رشاد)

تر شهباز خا ن و روسته دد مزوی خو شحا ل خا ن دشاه جها ن

پاچا په امر دختهو دقبیلی مشرشو، نو موږی دپاچا په حکم دخپلـــی قبیلی نه یو پوځ راټول کړ او داجمیر په سیمه کی د تارا ګډه په کلا ** باندی دیر غل په وخت کی‌یی پاچا ته ډیر خدمتو نه وکــړه هلته چی کوم راجا یاغی شــوی وهغه ته یی ماته ورکړه او کله چی کلا فتح شــوه او دی بیرتــــه لاهور ته دپاچا حضور ته راغــی نو شاه جها ن هغه، ته څلور لکـــه نغدی روپی وبخښلی اودکال یونیم لك روپی جا ګیر یی په دی شــر طورته و ټاکه چی پنځه سوه سپاره او زر تنه پلی پوځ دشا هی خد مت‌له پاره حاضر کړی ،خو شحــا ل خـــا ن په ختکو ،با نـــــد ی‌پنځوس کاله حکمرانی و کړه* چی په دغه موده کی یی د منډړ و ا ویوسفزو سره ډیری جګړی وکړی چی څو ځله یی ماته وخوړ ه ا وڅو ځله یی بری په برخه شوی‌و خو د پو هی په سبب یی د شــا ه‌جهان دخو ښی په خلاف په خطرنا- کو چارو کی لاس و هنه نه‌کو لــه‌که څه هم دمنډړو او یو سفز یـو سره د میراثی عـداوت پــه سبب‌جنګیده خو دغه جګړی یی داســی ښودلی چی ګوا کی پاچا ته خد مت‌کوی . ددی له پاره چی مـنډړ او یوسف زی دپاچا دغضب ورګرځیدلی‌وو په دغه ډو ل دشاه جها ن‌دواکمنی په دوره کی لوړ مو قف‌لاره او دریاست لار ی چاری‌یی سمی کــړی وی .

---

** تارا ګر ه کلا په اجمیر کی نه ده ـ بلکه دشر قی پنجاب د چنبی په ریاست کی واقع ده دتارا ګر هشمال ته دلهوز ی جنوب ته نور ـ پور او ختیځ ته چنبه پرتـــه د هدنور پور په جنوب کی پتیان کوټ (پتهان کوټ ) پروت دی . (رشاد)

* خو شال خان‌دپلار ترمرګ‌وروروسته په ۱۰۵۰ ه ق‌کال د ختکوخان سو او په ۱۰۸۳ ه ق کال یـــی‌دختکو خانی خپل مشر زوی اشر ف خان ته وسپار له ،پخپله لا چــی‌ته ولاړ په ۱۰۸٤ ه ق‌کال‌یی له خپل زوی بهرام سره جنګ پیښ‌سو‌ځکه چی بهرام دختکو دخانی مد عی و په ۱۰۹۲ ه ق کال چی اشرف‌خان‌مغلو بندی کړ ـ دختکو خا نــی دبهرا م سو له او خو شال خان یی‌خو را ډیر آزار کړ . (رشاد)

خوشحال خان د موزونې طبیعت خاوند و، ده په پښتو ژبه ډیر شعرونه ویلي او یو دیوان د یادګار په ډول ورنه پاتې دی. د دې ددوره ښو او صافو سره کله چې دده ژوند و خپل شی نور ګنده به شی چې دی دلوړ عزم خاوند و او خو ډیر حریص و. له دې کبله یې پای ښه نه و. اورنګزیب د خپلې واکمنۍ په دوره کې له ده ناراضه او هغه یې و نیوه تر شپږ کاله زندان نه وروسته** کله چې د پېښور شاو خوا غر نیو سیمو کې شور شو نه را مینځ ته شول نو په دغه وخت کې اورنګزیب د پاچا یې مصلحت له مخې خوشحال خو شی او خاص آس او خلعت یې ورو با خښنه او په عزت سره یې رخصت کړ، کله چې نوموړی خپل کور ته ورسیده نو خپل زوی اشرف خان یې مشر و تا که د اشرف خان بل ورور بهرام خان چې د خپل پلار سره مخالف و د قبیلې په مشر توب یې له پلار او ورور سره دښمنی پیل کړه او د کاکا صاحب زوی ضیاء الدین د بهرام سره مرسته وکړه، له دې امله اشرف خان، ضیاالدین ونیوه، په دغه خبره اورنګزیب ناراض او اشرف خان یې بندی کړ.

نوموړی په بندګی خپل ځان وواژه او د بې عزتۍ او سختۍ له ژوند نه یې ځان وژغوره. او دده په ځای د ده ځوی محمد افضل خان د قبیلې مشر شو خو شنګه چې دده تره بهرام د خپلې کورنۍ دښمن و نو دې یې هم په کرار پرې نه ښود.

---

**خوشال خان فقط دوه نیم کاله په زندان کې و او دوه کاله یې نور چې په آګره او دهلي کې تیر کړي دی، بندي نه و خو د عام دربار په ورځ مجبور و چې دربار ته د مغل پاچا د سلامي له پاره ورشي۔ د خوشال خان د بند او اجباري اقامت (په آګره او دهلي کې) موده ټوله شلور نیم کاله کیږي. دی د ۱۰۷۴ هـ ق کال د شلور مې خور په نیمايي په پېښور کې بندي شوی او د ۱۰۷۶ هـ ق کال د میاني د میاشتې په پنځمه د رنتهبور له بنده خلاص سوی د ۱۰۷۹ هـ ق کال په اوايلو یاد ۱۰۷۸ هـ ق کال په اوا خرو کې وطن ته را ستون شوی دی. (رشاد)

کله چی په خو شحا لخا ن باندی‌زیات غمونه راغلل په ډیر حسرت مره یی له جهان نه سترګی پټی کړی او کله چی بهرا م هم مړشو* نو افضل خان تر (٦١) کالو پور ی دختکو قبیلی‌مشری‌په غاړه‌لرله**، دی پوه او دښه چلند.خاو ند و ،نوموړی اته زامن لرل چی له هغو نه یی دوه تنه محمدعلی خان‌او سعدالله خان چی په شهید خان باندی مشهوررو *** دیا دونـی وړدی . چی محمد علی خان پـه اکوړه کي او سعدالله خان پـه تیر ی کی او سیدل د محمد افضل خان **** تر مړ ینی و روسته ددوی تر مینځ نفاق‌او جګړی منځ ته راغلی. او محمدعلی‌خان دجګړی له پاره تیری ته ور غی خو ماته یـی وکړه او بیر ته راستو ن شـوخو سعدالله خان دی تعقیب او د اکوړی نه یی هم د هغه لاس لنډ کړ .

سعدالله خ ان اته زامن لـرل ،سعاد تمند خان ، خو شحالخـا ن جعفر خان ، افضل خان او شهبا زخان چی دغه پنځه تنه له یـوی موره ، شرافت له بلی موره ، اولطف الله خان اورنګ مست خـان دبیلي مور نه وو . او جعفر خـا نچی تر ټولو مشرو بی اولاده مړ شو او دهغوی پلار خپل زوی‌خو شحال خا ن له نورو ځا منو نه هو ښیار وګا ڼه او دتیری حکمرانی‌یی ورکړه ، په دی وخت‌کی محمد ـ

* له بهرام خان څخه د سرا ی‌اکوړه خانی د ١١٠٤ هـ ق کـا ل د صفری په لو مړی ورځ افضل خا ن‌نیولی ده ـ دی ( بهرام خان ) شل کاله نور هم ژو ند ی‌و، پـه ١١٢٤ هـ ق کال و مړ . (رشاد)

** دافضل خان دخانی په با ب‌دتعلیقا توبرخه و ګور ی .(رشاد)

***د شهید خا ن نوم په تاریخ‌مرصع کی چی دده دخپل پـلار افضل خان تالیف دی اسدالله خا ن‌کښلی دی ، نه سعدالله خـا ن ـ په حیا ت افغانی ( اصل ٤٢٣ مخ)او توا ریخ خور شید جهـا ن (٣٤٤ مخ) کی دغه نو م سعداللـه‌خا ن سو ی دی ، دغه تحر یـف نورو کتابو نو ته‌هـ م لار کړ یده .(رشاد)

**** دمحمد افضل خا ن نـوم‌دلته په حیا ت افغا نی (٣٢٣مخ ) او خور شید جهان (٢٤٤ مخ)دواړوکی محمد خا ن لیکلی دی . (رشاد)

شاه د ډیلی پاچا او نادر په ایرانکی حکمرانی کوله ، کله چی ابدالی احمد شاه هندوستا ن ته تلی و نودسعد الله خان زوی سعاد تمندخان او خو تنه نور ختك سپا یان یی له ځان سره نوکر کړل دمحمد علی خان زوی لشکر خا ن چی په نوشهره کی او سیده له درانی پاچا سره د سعاد تمند خان د همر کا به کیدو او تللو و روسته په اکوړه یرغل و کړ اوسعدالله خا ن یی دخپل یوه زو ی سره وو اژه او اکوړه یی لوټ کړه کله چی خو شحالخا ن په تیری کی دغه زړه بو کنوونکی خبر و اوریده نو سمد لا سه یی له ځان سره پوځو نه ملګری او داکوړی په خواروان شو لښکر خا ن د بو نیر سیمی ته و تښتیده او خپله کورنی یی هلته پر یښو د ه او دکن ته ولاړ اود نواب منو خا ن سره نو کر شو دو هم خو شحالخان احمد شاه له دغی پیښی نه خبر کړ، درا نی پا چا لښکر خان ونیوه او سعاد تمند خان ته یی وسپا ره چی هغه نو مو ړی دخپل پلار ا و ورو رپه بدل کی ووا ژه.

ابدا لی احمد شاه دخپل فر مان له مخی خو شحال خان په تیری او سعاد تمند خان په اکوړه کی حاکمان وټا کل . کله چی دمر هټه و پو ځ داحمد شاه سره دجګړی له پا ره اټك ته را ور سیده نو دتیری حاکم خو شحال خان ته دپاچا له خوادهغوی سره مقا بلی دنده ورکړل شوه او په حسن ابدا ل نو مـی ځای کی دمر هټو وسره و جنګیده او شهید شو ، احمد شاه دپیښو ر نه وخو ځیده اودمر هټه وپوځ یی مات کړ ، دی دسعا دتمند خان لـه میړا نی او زړه ور تیا نه ډیر خو شحال او هغه ته یی دسر داری لقب ور کړ او تر جیلم پوری یی دی حا کم وټا که او شهبا ز خان یی دشهید خو شحا لخا ن په ځای د تیری حکمران شو.

دابدا لی احمد شاه زوی تیمور شاه سدو زی دخپلی وا کمنـــی په دوره کی سعادت مند خان ته دسر فراز خان لقب ورکړ*
داد ختکو ورو ستی مشر و چی دختکو په ټوله علاقه باندی ی په مستقل ډول حکمرا نی وکړه. داهغه سر فرازخان وچی تر ده وروسته دختکو ریاست او خانی پــه دوو برخو وویشل شوه یو دلو یدیځی سیمی خان چی په تیری کی او سیده او دویم دختیځی ختکو خان چی داکوړی او جهانګیری وا کدارو. چی دهر یوه ښاخ ذکر به په بیل او لنډ ډول وشی .

## لومړی لویدیځ ښاخ:

دسر دار سر فراز خان ترمړینی وروسته دده کو چنی ورور شهباز خان چی دتیری حا کم و په اکوړی حکمرانی کوله ده دنیک چلند له مخی چی خپلو ورو ر ونو یعنی آصف خا ن او نور الله خان ، اشرف خا ن او دسردار سر فراز خان له نــو رو زامنو سره یی وکړ دهغو ی لـه جملی نه یی آصف خان ته دختیځو یعني اکوړی حکمرا نی ور کړه او په خپله یی دتیری یعنی لو یدیځو ختکو حکمرا نی او مشری و منله. سر دار شهباز خان شل زا من لرل چی ددوی نه یی منصور خان خپل جا نشین وټا که او په خپله کوښه نشین شو.

څه مو ده وروسته منصور خان خپل ورو نا صر خان یا نا صر علی ته دحکمرانی چاری وسپا رلـــی او ناصر خان لس کا له دختکو حا کم وناصرعلی خان دخپلی لو میر منـی نه دوه زا من لرل ار سلا خــان او خو شحال خان . دنا صر خان ترمړینی و روسته دسدوز ی شا ه محمود دواکمنی په دو ره کی ارسلاخان دلو یدیځو ختکو مشر شـو ،

---

* دتیمورشاه سدو زی ( ۱۱۸۶-۱۲۰۷ه.ق ) له خوا سعا دت خان ته دسرفراز خان لقب ور کول پـه حیات افغا نی (۳۲٤ مخ ) توا ریخ خور شید جهـــان ( ۲٤۵ مخ ) او دافغا نستا ن اوبلو جستان پـه باب یاد ښتو نه نو می کتاب چی په چی په ا نګــــــــر یز ی ژ به خپور شوی په ( ٤۳۷ مـــــــخ کی را غلی دی سر فرا زخــــان تیمور شاه په پاچهی کی دوه کا له ژوندی و. (رشاد)

چی شاه محمود نو موړی لــه ریاست او مشری نه معزو ل ا و
دده په ځای یی دهغه زوی فیروزخان مشرکړ *ارسلا خان دمنصو ر
خان دزوی نادر علی خان په ذریعه‌وو ژل شو او فیر وز خان خوشحال
خان په تیری کی مقرر کړ، څلــورکا له ورو سته فیر وز خان مړ شو
او په دغه وخت کی‌یی‌زوی عبا س‌خان دده ځای ونیوه او په دغه خبره
باند ی دعبا س خان او خو شحا ل‌خان تر مینځ جګړه پیښه شوه چی
په نتیجه کی خو شحالخا ن دعبا س‌خان په ذریعه وو ژل شو او دنو-
موړ ی توله شتمنی دده کو نــد ی‌میر منی ته چی فرخنده نو میــد ه
او په مو مانی باند ی مشهــوره اوډیره پوهه ښځه وه په میــــرا ث
ورسیده .

دخو شحالخا ن دمړ ینی سره‌سره‌دتیری خلکو دعباس خان حکمرانی
و نه منله او دمنصور خــان زوی‌نادر خان یی‌ددرسمند نه دحکمرانی
له پاره را وغو ښت .دا هغه نادرخان دی ، چی ار سلا خان یی وژلی
و، او شپږمیا شتی وړو سته دسیدخان په نوم یوه سړی چی دارسلا
خان ملا زم ونا درعلی دخپل با دارپه بدل کی وو اژه .اودده ورو ر
بلمل خان یا بخمل خان ددغه ځا ی‌مالك شو اود حسن خان زوی‌رسول
خان چی دسردار شهباز خان لمسی‌و، دتیری حاکم دنا یب په تو کـه
مقرر کړ په دغه وخت کی دفیروزخان زوی عبا س خان دلاهور نــه
درنجیت سنګ دخا لصه پوځ پــه‌ملګر تیا تیری ته را غی اودغــــه
ځای یی ونیوه . رسول خان اپریدیو ته پناه یو وړ ه او دخو شحــال
خان کو ندی فر خندی دخوا جــه محمد خان سره چی ده ته یی زوی

*په حیا ت افغانی (۳۲۵ مخ)اوخور شید جها ن (۲٤۵مخ) دواړ و
کی فیروز خا ن دارسلا خا ن زوی‌ښودل شوی دی- خودا صحی نه‌ده،
فیروز خا ن دنور الله خا ن زو ی‌ونور الله خان دار سلا خان د نیکه
شهباز خان‌و راره و ، دنور الله‌خان‌پلار سر فراز خان و . دا کـوړ ی
خانی دسر فراز خان داولاد ی وه .(رشاد)

ویلی وو چو تری * ته پناه یــووړه، عباس‌خان رسول‌خان له‌اپریا-
یو نه وغوښت او ورو سته تــردی‌چی دوه کا له بند یی ور با نــدی
تیر کړ ، بیا یی په تیری کی‌خپــل‌نایب وټا که تر هغه لـــړه مو د ه
ورو سته دسردار دوست محمد خان‌ورو نو سر دار یار محمد خان ا و
سردارسلطان‌محمد خان‌بارکزی‌عباس‌خان ته دوکه ورکړه او هغه یــی
پیښور ته ورو غو ښت اود زهرودور کو لو په ذریعه هغه ووا ژ ه،
په دغه وخت کی رسول خان پـــه مستقل ډول دتیری حاکم شو، خواته
اسان اولس اوښان یی دند را نــی‌په ډول‌دکو هاټ گور نر نواب‌صمد
خان بارکزی ** ور لیږل او د مـالگین دما لکی دکان عا یدات هم ده
ته ور کول کیدل .                انه
دعباس خان ور ور خواص خا نهم د سکانو په مرسته تر شپـږی
میاشتو پور ی په تیری حکو مـت‌وکړ.خوکله چی کنور گهړ گ سنگ
دی بندی کړ نور سول خان‌یو ځــل بیا دتیری حکمران شو. سر دار -
سلطان محمد خان بار کزی رسو ل‌خان له کاره گو ښه او بلند خا ن
یی ددغه ځای حا کم وټا که او هغه هم په دی‌شرطچی پنځه زره روپی
نغدی او ما لگین کان عایدات هــم‌درانی سر کار ته ور کړی . یوکال
ورو سته هغه وخت چی دسکا نــو لښکری بنو ته راغلی وی دهغـــو
په مر سته رسول خان بیا پـــه تیری سلطه ټینگه کړه او خپل‌زوی
شیر دل یی دسکا نو پوځ ته دیــرغمل په ډول وروليږه خو هغـــه
له لاهور نه بیر ته راو نښتید ه‌له دغه‌وخته دوه کاله ورو ستـه‌
سر دار پیر محمد خان بار کـــزی‌په تیری با ندی یر غل وکړ،
او رسول خان داطا عت تر قبلولــوواو دو لس‌زره رو پو تر منلوپرته‌
دجته او ما لگین دکا نو نو عا یــدهم ده ته‌وټاکل . او میا سیدن‌شاه
دخورم او سنی سیمی په شپږه زره‌او رسول خان دبارك او تیری‌نوری
سیمی په شپږ زره اجا ره کړی اودرانیو خپل ملازم د ما لگی‌دما لگین

---

* تواریخ خوریشید جها ن
په ۲۴۵ مخ کی دچو تری پر ځای تیرا لیکی ده . (رشاد )

** سر دارعبدا لصمد خان بارکزی‌هم دامیر دو ست محمد خان ورو ر
و- دخو گیانو او سرخر ودسرداران‌ددغه عبدا لصمد خان ( ۱۲۰۰ -
۱۲٤٤ ه.ق ) له‌ نسله دی.(رشاد)

او جته کا ئو نو ته داجا رئ پیسودتر لاسه کو لو له پاره ولیږه او؛ دا معا مله تر ځلو رو کلونو پورې په خپل شکل پاتی وه. تر هغه ورو ستنو موږی اجاره پنځلس زره رو پی وټا کل شوه او تر هغه ورو ستنه کله چې سکا نو پیښور فتح او هری سنگ پیښور ته ننوت، پیر محمد خان بار کزی دهنکو او کور مې لــه لاری، کابــل ته ولاړ او په دویم میاشت سگ حکمــران کوهاټ ته ور سیده او هغه وخت چې عطر سنگ سند ها نوا لیــه دکوهاټ حکمر ان شو نو ده درسول خان دبسمن سیدن شاه په مرستــه دسکها نو یو پوځ دتیری نیو لو له پاره هغی خوا ته ولیږه او هغــه وخت یې چې دغه ځای ونیوه دارـ سلا خان زوی شهباز خان اوسید نشاه په لاچی او تیری کی مقررشول. سکا نو په تیری کی یوه تانه جوړه کړه، رسول خان وتښتیــده ، او دغه ځای په ټیکه (۲۲۰۰۰) روپی وټا کل شوه اود ما لگی عایدات هم ټبکه دار ته وسپا رل شهو ل خوهغه وخت چې عطر سنگ لــه سیدن شاه نه یر غل وغو ښت نــوهغه دځان په پټو لو سره له دغه، کار نه ډډه وکړه او شهباز خان هم دغه خبره ونه منله نو په دغــه وخت کی دتیری ریا ست بلمل خان بلمــــل خا ن یا بلند خـــــان * ته ور کړل شو او هغه وخت چې دکو هاټ ضلع دسکا نو له خــوا سر دار سلطان محمد خان بار کزی ته ور کړل شوه نو په دغه وخت کی ختکو درسول خان په تشو یــق په داسی حال کی چی دسکانو په تانه کی تقر یبا دوه نیم سوه سپا یا نمیشته وو، په هغوی یر غل و کړ او وو ژل چی په دغه یر غـــل کی ددوی افسر رام سنگ هــم ووژــ شو او تیری رسول خان ته په لاس ور غله اوسلطا ن محمد خان بار ل کزی درسول خان نه دسکا نــوله خوا دټاکل شو و رو پیو پــــه نسبت زیا تی رو پی وغو ښتلی نو موړی درې زره رو پی کو هاټ ته راوړی او دپاتی رو پیو دراوړلو له پا ره تیری ته روان شو او کلــه چی دغه ځای ته ور سیده نو پــــه بغا وت یی لاس پوری کړ او هغه وخت چی سر دار سلطان محمدخان ته دغه خبر ورو رسیده نو تیری ته یی لښکری ولیږ لی او رسو لخان له تیری نه بیر ته تک تــــه

---

* په تیرو مخو نو کی بلمل خـــــان یا بخمل راغلی اود لته بلمــــــغ

* په تیرو مخو نو کی بلمل خان یامعلومه نه ده چی کوم به یی صحیح وی بلمل یا بخمل که بلمل یا بلنــــد (ژبا ړو نکی ).

مجبور شو او بلند خان او سیدن شاه (۲۷) زر ور وپیو په منلوسره تیری تر لاسه کړه ، تر دو یمی جګړی ورو سته رسول خان مجبور شو چی په پیښور کی سر دارسلطان محمد خان ته راشی او دلسو اسانو شلو او ښا نو اود کال ځلویښت زر ورو پیو په منلو سره یی دتیری حکو مت تر لاسه کړ اورسول خان دده دمرګ تر ,ور ځی پو ری چی اووه کا له ورو سته پیش شوپه تیری حکمرانی کوله او سلطان محمد خان خپل لمسی ته درسو ل خان لور وکړه او همدا راز خپله لور یی درسول خان زوی فتح جنګ خان ته نکاح کړه همدا وجه وه چی رسول خان تر ډیری مودی په خپل حال پاتی و .له بله پلوه رسو ل خان بی بی فر خنده چی له خوشحال خان نه کو نده پاتی شوی وه اخپل ځانته نکاح کړی وه چی دهغی لـه بطن نه دده زوی فتح جنګ خـان زیږ یدلی و. خلك وایی چی رسول خان دوباد ناروغی په اثر مړشوی و. دده تر مرګ وروسته بی بی فرخندی دخپل اصلی زوی فتح جنګ خا ن دکو چینیو الی له امله خپل بـل زوی چی اصلا دد ی له بطن نـه واو هغی ورته ځوی ویلی وو درسول خان په ځا ی وټا که چی نو مو ړی تر او سه هم دتیری رئیس دی .اوخواجه محمد خا ن دخو شحا ل لـه دویمی میر منی نه زیږ ید لی و.

په (۱۸۴۷) عیسوی کال کـې کله چی میجر تیلر دکوهاټ له لاری دیوه پو ځ سره بنو ته خوا جـه محمد خان له نوموړی سره هرډول مرسته وکړه او کله چی تیلر بنو ته ورسیده نو سردار سلطان محمد خان بارکزی خواجه محمدخان ختك پیښور ته وروغو ښت اونو مو ړ ی یی هلته بندی او دتیری حکمرانی یی خپل زوی محمد سرور خان تـه ورکړه او سید خان یی د هغه مـرستیال مقرر کړ له نیکه مرغه په هر ډول چی و دخواجه محمد خـان دبندی کیدو حال دکرنیل لار نـس غوږونو ته ورسیده او د هغه له ویری سلطان محمد خان ، خواجـه محمد خان رخصت کړ. له بله پلوه فرخنده بی بی هم دختکو لښکـر ی راټولی او محمد سرور خان بارکزی یی له تیری نه وایست . نوموړی فکر کاوه چی په دغه بلوا کـې خواجه محمد خان ختك هم لاس لری نو ځکه یی خپل ورور خواجه محمـد خان بارکزی ته چی په کوهاټ کـې وخبر ورکړ چی خواجه محمدخان ختك گرفتار کړی د نیکه مرغه استـاد

وي چـــــــي دغه خبرو ترسره ، په لاركي يي دخواجه محمد خان ختك سره وليدل او بي له دي چي دي يي پېژندلي وي له پيغام نه يي خبر كړ او هغه وخت چي خواجه محمدخان ختك دغه خبرو اوريده نو په ډېر سرعت يي ځان تيري ته ورساوه او هلته دپخوا په شان په حكمراني بوخت شو، خو هغه وخت چي سلطان محمدخان كوهاټ ته راغي نو تيري ته يي دلښكر ودليږلو نيت وكړ په همدي وخت د كرنيل لارنس ليك ده ته وررورسيده چي دي يي له دغه كار نه منع كړي و .

په (۱۸٤۷) عيسوي كال كي دسكانو دبغاوت په وخت خوا جـــه محمدخان ختك دانگريزي سر كارپلوي او خپل يو خپلوا ن شهباز- خان يي د مرو تو په لكي نو مـــي ځاى كي دميجر ټيلر كمپ تـــه ورولېږه او كله چي سردار محمداعظم خان له بنو نه او خوا جه محمدخان باركزي له كو هاټ نه په شاشو ل نو هغو ي متيري لوټ كړه او خواجه محمد خا ن ختك ځان گوښه كړ .

دسكا نو تر بغاو ت و روستــه انگريزي سر كار په لو مړي كـا ل ددرانيو ددور ي تاكلي پيســــــي واخيستي او په دويم كال يي نـو ي اندازه وټاكله او ملكي عا يـدا ت سر كاري شول او دغه علاقي تـه د: مالي په باب يوه اندازه رعايت په پام كي ونيول شو او دخوا جـه محمدخا ن ډېرو ند تر پا يه پـور ي نوموړي ته وسپارل شوه اودعدالت دچارو انتظام سر كار پخپله غا ړه واخيست .

درسول خا ن زو ي فتح جنگ خان دځواني په مرحله كي وو ژ ل شو او خلك داسي عقيده لري چي ښايي نو موړي ته په زهر وركړ ل شوي ، وي . تر دغه وخته لـږ موده و روسته فرخنده هم مړه شوه نو په دغه وخت كي له خوا جه محمدخان نه پر ته بل څوك ددغه مقـام لايق او وړ پاتي نشو ، د(۱۸۵۷ع) كال په بلواكي خوا جه محمد خا ن په ډېر ښه نيت د سر كار په خدمت بوخت و او دغه خير خواهي په بدل كي دلو يد يځو ختكو مشري هم په هماغه مشخصه نسل په نسل خواجه محمدخا ن ته و رو بخښل شوه اوده ته په خپل جاگير كي په (۱۸٦۱) عيسوي كال د انگر يز سر كـــــــارلخوا د لو مړي در جه نه ښكتــــه مجستريټ مقام وركړل شو .او س هم خوا جه محمد خان په دايمي ډول ددغه ځان خاو ند او دانگر يز ي سركار پلوي دی .

ځرنگه چې وړاندې ؤویل شو لسعادتمند خا ن چې لقب یې ، سر فراز خان و .په تولو ختکو حکم چلاوه او په هغه وخت کی دختکو خانانو دارل ریاست اکوړه و . سر دارشهباز خا ن دخپل ورور سر فرا ز خان په امر دتیری حکمرا ن او کله چې سر فراز خا ن مړ شو نو دهغه له ډیرو زامنو نه آصف خان او نور الله خا ن تر نورو مشهور و آصف خان دمشر قی ختکو خان شو . نور الله خان هم ډیر زا من لرل چې کو چنی یې فیروز خا ن نومیده او نو موړی هغه وخت چې له درانی پو ځ سره کشمیر ته ولاړ نو دعزت او نامه خاوند شو اوکله چې بیر ته راستو ن شو دخپل تره آصف خا ن په ضد یې بغاوت وکړ . نو موړی یې ډیو سفر یوخواته دشاړه اوپه خپله یې مشری تر لاسه کړ ه . تر فیروز خا ن وروسته او دده زوی دعباس خان مشر شو او داهغه وخت و چې سکا نو په پیښور یر غل و کړه په هغه وخت مهاراجا رنجیت سنگ دسندله رو دنه تیر خو عبا س خان په یو ډو ل ځان له هغه نه و ژغوره او خپله وفادار ی یې ور نه و ښود له ، مهاراجا ددغه کار په بدل کی یې دهغه مشر ی او خانی په خپل حال پر یښوده اوپه خپل مینځ کی یې ددوستی تړون و کړ او خپلی پگړی یې ددوستی په ډو ل سره بدلی کړی کله چې د پیښور بار کز ی حکمرا ن دغه خبرو اوریده نو په عباس خان باندی بدگما ن او د هغه دوژ لو نیت یې وکړ او داسی پلان یې جوړ کړ چې عالم خان اور کز ی یې دخو تنو نور و سپین ږیر وسره دجرگی په ډو ل ورو لیږ ه او په چل یې دمیلمه په ډو ل پیښو ر ته وروغو ښت اوکله چې نو موړ ی د عالم خا ن په ملگر تیا پیښور ته ورور سیده نو یار محمد خا ن بارکزی هغه و نیوه اوځو ورځی وروسته یې دزهر وپه واسطه ووژه . عباس خا ن دخواص په نامه یو ورور لا ره چې په لاهور کی دسکانو له خوانیو ل شو ی واوهغه وخت چې رنجیت سنگ ډیر نا ډوغ شو نو تول بندیا ن یې خو شی کړل چې په دغه تر څ کی خوا ص خان خوشی اوکور ته دراتلو په وخت دختکو دسیمی په خو ړه نو می ځا ی کی د نجف خا ن دزو ی محمدافضل خان له خوا په بیگناهی ووژل شو ،په دغه وخت کی دآصف خان زوی نجف خان چې دافضل خا ن

پلار وداکوړ ی ملک و . دنجف خان یوه خور د سردار زر دادخان زوی میر احمد خان میر من وه چی نوموړی در ی لو نی لورلی چی یوه یی د سردار دسلطان محمد خان، دویم یی د پیر محمد خان او دریم یی دسید محمد خان، میر منی وی او دوی دری واړه دامیر دوست محمد خان، بارکزی ورو نه وو. ددغی خپلو ی په وجه نجف خان څو کاله حکمرانی وکړه. او نوموړی به دکال دولس زره روپی سردار سلطان محمد خان ته ورکولی. کله چی دپنجاب سپه سالار، هری سنگ پیښور ونیوه نو نجف خان دنیلاب خوا ته وتښتیده او سکانو په جهانگیره کی یوه کلا جوړه کړه او دختکو ټولی میدانی ځمکی دخالصه سرکار ملکیت وګرځیدلی؛

ختیځو ختکو خانانو ته یوازی غرنی ځمکی په دی شرط په جاگیر ورکړی شوی چی داټک او پیښور لاره تر خپل حده خلاصه وساتی.

نجف خان د خواص خان د زوی له خوا ووژل شو، دا ځکه چی پلار ی خواص خان د نجف خان دزوی محمد افضل له خوا وژل شوی و، دنجف خان تر مړینی وروسته دده زوی محمد افضل خان دامیر دوست محمد خان په امر دخپل پلار په ځای وټاکل شو. چی دهغه بل رقیب د خواص خان تربور جعفر خان نومیده: دنجف خان دزوی محمد افضل خان او جعفر خان جاگیر دکال لپنځه زره روپی وچی په دغه شمیر کی دگنبتیو د تک راتگ محصول هم شامل و: کله چی جنوال ابټ وی قبیلی چی په ابو قبیله باندی مشهور او د سکانو له خوا د پیښور حاکم و دهغه په وخت کی څو ځله په جاگیرو نوکی تغییرات منځ ته راغلی وو. په (۱۸۴۷) عیسوی کال کی دسکانو دبغاوت په وخت کی جعفر خان دمفسد چترسنگ سره مرسته او کرنیل لارنس ته یی دوکه ورکړه دمحمد افضل خان په اعمالو باندی دخواص خان بیگناه قتل هم یو داغ دی. نوموړی د (۱۸۵۷) عیسوی کال په بغاوت کی دانگریزی سرکار خیر خواه وو نو ځکه د پخوا په شان دختیځو ختکو مشر پاتی شو چی دسرکار له خوا جاگیر هم ورکړل شوی دی. نوموړی دانگریزی سرکار له خوا پنشن هم تر لاسه کوی او دیو متفر یو دعلاقی په جمال گهړی نومی ځای کی استوگنه لری.

# د خټکو قبیلې ترمنځ دیوالي او بې اتفاقي

## څرنګوالی

څرنګه چې دا اکثرو افغانانو (پښتني) قبیلو تر مینځ د ښتني دښمني موجودې دي په هماغه ډول د خټکو د قبیلې تر مینځ هم دښمني لیدل کیږي . دوی په خپله قبیله کې د ځان وړاندې تګ او ترقي ته په ښه نظر نه ګوري او تل د خپلو سیالانو د سپکاوي په فکر کې وي . د دوی تر مینځ د پخوانۍ دښمنۍ حال په دې ډول و چې په لومړي سر کې د میري خیلو او یسوړي ښاخونو تر مینځ په یوې کوچنۍ معاملې کلکه جګړه مینځ ته شوه او ډیرې وینې تویې شوې دانو خیلو ښاخ له خپل ورور ښاخ میر خیلو سره مرسته وکړه چې د دوی د یو ځای کیدو په سبب دا یسوړي ښاخ زبون شو او بیا د انو خیلو او ساغري ښاخونو تر مینځ د یوې ښځې له کبله چې شکر ځاتو نومیده سخته دښمني مینځ ته را غله چې په نتیجه کې له دواړو خواوو نه ډیر کسان ووژل شول او کله چې دواړه خواوې کمزورې شولې نو مجبور شول په خپلو منځونو کې سوله وکړه په همدې ډول د اوریا خیلو او پایي مهمندیو تر مینځ د شیشم د سیمې له کبله څو کاله بدې روانې وې او بیا د میري خیلو او اسمعیلو تر مینځ جګړه را مینځ ته شوې همدا رنګ د میري خیلو او سیني ښاخونو تر مینځ څو ځله جګړې پیښې شوې دي ، چې په دغو جګړو کې د میري خیلو له خوا ډیر کسان وژل شوي دي .

د بطي خیلو او بولاق ښاخ تر مینځ هم ډیره سخته دښمني موجوده ده او ملک اکوړي او یوسف خان د دغه بې اتفاقۍ په سبب مړه شول د ملک اکوړي د مړینې په سبب د ترې تولې اولاده سره یو ځای او د بولاق ښاخ یې د څو مودې له پاره د ملک نه و شاړه چې دغه خلک یوه موده د یوسفزیو په سیمه کې سر ګردان وو او یو شمیر په باجوړ کې میشته شول ، خو د بولاق و د ښاخ ملک نارو ځان د شهباز خان سره سوله وکړه او بیا خپل پلرنۍ سیمې ته را غلل .

لنډه دا چې په همدې ډول د خټکو د قبیلې د اکثرو ښاخونو تر مینځ پخوانۍ دښمني موجوده دي . که څه هم اوس د انګریزي سرکار د انتظام په سبب دا ښکاره دښمنۍ او وینې تویول منځ شوې دي خو یو بل ته په زړونو کې صفایي نه لري . ظاهرا یې چلند یو د بل سره ډیر ښه خو په پرده کې د دوی ترمینځ دښمني روانه ده .

# دنوروهمسایه قومونواوقبیلو
# سره ددښمنیو څرنګوالی

دختکو په چاپیریال کی داسی کوم قوم یا قبیله نشته چی دهغوی سره دوی جګړی یا دښمنی ونلری په پیل کی دختکو دقبیلی دانو خیلو ښاخ دبنګښو دقبیلی ددرسمند له ښاخ سره لویه جګړه وکړه او له دواړو خواوونه ډیر کسان ووژل شول ، خو په دغه جګړه کی ختکو ته کومه په زړه پوری نتیجه تر لاسه نه شوه او بیا د میری خیلو نصرتی ښاخونو دعیسی خیلو او سرهنګ له ښاخونو سره چی په اصل کی نیازی دی او دختکو په سهیلی سیمه کی اوسیدل خونړی جګړی وکړی . وروسته دمروتو دقبیلی دلوحانی ښاخ څو ځله دبنو د ضلعی پوری داوان پر قبیلی باندی کی دختکو سره داسی کلکه جګړه وکړه چی په هغی کی په سلګونو کسان ووژل شول . بیا دوزیرو له قبیلی او معیری خیلو ختکو تر مینځ شخړی را مینځ ته شوی سره له دی چی وزیرو په خپلوکی اتفاق وکړی و، خو په دی بریالی نشول چی دختکو هغه سیمه چی دنیولو نیت یی درلود و نیسی .

یوځل دختکو دتری او بولاق ښاخونو په خپلو مینځوکی اتفاق وکړ چی دسکیسر دغره نه سهیلی خواته د ګتهه په لمنو کی دشاه پور تر ضلعی پوری اوان پر قبیلی باندی تیری وکړی او په لومړی یرغل کی یی دومره بریالیتوب ترلاسه کړ چی دبی شمیرلوټ کړی مال نه یی پرته په سلګونو نارینه او ښځی یی هم دبندیانو په توګه دځان سره راوستل ، چی وروسته یی ددیرو پیسو په بدل کی خوشی کړل، خو په دویم یرغل کی دوی ته ډیر زیان واوښت او په شاتګ ته مجبور شول .

بیا داپریدیو سره دری ځلی وجنګیدل ، خو دوی دیوسفزیو او مندړو سره تر ټولو زیاته دښمنی لرله او ددوی تر مینځ لومړی جګړه په مصری باندی کی په دومره زور اوقوت سره وشوه چی د یوسفزیو معتبر ملکان په دغه جګړه کی ووژل شول. له بلی خوا سیمی خان ختك هم له څو تنو ملګرو سره ووژل شول ، تر دغی جګړی وروسته ددوی تر مینځ څو نوری جګړی هم پیښی شوی چی په هغو کی یوسفزیو ته بری ورپه برخه شو او دوی یی تر

غرو نو پورې و ځغلول او په ځینوجګړو کې ښځکو دوی تر مرغوزپورې پسې سوا و تمبول .
لنډه دا چې دوی ه یوسفزیو سره دومره جګړې کړې دي چې د هغو ذکر په دغه لنډ مبحث کې نه ځا ئیږي .او س دوی له هیڅیوې قبیلې سره نه دښمني لري او نه جګړه او په آرامی سره په خپله مقبوضه سیمه کې په چاروبوخت دي ، په هر حال په او سنی وخت کې د تیا هی ا وجنګو نو دو ختو نو په پر تله ددې قبیلې شتمنی او آرامی زیاته شوې ده . دد وی دآرامی او چو پتیا ددوی دجنګیا لۍ وطرتزیږ نده نه ده بلکې دانګریزی سر بار د ښه انتظام له کبله چې دهغه په سبب دهر قوم اوقبیلی حقوق خو نډ ی دي دیو سپر شکل لری چې د هغه له کبله ددوی په حقو قو کې هیڅ زیان نه را مینځته کیږی او نه دوی پر چا باندی تیری کولای شی . ددغې قبیلې ځوانا ن په پلی پوځ کې د شا ملیدو سره ډیر مینه لرې . په دوی کې ځینی ډیر ښه سپا یان شته .

## ددوی کسبو نه او عادتو نه :

دښځکو اکثره خلك دکر نی په چارو بوخت دی ، خو په دیلار کې ډیر زیار نه ګالی، همدا راز دو ی سوداګر ی او دمالګی په خرڅلا وهم لاس پوری کوی. دوی لټ او هوسایي غو ښتو نکی خلك دی. په هر تلی یې یوه یاځو حجر ی دعا موخلکو د کښینا ستلو له پاره موجودی و ی چې خلك دلته سره راټولیږی ، چلم څکوی اویو د بل سره بې فایدی خبری کوی او دخپلهطلب دتر لا سه کولو له پاره دروا غ ویل عیب نه ګنی.

## ددو ی ظاهری بڼې، خورا ك اوپو ښاك :

په دغې قبیله کې دلو یو کورنیو نه پر ته ښا یست لږ دی ، خوونې یې لوړې اوکلك خلك د ی. دوی دپو ښاك له پاره سپین سپتسین توکر څخه استفاده کوی .دخو تنو شتمنو پر ته دژمی په موسم کې د باجری ډوډی او په ګر می کې د غنمو ډوډی ډیره استعما لوی . دغوښې سره غلمینه ډوډی اوله باجری سره شید ی ډیری خو ښو ی او دومره لو یې ډوډی پخو ی چې یوه دانه یې دخو تنو له پاره کفایت کوی .

## دغو ښنی اوو یر دوډ او دستور :

په دوی کی داسی دود دی چی داخلك دنكاح اوكوژ دی په وخت کی او شتمن یی دنا رینه اولا د دپیدا کیدو او دهغه دختنه کولو په وخت کی هم خو شالی کوی اوخپل نږدی دوستا ن او ملګری په دغو خو شالیو کي دګډون له پاره راغواړی او په تماشا* او سیل کسی یی ږیړی هلکان چی لختی یا ګډیدونی یی بولی نڅا کوی همدا رلز ددغی قبیلي ځوانا ن د دو ل او سوږنی سره په داسی حال کی چی توری یی له تیکی را ایستلی اوشمیر یی د پنځو سو په شاو خوا کی وی دساز سره یو ځای پیوه تاثیر لرونکی تماشه جوړوی چی ددغی تماشي لیدنه ، د تورو پر ښناو په چالاکی سره ددوی تاوید ل اوسره له دي چی په پوه کتار کی لیند لند دول ولاړ او په تما شبیه بوخت وی او دتورو نه یی یو پیل ته کوم زیا ن نه رسیږی انسا ن ته عجیب خو نداو لذت ور بخښی ، ددغی سیمی دخلكو په ژبه دغی تما شی او لوبی ته بها نګړه وا یی.

ددو ی په واده کی زیات خرڅ او مصر ف یو دو ل افتخار ګڼی اوعموما په ودونوکی ډیر غوړی غوښه او غلمینه دوډی ددو ی عمده خواړه دی . د تولو خو ښنیو سره سره ددوی په غر نیو خلکو کی دارواج هم شته چی دنکاح په وخت کی دنجلي مور او پلار دو لبس په اندازه دشلو نه نیولی تر سلو روپیو پو ري رسیږ ی.

درو پیو د شمیر په تاکلو کی دغه خبره هم دیادونی وړ ده چی کیده نجلی ځوانه وی یاوړه ، ښکلې وي پا بدرنګه چی په لو مړیو دوو حالتو نوکی زیاتی روپی اخلی ـ په معززو کور نیو کی بر عکس دنجلی مو اده په وخت کی هغی ته د جهیزپه دول دوسی په اندازه له خپل ګور نه یو څه ورکو ی اودو را سره بنځی هم ځی . دنکاح تر لو په باب دوی داسي رواج لري چی هغه څوك چی نکاح تړی هغه ته پوه رو پی ورکول کیږي ؛

---

* دلته ښايي دمولف هـدف د. تما شي نه پښتنی ملی اتڼ وی چی تر اوسه. هم په تولو پښتنی سیموکی په جلاجلا دول سره رواج لري.

(ژباړونکی)

د برهان بن ککی د دریم زوی ځدران د نسب شجره



## دغم او وير دو داود ستور :

کله چې په دوی کې څوك مړ شي نو تر ښخو لو وروسته په لو مړی شپه د کلي ټول خلك د مړي د وارثانو د وړي خوري او که چیري د دوی خپلوان له لیري ځایو نو نه د تعزیت له پاره راغلي وي هغه هم وربا ندی زیا تیږی چی د مړی وارثان د ماتم او وير نه پر ته اقتصادی زیان هم ګالی .

## د طلاق رواج:

د دغې قبيلې په تيتو خلکو کې طلاق ور ګول رواج لري او کله چې ښځه د میړه سره جوړه نه وی یا د میړه زړه د خپلې ښځې نه د یسې ځایه ناستې ولاړې په سبب تو رشې نو دیوې اندازې پیسو په بدل کې ښځې ته طلاق ور کوی او دا ښځه د هغه سړی میر من کیږی چې پیسې یې ور کړی دی . او په دغه ډول طلاق کی ښځه د مهر د غوښتلو نه محرو میږي .

## د میراث د ویشلو دود :

دوی د غیر منقو ل جایداد نه ښځو ته برخه نه ورکوی او که د مړه د منقوله جایداد نه د هغه لونو ، خو يندو ته که چيری بـل کور ته واده شوی وی د بخښش په ډول د وارثانو له خوا یو څه ور کړل شي ممکنه ده ، خو دغه مال کی د دوی کوم حق نلری . په دغه برخه کی د شرعی احکامو په نسبت د دوی خپل رواج ته ډیر اهمیت ور کوی چې دا رواج د ډيرو خلکو د خو ښې وړ دی: نارینه وارثانو ته د نارینه اولاد د نه موجودیت په صورت کی د شرعی احکامو له مخې میراث ویشل کیږي.

## د دغې قبيلې تخمينی شمير :

او س د دی قبیلې د حالا تو په باب کی یوازی همدو مره پاتې دی چې د دوی د وسله والو کسانو د شمیر په باب یو څه و لیکل شی . په عامو کی داسې ویل کیږي چې د ختکو شمیر شپیته زره دی ، چو مولف ته دغه شمیر لږ څه زیا ت ښکاري. غا لباً په د ختکو د قبیلې ټول شمیر پنځوس زره میړه وي که څه هم د ختکو د ښاخو نو او د هغوی د شمیر په باب زما سره معلو مات شته دی ، خو ځرنګه چې دغه شمیر د اورنګ زیب عالمګیر په وخت کی لیکل شوی نو ځکه له اوسنی شمیر سره مطابقت نه لری .

# دځدرانوقبیله

دوی په غر نیو خلکو کی ډیر زیار کښ خلك دی . ددغه قبیلی د استوګنی ځای دخو ست لوید یځ اودزرمت دسیمی ختیځ ته شنه غرنی سیمه ده ، داسی ویل کیږی چی د ضرورت په وخت کی ددغه قبیلی له پنځلسو زرو نه زیا ت وسله وال کسان حاضرید لای شی . په دغه قبیله کی داختون خیل ښاخ دشمیر په لحاظ ډیر زیا ت دی، دغه ښا خ دشمل په علاقه کی چی دخوست دملك دمغربی حدود وسره یوځای کیږی په زیات شمیر او سیږی ،ددو ی په غرنی ملك کی روانی اوبه ، شنه وابښه ، ونی ،دمرغانو آواز و نه او سړه هوا انسا ن ته خو ښی او خو شحالی و ربخښی خو سره له دی هم دکرنی وړ ځمکه په کی خورا لږه ده ، اودغه کموا لی تر هغه اندازی دی چی نیږی په مخصوص ډو ل جوړه وی او خاور ی ور باند ی اچو ی او دکرنی له پار ه یی برابر وی . له دی کبله ددغه سیمی پیدا وار دنو موړی قبیلی دخلکو له پاره کفایت نه کوی او کال په کال لید ل کیږی چی دربدر ا و دمزدور ی دپیدا کو لو له پاره هری خواته سر ګردانه وی ، دوی خصو صاً دښاه ګانو په ژور ولو اودختو اوپخو دیوالونو په جوړو لو کی ډیر مهار ت لری . دوی په خوراك کی جوار ، غنم او وریجی استعما لو ی. دخو ست په سیمه کی غنم اوجوار اخلی اوله ځانه سره یی وړی. داحتیا ج په سبب سر ه له دی چی دغه قبیله حقیقتاً دکا بل حاکم رعیت نه دی خو دجګړ و په وخت کی له دغه حاکم سره دحشر په ډول مرسته کوی . ددوی په غرنی سیمه کی اکثرا منی، انار او بادام پیدا کیږی خو دغه قبیله دسوداګر ی سره ډیره مینه نه لری له بهر نه دسوداګر ی وړ شیا ن اخلی خو خلك یی ډیر غریب او مفلس دی خوسره له دی هم په دوی کی حرا م خور ی او غلا لږه ده ددو ی په چار چا پیره کی د نور وقبیلو خلك په دی ډول میشته د ی. ختیځ ته یی خو ست وال ،لوید یځ ته یی کربز ، سهیل ته یی غلجی او شمال ختیځ ته یی منګل او یو شمیر توری ددغو قبیلو د ښا خو له جملی نه دوی دغلجی او منګلو دقبیلو سره دښمنی لری خو او س ددو ی تر مینځ کومه جګړه نه شته .

# داتمانخیل ابن برهان ابن ککی دنسب شجره



دتو لا خیلو او د بیة خیلـــــو ترمینځ دښمنی موجوده ده ، اوددغه کورنی شخړی علت دادیچی‌تقریباشل کاله و ړاندی ی دعمبر او گو ر سوری خیل او دمزا یی د ښـــاخ‌دری کسه له خپل ښاخ نه خپه او د سپر خیلو ښا خ سره د همسا یــه په ډول میشته او دخپل ښاخ‌سوری خیلو دلو تو لو تکل یی وکړ او ددوی څارو ی یی له ځانه ســــره بو تلل ، دغه لو تما را ن د مزا یی‌دښاخ له خوا تعقیب شول ، دد غــه تعقیب په تر څ کی جگړه مینځ ته‌راغله او په دغه جگړه کی‌دللو ـ خیلو څانگی دود کی او د سپر حیلودڅانگی نه مت حی وو ژل شو ل او له بلی خوا نه آدم چی‌دمزا یـــی‌دښا خ و ووژل شو . دد ی خبر ی په سر دو مره لو یه دښمنی مینځ‌ته راغله چی ددوا ړ و خوا و نــه په بیلو بیلو جگړو کی تقر یبـــاشپږ سوه تنه ووژل شو ل او تـر اوسه هم ددغی دښمنی او رو نــه بل دی .

ددغه قبیلی هر یوه څانگه یـویو لو ی ملك لری چی دخپل ښا خ تول‌واك دده په‌لاس کی وی .

او س بیدك ، عزت ، فقیر، اوزوی نیاز خان دمزایی‌دڅانگی‌ملکا ن او خړ او علیشیر د بیسبا خیلو دڅانگی ، شهمند د زنی خیلو دڅانگی او داستا ن زوی‌پیرك او د مستاخان‌زوی نیاز خان دمزای دڅانگی‌ملکان دی .

دغه قبیله زیاتره د سپینو وړیو نه جوړ شو ی او ږده کمیسو نه او دږبل توکر لوی پر تکو نـــه‌اغوندی ددغه قبیلی هر سړی‌دمزرو څپلی په پښو کوی . څرنگه چـــی‌دغه قبیله له جگړو سره مینه نه لری خو سره له دی هم دمخالفـــوگاوند یو قبیلو دخطر له امله ددو ی دستور دی چی که چیـــر ی‌هر بالغ ځوان په خپل کور کـــی وسله و نه ساتی نو یو غوایی جرم‌یا ناغه ور باند ی تاکل کیږی ا و بیا دغه غوایی دمجلس له خـــــواخوړل کیږی نو ځکه ددو ی وسلـه پوره ده ددغی قبیلی میړو نـــــه پیاوړی اوقوی دی .

# د اتمان خېلو قبیله

د دغې قبیلې د لاندنیو ښاخونو د نسب شجره د بېمرۍ اولادې نه پر ته خورا لږه تر لاسه شوه. د دغه نسب د شجرې نه څرګندېږي چې اتمان خیل هم د کرلاني له نسل څخه دي. د دغه قبیلې د څوار لسمې عیسوي پېړۍ په پیل کې د یوسفزیو د قبیلې په ګډون د تاتک او کوهل د غرونو نه د کابل او ننګرهار له لارې پېښور ته راغلل او له هغې ځایه په دوآبه او اشنغر کې د یوسفزیو سره یو ځای او په غم او ښادۍ کې ور سره شریک شول، کله چې د دلازاکو، یوسفزیو او نورو قبیلو تر منځ د لنګر کوټ په میره (ګهړۍ کپوره) کې جګړه پېښه شوه نو په دغه وخت کې دغه قبیله سره له دې چې دلازاک د دوي همقوم کړل کېدل، و د یوسفزیو په خوا ودرېدل او په جګړه کې یې ډېرې هلې ځلې وکړې ویل کېږي چې په دغه جګړه کې اتمان خیلو د غشو د ویشتلو د دفاع په سبب د میښو او غواګانو څرمنې خپلو مخې ته نیولې وې او د هغوی په پناه غشي ویشتونکي ځوانان غلیم ته ډېر نږدې ورغلل او د دغو هلو ځلو په نتیجه کې متفقو قبیلو په دلازاکو باندې بریالیتوب تر لاسه کړ. خو یوسفزیو د اتمان خیلو سره کومه نیکي ونه کړه.

دوی تر یوې مودې له پاره تیرا ته راغلل او کله چې د هغه ځای نه یې لاس لنډ شو نو دارنګ بړنګ سیمې ته راغلل چې تر اوسه هلته مېشته دي.

اتمان خیلو غرنۍ سیمه د سوات او باجوړ تر منځ د غره په سهیلي لوري کې موقعیت لري. د دوی د غره لوید یځ سر د باجوړ تر سهیل پورې او ختیځ سر یې د سوات د سیمې تر جنوب پورې رسېږي، د یوسفزیو په سیمه کې د دوی څو لوی کلي شته، د دوی د غرنیو سیمو شمالي برخه یو څه آباد ده، د دې غرونو په نشیبو نو کې له ډېرو نه نیولې تر لسو فټو پورې تیږې پر دې خاورې ور باندې اچوي ور پسې یې آوار وي او د کرنې له پاره یې برابروي د دوي د کرنې ځمکې اکثراً للمي دي، له دغو غرنیو سیمو نه پرته یو میدان هم د اتمان ـ

## دکرلان لمسی خوګیاڼي بن ککي د نسب شجره



خیلو په واك كې دی. دباجوړ پـــرخوادوی اوړدی وادی ګانې چې دسوات
خوا ته غزېدلې دي او دبا ټیـز ي دسیمې دیو سفز یودمېدان په شمال
شرقی برخه کی بمیری دځا نګی اولاده، اسمعیل خیل اوت خیـــل*
او سه صده میشتـــــه دی ، ددوی دګلیو تفصیل دیو سفز یود سیمې
دمبحث په برخه کی راغلـــی دی دبیمیری داولا دی دوسله وا لـــو
کسانو شمیر ددوه زر و تنـــــو په شاو خوا کې دی، دوی ډیرلو ـ
تما ړان او جنګیا لي دی خـــــــبـــود(۱۸۶۶ ) عیسوی کال دجنو ړ ی
په میاشت کې د انګریز د پــــو ځ په ذریعه اود پېښو ړ کمشنر ـ
لیل جان بیچر په تدبیر دهغوی ،فوت وځپل شو . اواوس دیوه بیه
رعیت په دول ګذاره کوی.دمېداني سیمو اتمان خیل زیاتره دکرنې په
چارو لګیـاوی ،دوی لوړی دغلا اولوټماری سره ډیره مینه لرله او
هندوان به یې نیول اوله هغوی نـه به یې دخو شی کو لو په بدل کـــې
پیسی اخستلی .دمیا خان دسیمـــی او سیدو نګي ملك آزاد چې دد غو
غــلـــودولي مشرو دګولي دلګېـدوله کبله ګو ډ شوی دي . دکو یمی
دسیمي ملك محمد علي یو معتبــــــرسړی دی پا تی اتمان خیل له چپلي
سیمی نه خورا لږ دپاندی ځـــي دو ی دا ړ یدو دقبیلی په شان په
غرونو کی په متفر ق دول اوسیږ ی اوپه اکثرو ځایونو کی ددوی یویو
یادوه کوره موجودوی.ددوی لوی کلی له لسو نه نیولی تر اوولسو
پو ر ی ګورو نه لری او هره یـــوه ځانګه یی ځانته بیل ملك لري دملکانو
او خا نانو واك او اختیار محدوددی، ددوی تر مینځ کور نی شخړ ی او
جنګو نه ډیردی او اکثراً بی سواده اوبی عمله خلك دی دګسب پــــه
برخه کی دوی په کر نه او مـــالدا ري بو خت دی غلاوي هم کو ي
ځینی یی په باجوړ کی د اوسپنـــی سودا کري کوي ، ددوی یو بنا ك
دباجوړ خلکو ته ور ته دي. تو ل اتمان خیل تقر یبا لس زره کور ه
دی .ددغه قبلیی ځینی کـــور نـــه دکابل په شمال یعنی ګو هدا مــن
کی میشته دی ، دګو هدا من اتمان خیل دمیوو په خر څو لو ګو زا ره
کوی .ددوی یو ښاخ کو چیا نـ دی چی دسړو په مو سم کی لنګر هار
او په اوړی کي کا بل ته را ځـــي.

---

* اصل : عوت خیل ـ په تواریخ خورشید جهان کې هم « عوت خیل»
لیکل دی .

## دخو ږیانی قبیله :

ددغی قبیلی نه شیر زاد ، حضرخیل ، بارك ،او بو بودننګر ها ر په لوید یځ او دسپین غره په شمال لویدیځ کی آباد دی چی په در ی کی دشیرزاد داو لادی شمیرزیات دی.

دشاه جهان پا چا دتخت کیښنا ستلو په لو مړی کال دشا دی خیلو اودبارك داولادی لقمان تر مینځ په یوه وړه معا مله لو یی شخړی مینځ ته راغلی ، دلقمان ښاخ دخدرخیلو دمر ستی له کبله شا دی خیل وتړول ، تر هغه ورو سته دشادی خیلو ښاخ دغلجیو په قبیله کی پناه واخیسته. غلجیو ددو ی مرستی ته ملاو تړ له اود کا بل صو بدار سید خان په ملګر تیا یې ددوی دمخالفینو سره سختی جګړ ی وکړی ویل کیږی چی په دغو فسادو نو او شخړو کی دبارك له اولاد ی نه تر زروتنو نه زیات کسان ووژل شول په پای کی شیر زاد او خد ر خیل مطیع او فساد ونه له مینځو لاړل.

اوس خوږ یانی یوه مشهو ر ه قبیله ده . دوی سخت او صعب العبوره غرو نه لری ، ددوی په سیمه کی انګور ، توت، انا ر او انځر پیدا کیږی . ددو ی په سیمه کی دری میا شتی وا وره هم اورـ یږ ی. اکثره خلك یی د کر نی په چارو او ځینی یی په ما لـداری بوخت دی. خود خپلی سیمی نه بهر لږ نک را تګ کـوی . دوی جنګیا لی خلك دی . شمیر یی دتوریواو ځا ځیو نه پر ته پنځه زر ه کوره ښودل شوی دی .ددغی قبیلی دهغه ښا خو نو په باب چی دخوست په سیمه کی استو ګنه لری دهغوی په باب بهورو سته معلو مات وړا ندی شی .

## دتور یو ښاخ :

دتور یو ښاخ دخو ستد سیمی په شمال اود سپین غره په جنوب کی دکور می دسین په دواړ و غاړودکور می په نامه سیمه کی اوسیږی. دغـه سیمه دمخه دبنګښـودقبیلی په لاس کی وه خو پر بنګښو با ندی دوی بریالی اودغه ځا ی یی له هغو نه ونیوه خو تر اوسه هم بنګښ یوشمیر د کورمـی په سیمه کی دتور یو تر لاس لاند ی ژوند کوی .

بوا لیمین چی دکور می د سیمی په ښکتنی بر خه کی او سیـږ ی هغه هم بنګښ له نسل څخه دی.دتور یوښاخ په پنځو څانګو ویشل شوی دی .چی دهغوی تفصیـل دو سله والو کسانو او ملکا نـو دشمیر له مخی تشریح کیـږی

۱ ) حمزه خیل درې زره تنــه او لوی ملك یې او مك نومیږ ي ؛

۲ ) مستو خیل دوه زره تنه چې فقیر علي او شنبك یې ملكان د ي.

۳ ) دپر زي دری زره تنه اودمرحوم مند علــي خا ن ( محمد علي خان ) ورور غلام ددوی ملك دی .

٤ ) علـــــــی زی دو ه زره تنه دو ست محمد او زید علي یــې ملکان دي.

٥ ) غو ندی خیل دوه زره تنــه او دملکانو نومونه یې نورعــــلي او الله نوردی.

دتور یو دښا غ دوسله وا لـــوکسا نو شمیرمجمو عا دو لس زره میږه ښو دل شوی ، دوی تول دکرنی په چارو بوخت دی خو ځینی یې دمیوو خر څو لو او نورو شیا نـــو په سودا گری هم لاس پو رې کوی

دنو موړیو تور یو په سیمه کـــې ور یجې ، جوار او اور بشې زیا تې پیدا کیږی خو غنم او منې هم په کی ډیرې دی ، دد وی دسیمـــــی پیدا وار دهغو ی له ضرور یا تــونه زیا تیږی او هغه نړدی شاوخوا سیمو ته استول کیږی . دکور مـــی دسیمی زیاتره اوسیدونکی وریجـــی خو ری او همدا راز دغنمو ډو ډ ی، جوار او اور بشی هم استعما لوی

او په کمه اندا زه دپسو نوغوښه هم خو ري . پوښا ك یې له یو راز ډبلو ټو كرا نونــــــه جو ړوی ،کمسیو نه یې او ږده دی، ټو پـــی (خولی) په سروی خو ځینی سپینی پگړی یا لو نګی هم په سر وی . د پر تو گونو پا یڅې یې تنگی او پـــاسنی بر خی یې پرا خه و ی. ځینی یې دکمیس دپا سه پشمی ډبـــل شال چې سینه یې خلا صه وی اغو ندی .

توری له خوست او بنونه خمتـــارا وړ ی، دد وی په سیمه کـــی پنبه لږه موندل کیږی .

دحمزه خیلو دوه سوه کور نـــی په کو چی ډول ژوند کوی چی دژمی په موسم کی بلندخیلو تهل ته خپلړ مالونه دخرڅولو لپاره بیایی اودگر مـــی په موسم کی سپین غره ته ځی اودمله خیلو شمیر تقر یبا دوه سوه کورو ته رسیږی دوی ډیر غله دی او دغلا مالو نه تر لاسه کوی.

دکو رمی په سیمه کی دکا بلـ حا کم یوه کلا جوړه کړی ده چـــی اوس هم هلته موجو ده او یـــو شمیر کابلی سپاهیا ن په کی اوسیږی

نو محکمه دوی رعیت او د کابل ریاست تر لاس لاندی کنټرل کیږی او په هر جریب د کابل یوه نیمه روپی محصول ور کوی همدا راز له هر کور نه د کابل یوه روپی د لوګی د محصول په نوم اخیستل کیږی : ددوی د کر نو محکی ټولی نهری او د کوز ځی له سیند نه خړ و بیږی، د تور ی قبیلی ټول خلک شیعه او اهل سنت او جماعت سره دښمنی لری . مګر دوی په ښه میلمه پالنه او افغا نی پښتنی ننګ کی ډیر ښه دی . ددوی په سیمه کی کومی بدرګی ته ضرورت نشته او کار وانو نه بی له کوم خطره ددوی له سیمی نه تیریږی.
همدا راز دوی زړه ور او جنګیا لی خلک او په پوره اندازه وسله سا تی ددغه ښاخ دخا نکو تر مینځ یووالی نه شته . نیمایی قبیله یی دتیرا داو سیدو نکی سید محمود په ګوند کی او نیمایی نور یی د پاچا یانو میا ګا نو سید ګل او نور رافضی سیدانو په ډلی کی چی په ګر می کی اوسیږی شا مل دی . او خود غر ضه پیران هغوی په خپل مینځ کی سره جنګوی .

**دخاخیو ښاخ :**

دغه ښاخ د تور یو شمال لویدیځ ته د پیواړ غره سره متصل او له هغه نه پورې په اوربه کتي اوسیږی . د دوی خوراك او پوښاك د تور یو ښاخ ته ورته والی لری، خود دوی مذهبی عقیده د هغوی بر عکس او ټا ځی اهل سنت او جماعت دی له همدی کبله د دوی او تور یو تر مینځ تل شخړی وی . دخاخیو توسله وال کسا نو شمیر تقریبا پنځه زره . تنه ښو دل شوی دوی په میلمه پا لنه او پښتنی ننګ کی د تور یو په پر تله کمزوری دی.

**د تور یو او خاخیو په باب څیړنه :**

خو شحال ختک چی د شاه جهان پاچا په دوره کی یی ژوند کا وه بنګښ بیا ئی کی د تو ری او خاخیو غوره دکر ړان له نسل نسته لیکل او دوی د کړ رانی او کر لانی سره ګډوی او ددغه ښاخو لسو څینی کتان ددغه خبرې مثی او څپلـه دنسب شجره خوګیانی ابن ګکی ابن کو ړان ته رسوی ؛ لکه څرنګه چی دنسب په شجره کی راغلی دی

خو ځینی بیا وایی تو راو جا ج دوارہ وروڼه وو اودا وان دقبیلی
دمومند دښاخ نه را بیل شوی دی . دوی دځپل وروړ بندو ن نه ناراض
او دسند رود لو ید یځی غاړی ی ته را غلل اود دوی اولاده زیا ته
شو. او او سنی مقبوضه سیمی یی ونیو لی دتور اولاده پـه
تو رئی اود جاج اولاده په جاجی سره مشهور ه شوه که څه هم په
دی کی شك نشته چی د مومنده قبیله دجیلم دضلعی د تله ګنګ
په سیمه کی او سیږی څو دد یروایت په باب چی دغه مومند وی کوم
ثبوت تر لاسه نه شو. خو مو لف ته دخو شحال خان قول معتبر ښکا
ری .

د وی اوس داسی سره ګنډ دی چی له نورو افغا نانو ( پښتنو )
سره کوم تو پیر نه لری . دپښتو نه پرته په بله کو مه ژبه نه
پو هیږی او په جنګیا لیتوب کی ډیر مشهور دی.

## دپړ به ښاخ :

پړبه په اصل کی د خوګیانـــو یو ښاخ دی ، خو اوس بیل ګڼــل
کیږی او دخوږ یانیو له نورو پا تی ښا خو نو ڼو مره لیری دی چی په
ځپله هم نه پوهیږی چی له خوږیانیو سره کوم اړ یکی لری یا نه ؟
دپړ به دښاخ څانګی په دی ډول دی :

مردی خیل ، میا خیل ، بسی خیل، سردار خیل، محمود خیل ، نری زی،
ملی زی ، اشی زی ، دده خیل او پو چی خیل .

ددغه ښاخ دوسله وا لو کسانو شمیر زر تنه ښودل شوی دی ا و
تول دخوست په سیمه کی اوسیږی او په سپین کو ټدی کی دا خل دی:

اوز یدل کیږی چی لو مړی دخوست په ټوله سیمه باندی د ګـرړانـی
دقبیلی خوږ یا نیو او نورو ښاخونو قبضه ټینګه کړی وه . دجها نګیرد
واکمنی په دو ره کی دغلجی دقبیلی ځینی ښا خونه دزر مت له سیمی
نه را ووتل اود خو ست دملکزیانو سیمه یی دهغوی نه ونیو له اودشاه
جهان دواکمنی په دوره کی کور نـی شخړی لری وی ، داسی ویل کیږی
چی په تیرو وختو نو کی د پړ بـه د ښاخ دوسله والو کسا نو شمیـر
در ی زره تنو ته رسیده خو او س یوا زی زر تنه دی ، ددغه ښا خ
زیات شمیر خلك په کر نه بو خت دی او لږ شمیر خلك یی تجا رت
اوسوداګر ی هم کوی . دوی دخوست حاکم او دکابل دریا ستر عیت
دی.

## د عبدالرحمن یا در مان ښاخ:

دغه ښاخ هم دکړ ړانی نه یو ښاخ دی . خلك ددغه ښاخ د ځا نګو شمیر شپږ بو لی په دی ډول چی : حاجی خان خیل ، سودی خیل، اصلی احمد خیل ، مدی خیل، کو ندی اووصلی منګسی دغه شپږو ځانګوته موزی هم ویل کیږی او متون هم ورته وایی خنودوزی‌خیل هم‌په متو نو ور ګډ یږی . داسی روا یت کیږی‌چی متون په اصل کی دخو ست دیوی سیمی نوم دی. چی په دغه ځای کی داوسید و په سبب ددغه ځای او سید و نکوته هم متون یا متو نی وایی . د دغه ښا خ دو ګړو شمیر زر تنه ښودل شوی چی دکرنی په چارو بو خت دی .

## په خوست کی د کړ ړانی قبیلی‌نور میشته ښا خونه :

په خو ست کی‌د سبر یو دښاخ‌شمیر در ی زره ، ملی شپږ سوه ، لنډ ریو نیم سل ، اکیبی یو سل، قدم یوسل ، او ها رون خیل هم سلو ته رسیږی . داښا خو نه ا وښاخ ، چی دځانګو شمیر یی څلو ر او په خو ست کی او سیږی.دلکن‌ښاخ ، چی دځانګو شمیر یی څلور ته رسیږی په دی ډول دی :

را کی خیل ، نکټ خیل ، شادی‌زی او ایوب خیل چی ددی څلو رو واړو ځا نګو شمیر زر تنه دی .

دصا دق خیلو دځا نګی شمیر دوه سوه ، علیشیر سل تنه ،بکر-خیل سل تنه اولون خیل سل‌تنه دی‌چی دوی‌په تور ګوندی پوری مربو-ط او د خوست په سیمه کی اوسیږی دوی ټول دکرړانی له قبیلی نه راوتلی دی نوځکه د دوی حال دلته ګنډل شوی دی .

د خوست په سیمه کـــی دوه‌مختلفی قبیلی یعنی غلجی اوکرړانی او سیږی ، ژبه او روا جو نه یـی‌کټ مټ سره یودی دکر ړانیو ،ښا خو نه په سپین ګو ندی پوری‌اړه‌لری او غلجی او نور په تورګو - ندی پوری مړ بوط ګڼل کیـــږ ی‌دسپین ګو ندی او تور ګو ند یـو تر مینځ سخته دښمنی مو جوده‌ده.

په تور گو ندی کی داسمعیل‌خیلو ښاخ او په سپین گو ندی کی دتنیو ښاخو نه ډیر جنگیا لی‌دی،چی په مفصل ډول به دد وی حال ورو سته را شی . داسی ویـل کیږی چی دخو ست دخلکو تر بیه او اخلاق خراب دی . دوی لهو لعب‌او چتی کارو نه خو ښوی .ځوانان یی تر څه مودی پوری خپله ږیره‌لوئیدو ته نه پر یږ د ی‌اوخر یی یی د خوست خلك پـه خپلوخوړوکی زیاتره د غنمو ، وریجـو او جوارونه استفاده کوی،دوی اکثرادخمتا جا می اغو ندی ، دوی نیلی پکړی او نیلی یا آبی رنگه کمیسونه او ځوا نان یی اکثراً په سـرو اوزیړوو ریښمینو جوړ شو ی‌گریوانونه استعما لوی . دوی اکثرا رنگه پر توگو نه اغو ندی خو هغه کسان‌چی عمرو نه یی پاخه وی پـه ډ غه بر خه کی‌دسپین تو کر نه‌استفاده‌کوی ، ښځی یی تکری په سر و ی، او دوز یر ود ښځو په شان اوږده‌چین داره‌کمیسو نه اغو ندی‌دهغوی ښځی مخو نه لږ پټوی او رانجـه ډیر استعما لوی .دسپر لی‌اونیز ه با زی سره ډیره مینه لری دنڅـاو سند رو ویلو رواج په کی‌ډیر اوپه و دونو او خوښیوکی یو ډول گډا کوی چی د نارینه وولهٔ خواتر سره کیږی او هغوی ورته په خپله ژبه‌مندارواییِ‌په ښځوباندی‌مینیدل‌هم په دوی کی ډیر رو اج لری خلك‌میلی هم کوی خود علم او پو هی سره دوی چندان علا قه نلری ، ددغه ځای خلك دکا بل د حکو مـت نا را ض او حتی متنفر دی، هغوی‌ډیر متعصب خلك دی.

## دوزیرو قبیله :

ددغی قبیلی دهر ښاخ دنسـب شجره وړاندی راغلی ده . د غـه مشهو ره خبره چی وا یی چی دغـه قبیله دکوم وز یرله نسل نه د ه بیخی غلطه ده، په اصل کی‌وز یردهغه سړی نوم و چی د ده‌له نسل نه دغه قبیله مینځ ته راغلی‌ده ،لکه شر نکه چی اوس هم په‌اکثرو ځا یو نوکی دوز یر او پا چا نـو م‌اینښودل کیږی ، په همدی ډو ل سره سلیمان چی دکر ړان لمسـی‌و په خپل زوی با ندی یی وز یر نوم کینښود چی دی دنو مـو ړی‌قبیلی لوی نیکه دی. وز یـر دوه زامن لرل چی یو یی خضری او بـل‌یی لالی نو میده چی په هغه وخت کی نو موړی دسیتك لـه اولا دی‌سره یو ځای د شوال غره تـه نږدی‌اودبرمل‌په سیمه کی‌اوسیدل‌او تصا دفاً د وزیر دد‌وهم زوی لا لی دلاسه دشیتك له اولاد نه یو کس‌وو ژل شو، لالی دبدل اخستلو له

ویری د ننګر هار سیمی ته وتښتیده او هلته یی واده و کړ
چی اوس دهغو له اولا دی نه دلالی په نامه دسپین غره په شاو
خوا کی میشته دی، دوز یرلوموړی‌زوی خدری دری زامن لرل ،مو-
سی، محمد اومبارك چی موسی یی‌په دروېش سره هم مشهور و ۰
دمبارك زوی ګربز نو میده ،مو سی ته یی په دی سبب درویش
وایه چی دی یوپر هیز ګاره اوزاهد سړی و چی اوس هم دده او
لاده هغه یولوی ولی ګڼی اودهغه په مزار با ندی چی په بر مل کی
مو قعیت لری ، صد قی او نذرونه‌ور کو ی ، خو له بده مر غه دهغه
دنیکو عملو نو پیر وی نه کوی‌مو سی درو یش دوه زامن لرل یو
یی اتمان نو میده چی دهغه‌او لاده‌مجموعاً داتمان زی په نامه بلل
کیږی او بل زوی احمد چی دهغه‌اولاد احمد زی په نامه بولی ، او
په لوموړی سرکی د دوی دوا ړواو لادی یعنی دموسی نسل ته په
ګډه سره درو یش خیل یا درویش‌وز یری هم وایی ۰ وز یری په
خپله ور ځنی محا وره کی اتمان‌زیو او احمد زیو ته په ګډه سر ه
د درویش په کلمی سره امتیازور کو ی. دمو سی دو هم وړور
دمحمود زوی مسعود نو مید ه‌چی‌اولادی ته یی مسعود وز یری‌وا یی.
هغه ښاخونه‌چی په سرحدکی‌اوسیږی‌دهغو نومونه پدی ډول‌دی:اتمانځی،
احمد زی اومسعود اوڅرنګه چه‌دنسب‌له شجری نه څرګند یږی له‌دغودریو
ښاخونونه بیاډیر واړه ښاخونه اوڅانګی منځ ته راغلی دی ۰
ددغه قبیلی‌دمنځ‌ته راتلوځای دبرمل غردی چی د سلیمان دغره یو
ښاخ ګڼل کیږی‌اوهغه وخت چی‌ددغی‌قبیلی په شمیر کی زیات توب‌راغی
نوپه دغه وخت کی‌ددغی قبیلی خلك‌دخپل اتفاق په زور په‌خپلو ګاونډیو
باندی غالب اوپه خپریدوئی پیل‌وکړ او دټولونه وړا ندی‌دسلیمان‌د
غرنیو سیمو نه شوال‌اودهغه‌شاه وخوا سیمی د دغی قبیلی
لاس ته ورغلی چی هلته‌دمخه د شیتك ښاخ او نور ابادوو.
په هغه وخت کی د کاختی له کبله داور مړ وقبیله چی په کانی
کر و م او نور و نږدی سیمو کی میشته وو اکثراً دلوګر سیمی ته
چی د کابل په ریاست کی و اقع‌او نور و ملکو نوته لاړل اوددوی
خورا لږ شمیر په دغه ځای کی پاتی شول او مسعود ووزیر و ته
موقع‌په لاس ورغله او په هغو ی‌یی یرغل وکړ او په لوموړی حمله
کی‌یی دبدر اوشهیر سیمی ونیو لی‌دکانی ګورم او مکین په شاوخوایی
دقبضی کولو په وخت کی هغه لږ شمیر او رمړو چی د دوی
سره دمقابلی ملا وتړله د وزیر وله لاسه مات شول . وروسته یی

د وزیرو قوم د نیکه سلیمان د نسب شجره



دآلمان د زوی ابراهیم خیل د نسب شجره



د احمدزیو وزیرو د نسب شجره




۱۳۴

دکالوخیل بن احمدزی د نسب شجره




۱۲۸

# د مسعود و وزیرو د نسب شجره




یادښت: څرګنده دې وي چې مسعود اصلاً دوه زامن لرل چې یو یې علي نومېده او علي زي بناخ د هغه نسل شمېرل کېږي او بهلول چې د بهلول زي بناخ پلار ګڼل کېږي، د علي دوه زامن وو چې یو یې فتح نومېده چې اولاد یې فتح خیل بلل کېږي خو عوام یې د یوتیه خیلو په نوم بولي، دویم سمن چې اولاد یې په شمن خیلو مشهور شوي دي. اصلاً دوی هم علي زي دي خو د حقیقت ملک د نیولوجیه وخت کې د زیات توغ د ورکولو په سبب دغه د ربیعه مرحد د ګرل شوه نو ځکه شمن خیلو بناخ شامته بیل نوم پیدا کړ خو په حقیقت کې شمن د مسعود نمسی نه بلکې د هغه نسسي و.

# د مسعود وزیرو د دوم زوی بهلول زی د نسب شجره



د پیتنو قبیله هم د تاک دری او دهغه شاوخوا غرنیو سیمو له خارج او خپله یی په دغو ځایونو قبضه ټینګه کړه له بله پلوه دشما ل له خواهم د اتمان زیو او احمد زیو ښاخونه هم د وړاندی تګ په حال کی وو او د مخالفو قبیلو سره چی دوی مخامخ شول د هغوی د بی اتفاقی او خپل یووالی په سبب یی هغوی ته ماتی ورکړه. او د خپلو متصرفه سیمو حدودیی پراخ اوپه هغو ټولو سیمو باندی یی تسلط وموند چی، اوس د کوها ټ لــه ضلعی نه نیولی ددیره اسمعیل خان ضلعی ته مخامخ دری پوری غزیدلی دی . ددغی سیمی اوږ دوالی یــو سلو څلویښت میله دی. او ددغـــه سیمی لنډ جغرافیایی حالات ددغـه کتاب په لومړ ی برخه کی راغلی دی خومولف ته داغوره بریښی چی د ځینو مشهور وغرنیو سیمو ذ کرپه مفصل ډول وکړی .

**دشوال سیمه :**

---

شوال د شنو غرونو تر مینــــځ دوادی په ډول د ختیځ نه لویدیځ ته دولس کوسه اوږد شمـــا لاً او جنوباً شپږ کرونه ، پلن و ۴ لی لری ،دغه ځای ښه شیــــن ا و دنښترو، صنوبر ،جنغوز یو، لمنځی او نور ور نوټه ډک او ددغه وادی غاړی او مربوط غرونه یی ددغــو غرونو لهمیوری نه، ډکاوتیارهدی،دلته اکثراً بارانونه وریږی خو دری میاشتی واوره هم لری او د وزیـرو د اکثرو غرنیو سیمونه پرته دشوال د پیر غل غر سوړ ځای دی . د د ی وادی په مینځ کی یو غونی ویا له د بــــر یا لی په نا مــــــه موجوده ده او په دغه ویاله کـــی یو څه او بههم بهیږی ددغی سیمی په پیل کی یو اندازه ځمکه چی دیره میامی او ملکښی په نامه موجو د ده او دکابل خیلو وزیروسیمه ده . دکابل خیلو نه ښکته بکا خیل استوګنه لری چی ترهغو نه کښته جانی خیل او سیږی . دغه سیمه د اتمان زیو دلاندینو ښاخونو سیمه ده، په د ی ډول چی پورتنی نیمایی یی د کابل خیلو او ملکښیو ده ا و دویم نیمایی بیاپه دریو برخو ویشل شوی دهچی یوه برخه یی دبکاخیلو ، یوه برخه یی دجانی خیلو او یوهبرخه یــــی د ملکښیو ده . او دغه ښاخونه د ګرمی په موسم کی دایلاق پـــــه ډول هلتـــه ځی اوپه ژمی کی اکثراً ښکته راځی اودلته دکرنی ځمکـــی هم لری .

**دشکی سیمه :**

---

دغه سیمه دغرنو په مینــــــځ کی هوادی په ډول پرته ده چـــی دشمال لویدیځ نه تر جنوب ختیــځ پوری تقریباً یوولس کوسه او ږد

او تقریباً د ر ی کو ستـــــه پلن‌والی لری‌چی‌په غاړوکی‌یی‌ډیری تعمیرانی ونی اونوری لیدل کیږی د هغه په سرکی داتمان زیو وزیرو ښاخونو ملکیښی اومیامی‌او دهغو نه‌ښکته یی، شادیکی، خونیا خیــل او بدین خیل اوسیږی اوددوی نــه ښکته ترلیری ځایو نو پوری هـــا ـ تی‌خیل میشته او په یوه غاړه یــی سپیرکی سدن خیل ، او ترټولو نه ښکته د مسعودو ، وزیرو دقبیلــی‌دبهلول زی او علی زی ښاخو نــه اوسیږی .

## دبیرمل سیمه :

بیرمل دوزیرو د سیمی پـــــه‌لویدیځ کی د غرونو تر مینځ‌دوادی په شکل موقعیت لری او د ختیـــځ نه لویدیځ ته تقریباً اتلس کوسه اوږدوالی لری اوپلن‌وا لی خلــور وکوسوته رسیږی په دغه و ادی کی اکثرا ځمکی او ار ی او خـــو کوچنی وادی هـــم پـــــه د غه ځای پوری اړه لری، دلته دټولو نــه‌ښه ځمکه مرغه ده چی په هغی‌کی کابل خیلو سیپلی او پیپلی ښاخونه‌او سیدکی اوسیږ ی په دغه ځای کی دکرنی وړځمکی ډیری دی ،په برمل باندی دوزیرو قبیلی سلطلــه دایمی نه ده په زمی کی اکثــــرا دسلیمان خیلو،خروټو ا و غلجیــــو قبایل دمالونو د څرولو له پاره د برمل غرنیو سیموته راځی په دغه وخت کی دکوچ نه پرتــه وزیر دهغوی له ویری نه دلته نه شــی او سیدلی او دگرمی په موسم کــی‌وزیر خپل څاروی اورمی هلته څروی. د مرغه دسیمی نه پرته د پاتــی‌برمل زراعتی چاری د وزیرو پـــه لاس کی نه دی . دوی دمنی د موسم په پیل کی دخپلو څارویوسره برمل ته راځی. ددوی دلوی نیکه موسی‌درویش مقبره دبرمل دسیمی پـــه زیندا ور کی ده چی وزیرو ور تـــه‌ډیر احترام لری .

## درزمك سیمه :

رزمك یوه کوچنی وادی ده چی اوږد والی بی شپږ کــــــو سه اوپلنوالی‌یی خلور کوسه دی ددغه‌ځای آب وهوا معتدله ده ا و پــــه دغه ځای کی ممیت خیل ا و تور ی خیل چی‌داتما ن زیو وزیرو ښا خــو نه دی استوگنه لری .

**دشم سیمه :**

دا سیمه، هم در زمك سره ترلی ده، دلته ونی او وابنه لږدی خــو آب او هوایي ښه ده او په د غـه ځای کی ممیت خیل ، بو هیم خیــل او د اتمان زیو نور ښاخونه میشته دی .

**دخیسور دره :**

دغه دره شرقاًاو غرباًاوږ دوا لی‌لری او د دور د سیمی په سهیــل کی پرته ده ددغه ځای او به‌ډیرې‌ښی دی ، دخیسور په سرکی ممیت خیل په منځنی برخه کی یی تو ر ی‌خیل اوپه ښکتنی برخه کـی یــی چی د سین تنګی دی وړوکی اوسیږی‌ددغه ځا ی‌اوبه سړ ی او خــو ږ ی د ی .

**شهرنه :**

دغه ځا ی ددورد سیمی پـــــه‌لویدیځ کی موقعیت لری چی اوږ د والی شپږ کوسه اوپلن والی یـــی‌یوه کوس ته رسیږی . شهر نـــه یوه کوچنی وادی ده په دغه ځا ی کی مدا خیل او په ښکتنی برخه کی خدر خیل او دوړو ته نـــږ دی‌لویدیځه خوا کی منزر خیل داتما نز ـ یو وزیر وښاخو نه استوګنه لری.

**شرکی‌سیمه :**

دشکتو د دری په سرکی تور ی‌خیل اود مسعود واو وزیر و تـــږ منځ د شرکی سیمه موقعیت لر ی‌چی دعمر زیو وزیر واستو ګنځـــی دی .

## شیره تله او توری شمالی سیمی:

دوزیرو دملك شمالی برخه خرابه او ناقصه ده او دلته واړه کرم غرونه چی د سرو ملکو دغرونو لویی ونی نه پکی لید ل کیږی موقعیت لری په دغه ځا ی کی واوری نه وریږ ی خو په ځینو ځایونو کی دپولا* او په ځینو ځایونوکی دزیتونو او پیلو** ونی موجودی دی ، په دغه جنوبی برخه کی دشیره قله په نامه یوه ښکلی او پراخه سیمه د غرونو په منځ کی موقعیت لری، خو په دغه ځای کی گرنه کم اود توری خیلو او ممعیت خیلو په لاس کی ده . دد ی نه پرته په دند ی کی چی هلته ممعیت خیل او سیبوی او د کیتو ویاله دحسن خیلو ،مدا ـ خیلو او توری خیلو په لاس کی ده او ذکریی ویاله دبنگښو دسیمی نه ښکته د متفرقو قبیلو او ښا خونولکه کابل خیل او ځرخنی دملك شی ښاخ ځانگی او گیندای او زنگره گنگی خیل زله خیلو او نورو په لاس کی ده او شهیدان د توجیاخیلو او سپیره لکړی ، سروغا ، برغنتو ، کوړوسم او خړ سیندداتی خیلو وزیرو په لاس کی دی ، د تل او دبنو د علاقی دنور ومقبوضه ځمکو ذکر به وروسته واشی .

## دوانه سیمه :

وانه د وزیرو د سیمی په سهیلی برخه او د گومل دری په شمال کی په هغو لوړو غرونو کی موقعیت لری چی د هغوی سهیلی نشیب دگوملی تر دری پوری رسیږی وانه یوه داسی وادی ده چی له شمال نه تر جنوب پوری پنځلس کوسه اوږد والی لری او په مینځ کی یی یوه ویاله یاتوی دتحصیل خواته بهیږی او گومل ته ننوزی او ددغی ویالی په دواړه غاړوکی دیری ښی ابی ځمکی پرتی دی ،دغه توله وادی د کرنی وړ ده خو خلورمه برخه ځمکی یی آبی او پاتی

---

* زما په خیال پولاه د «پلاس» کلمی پنجابی تلفظ دی ، د پښتو « پلوخه » هندیان پلاس بولی پلوخه یوه غر نی ونه ده په دپښتونو کی هم کیږی . (رشاد)

** دپیلو ونی ته اراك هم وایی ـ ددغی ونی له لرگیو څخه مسواك جوړوی پښتانه یی پلمن بولی پلون هم ورته وایی ( رشاد )

یی للمی دی له آبی ځمکو نه هرډول حاصلات تر لاسه کیږی داد ښو
د سیمی له ځمکو سره ورته والـی لری . ددغه ځای دوبی ډیر گرم دی
او ماښی په زیاته اندازه پیدا کیږی‌تردی چی د هغو اکثریت په سبب
انسان په آرامی سره خوب نشـی کولای .

دوانه سیمی په مینځ کی دلودی‌قبیلی ددو تانی ښاخ اوسیـږی او
دلته یی‌یوه کلا جوړه لری ده خـونوری برخی یی د وزیرو قبیلی په
لاس کی‌دی، دوزیرو احمـد زیـو ښاخ زلی خیل چی دکومل دری ډیـر
مشهور لار وهونکی دی تل د لتـه او سیږی همدا راز گنگی خیل، خجل
خیل ، توجیا خیل ،هاتی خیل، سر کی‌خیل ، بیزن خیل ، پاینده خیـــل
او خونیا خیل چی د وزیرو احمد زیوښاخونه دی په اوړی کی دلتـــه
راځی . د ډب او هندی په نا مـه ځمکه دهاتی خیلو او ختیځ خوا ته
شپشته دبیزن خیلواو خجل خیلو په لاس کی ده خوپه منځنی بـرخـه
باندی دو تانی تسلط لری ،

**دبدرسیمه :**

دغه سیمه دیوه وادی پـــه شکل پرته ده چی اوږد والی یـــی د
شمال نه جنوب ختیځ خواته تر کانی‌گروم پوری غزید لی دهاو اوږد
والی یی پنځو کوسو او پلن وا لـی‌یی تقریباً یو میل ته رسیـږی . د
دغه سیمی سرته د شنکی قبیله اود بهلول زیو ښاخونه ، مسعود او
یو شمیر احمدزی پاینده خیـــل اوپـــا تــــی تو ل بیز ن خیل
احمد زی او سیږی ، او تر هغـــو ښکته سیموکی سپیرکی ، پاسد ن
خیل او وړپسی وزیر مســـعود اوسیږی .

**دمسعودو اوو زیرو نـــو د ی‌سیمی :**

دبدرله سیمی نه پرته چی پـه هغی کی یـــو لشمیر مسعود او ـ
سیږ ی د مسعود و په برخه کـــی‌دغه سیمی هم دیاد ونـی وړد ی :

لومړ ی : د دری سیمه چــــی مشهور ښار یی مکین دی.

دویم :حوزه ثانی،دریم :میدان ،ځلو ر م د و ه تـــــو ی چــی
د بدر اودری له یو ځــــای کیدو نه ښکته ځا ی د دوه توی په نامـــه

بلل کیږي او مقصد د دوو ویالوته دی. دتاك په دره، اندرکوه، او د
باپرو یا بوبرو ، زنګړ، شهیر،شکتو کړ شکتو [illegible] بیلو بیلو کلیو کی چی
اکثراً واړه واړه د ی مسعوداووزیر میشته دی .

### دوزیرو د قبیلی داستو ګنـــی ځایونه :

دغه قبیله په خواره واره ا ومتفرق ډول اوسیږی او د مکین دبنار او خو کلیونه پرته اکثراً پــه غرنیو کلو کی چی هلته تر شلــو کورونو لږ وی ژوند کوی ، هغوی په زیاته اندازه په کیږدیو کي چی څرنګوالی به یی د رو ستـــــه راشی په کوچی ډول ګوزاره کـوی ، همدا راز دوی دپوزیو نه په یــوډول جوړ شوو څپرو کی هم ژو نـد کوی چی هغه یی د سایبان په ډو ل جوړ کړی وی ، خود دو ی ګوزار ه دلته په ډیر تکلــیف سره وی .دبنو دسیمی په میدا ن کی هم په څپړ واو یا هغو کوډلو کـی چـی داغزیو او خا شو نه یــی جـوړ وی هم په زیات شمیر خلك ژونـد کوی او غرنی وزیر چی مستقــل استو ګنځی لری که څه هم پــه قشلاق او ایلاق کی اوسیږی خــو قشلاق یادژمي مینــی اکثراً و ړ ی وړی او له ډبرو نه جوړی شو ی وی. د کوټو چتونه یی په تیرا نـوباندی استوار شوی و ی . خو دغه کوټی تنګی اوډیری خرابی و ی ا واکثراً حیوانات او څاروی هم پــه دغو کوټو کی د انسانانو سره یــوځای ژوند کوی او دغه کوټـــی اکثراً په متفرق ډول د غرونو پــه نشیبو نوکی جوړ یږی همدارازکوچی وزیر چی په ایلا قوکی په پوزیــو او کیږدیو کی ژوند کوی هغوی هــم له خطر ناکو وختو نونه پرته پــه متفرق او خواره ډول یوه یوه یـــا دوی دوی کیږدیو یا د پوزیو پــه کوډلوکی ژوند کوی او دغه کوډلی یا کیږدی په خپلو ځمکو یا بنــوڅږ ځایونو کی دروی .

### دوزیرو ددودونو د منځ تــــه راتلو څر نګوالی :

وړاندی تردی چی ددغه قبیلــی دنورو حالاتو په باب څه ولیکـــل شی نوګلومړی باید ددغه قبیلــی په عجیبو دودونو دستورو نـــو او قوانینو باندی رڼا واچول شی چی ددوی قبیلوی رواج دی .

۱

دا څرګند ه خبره ده چې دغه دوداودستور او قانون ته دوزیرو خلک په خپله ژبه کې نرخ وایې چې د نرخ به ددوی مقصد رسم او رواج دی ه او ددغه نرخ له مخې په خپلو منځو کې اتفاق او کار په مقصد پوره بندو بست لری او ددوی خبری او د دوی رواج او نتیجې له پاره یو دلیل لری او هغه دا چې که دود ، رواج اوقانون هرڅومره ناقص وی خو بیاهم د بې قانونی او بې نظمۍ نه ښه وی . ویل کیږي چې په پیل کې ددغې قبیلې تر منځ هم د نورو آزادو پښتنې قبایلو په شان کوم دود ، دستوراو قانون موجودنه واو څرنګه چې دغه قبیله په تیره بیا د احمدزیواو اتمانزیو ښاخونو په کوچې دول ژوند کاوه او چیرته به یې چې ښه څرځایونه وسیدل نو هلته به یې څو ورځې کیږ دی لګولی او خپله ګوزاره به یې کونه او وروسته به یې خپل ماښونه له دغه ځایه له ځان سره بل ځای ته بیول ددا سې آواره ژوند او دامنیت نه موجودیت او د نورو قبیلو سره د دښمنۍ په اثر دی ته ضرورت ولیدل شو چې په خپلو منځو کې د اتفاق او معاملو د فیصله کولو له پاره یو لړ رواجونه (قانون) منځ ته راشي .
په دغه وخت کې دشادی خیلو اوسپیر کیوزیرو ترمنځ یوه شخړه منځ ته راغله چې ددغې شخړې په اثر دټولې قبیلې تر منځ نفاق دا څرګند شو او هغه شخړه داسې وه چې دشادی خیلو دښاخ یوه پیغله چې ګرانې (ګرانه ) نومیده د کوم محمد خیل سپیر کی کورته دخپلې کورنۍ داجازې او رضأنه پرته ورغله او دهغې د بیرته راوستلو له پاره شادی خیلو دخپل ښاخ یو لښکر راټول او پر محمد خیلو باندې یې دیر غل له پاره ملا تړله اونږدې و چې ددوی دواړو تر منځ سخته جګړه رامنځ ته شي ، خو ددغې شخړې د اوارولو له پاره دوزیرو له ټولو څانګونه ملکان را ټول اودغه شخړه یې په سولې سره حل کړه اودراتلونکې له پاره یې یودود یا قانون رامنځ ته او په دغه جرګه کې وربانډی خبری وشوی او ټولو داتفاق او یو

والـــی له پا ر ه د خیـــــــرډعاوی وکړی . په دغه جرګه کـی لوی ملکان او ددغه قانون ر امنځ ته کوونکی اوسلا کاران دغه کسان وو: دمد ی زوی اسکندر دتور ی خیلو له ښاخ نه ، دممیت خیلو نه جبر او دکابل خیلو له ښاخ نـــه ګاجی ، چی دوی دنورو ملکسا نو په مرسته یو دود (نرخ) رامنځ تـه کـــړ .

د وزیرو قبیلی ځینی خلـــك وايی . چی دغه دودلس یا دولس پیښته وړاندی منځ ته را غلی اوتقریباً له دریو سوو نه زیـا ت کلونه وړاندی‌تیر شوی دی‌چی تر اوسه هم په خپل حال پاتی دی او یوه کسان په‌دی پوهیږ ی چـــی‌دغه قانون دیو لړ شرعی اصولـو اویو څه هم د پښوانی زمانی‌ددودونو داختلاط او ګډوالی محصـو ل د ی چی دهغو له یو ځای کیدونه یـــو داسی عجیب قانون رامنځ ته شوی چی ددغی قبیلی د اجتماعی جوړښت سره پوره توافق لری . چی پـــه لاندی ډول شرحه کیږی:

# دوزیرونرخ

## لومړی‌قتل:

که چیری کوم سړی څـــو ك‌ووژنی نو دمقتول وار ثانو ته اجازه ده چی په قصاص کی یی قا تـــل ووژنی اودهغه شته لوټ کـــړ ی که چیری قاتل سم د لا سه لاسته ورنشی نوهر وخت یی چی لا س‌ پری برشی که په لاره کی وی یـــا په کورکی په زور وی او یا په پټــه چی موقع په‌لاس ورشی هغــــه وژنی . ترهغه وخت چی قا تــــل ژوند ی دی نو څوك داحق نه لـــری‌چی د هغه په بدل کی د هغه زوی یاکوم بل خپلوان وو ژنی ، کـــه چیری دغه قاتل له نیکی ( سو. لی) تر کولو پرته چی خرنګوالی بـــه یی وروسته راشي . په خپل مرګ مړ شی، په دغه حالت کی دمقتو ل وارثان د قاتل زوی ، وروړ کـــه هغه هم نه وی د قاتل د یوه نږدی نارینه وارث د وژلو حق لـــری. لنډه داچی د قصاص حق د نیکـــی (سولی) نه پرته تر ډیرو نسلـو پوری جاری وی ، خوښځی دنارینه په قصاص کی نه وژل کیږی .

## دقتل داالی څرنګوالی:

په توپك ، چړی ، خنجر، دتیږی په ذریعه قتل یاد ستونی نه‌زندی کول اویاحلالول دا ټول ددوی ددودله مخی یو ډول قتل د ی او برابر شمیرل کیږی ، خود توری پــــه ذریعه قتل تر ټولو سخت ګنـــی‌او توپیر یی په دی کی دی که کــو م سړی د توپك یا بلی کومی الی په ذریعه ووژل شی او ددغه قتــــل په بدل کی قاتل د تور ی دزیاتــو زخمونو په واسطه و وژنی، نو ددغه قتل په بدل کی‌د مقتول وارثا نو ته دتوری دزخمونو له کبلـــه باید سل روپی ورکړی . او کــه چیری دواړه دتوری په ذریعـــــه ووژل شوی وی نو بیا ددو ی‌ترمنځ کوم توپیر او امتیازنه و ی . پــه دوی کی عموماً د چړو په ذ ریعــه قتل ډیر رواج لری .

## دښځو دوژلو بدل؛

که‌چیری څوك کومه ښځه بــی ګناه هم ووژنی نوپه دغه حــا ل کی په قاتل باندی قصاص نه راځی او ددغه قتل په بدل کی دقاتــل ینبه ، لاس‌یا پوزه پری کـــوی اوعلت یی دادی چی دښځی مقـــام د نارینه په پرتله نیمائی دی .

## دقتل په پیښوکی د سو لــی د رامنځ ته کیدو څرنګوالی :

دقتل په بدل کی دسولی درامنځ ته کولو په منظور دولس ســو ه روپی دمره نیك یعنی خون بها په نوم ټاکل شوی دی ، دبدل اخیستلو له ویری چی دپای له پاره یی‌کوم تـــا کلی میعاد نشته ، نــو اکثراً قاتلان دسولی کولو پلویان د ی ، خود مقتو ل وارثان یوازی هغه‌وخت سولی ته راځی کیږی چی :

لومړی ! په دی پوهیږی زوریی‌دقاتل دکور نی سره برابر نـــــه‌ دی او دهغه نه دبدل اخیستلوتوان نه لری ، که چیری قاتل ووژ نی او دهغه وارثین ډیر زور ورو ی‌اوله بد ی لاس نه اخلی یاداچی قا تل بلی کومی قبیلی ته پناه ور وړ ی وی او هغه چا چی په دغه قبیله کی

قاتل ته پناه ورکړی ژوروزروی . کله چی د مقتول وارثان سولی ته غاړه کیږدی نو د سولی لاره داده چی دقاتل پلار ، ورور یا کوم بل خپلوان د خپلی قبیلی له خو تنو ملکانو یاد هغه قبیلی نه چی قاتل ته یی پناه ورکړی څو تنه د جرګی او ننواتی په ډول سره یو ځای او دمقتول دوژنی کورته ورځی اویو زرو دوسوه خون بها چی‌دوی ورته په‌خپله ژبه (دمړه نیـــــک)وایی ورکوی .

پاتی دی نه وی چی دغه یوزرو دوه‌سوه روپی یوالحی تش په نا مه دی اوپه اصل‌کی دومره نقدی رو پـــی نه ورکوی بلکی ددغه پیسو په بدل کی کمه ارزښته جنس په لوړ قیمت‌سره بیه او دواړو خوا و د ملکا نو په‌سلاح سره یی‌ورکوی لکه څنګه‌چی‌که یوه ښځه وی اویا کوچنی انجلی دسلو روپیو په بدل کی او یو میـل توپك اویا یوه توره که څه هم‌اصلی قیمت یی‌دوی روپی‌هم وی د شلـوروپیو په بدل او څاروی‌که دوه‌کلن خوسکی وی دشلو روپیو په بدل اوهـــــر ه ا و ز ه ا و پســـه د(۵) روپیوپه بدل کی ورکـــو ل کیږی او په دغه ډول ددغو شیانو ورکولو سره یوازی تش په نـــو م یوزر او دوه سوه روپی پوره کوی او د مقتول وارثینو ته یی‌ورکوی. کله چی دغه ډول سوله یا نیکـــی منځ ته راغله نو بیا د قصاص‌حق‌دمقتول وار ثینو ته نه ور کـــول کیږی ، خو ځینی وختونه داسی هم‌کیږ ی چی (د مـړه نیك ) تـــــر اخیستلو وروسته د مقتول وارثین قصاص واخلی او اخستل شـــوی مالونه بیرته ورکوی ، خود د غـه چل‌حق هغه وخت ساقط ا و لــــه منځه ځی چی اصلی قاتل مړ شی .یا دنیکی او سو لی مال موجود نـــه وی. دښځو دقتل خون بها د نار ینـو د خون بها نیمه بیـــه یـعنـــی شپږ سوه روپی او پاتی شرایط یی د نارینه وو په شان دی .

## دقتل دتحقیق ځرنګوالی:

که کوم سړی د شپې په تیاره کی ووژل شی او کوم عینی شاهد موجودنه وی. اودبلی کومی سیمی‌نه کوم مفرور او یا په بل دول څوك راغلی وی هغه قتل وکړی او یا ووژل شی او ظاهرا قتل په چا باندی ثابت نه وی اود مقتول وارثان دعداوت او د دښمنی او یا کومی بلی وجی له امله په چا باندی شك وکړی او مشتبه سړی انکار وکړی. نو په دغه صورت‌کی دملکانو په حضور باید دده دقبیلی سل تنه په جلاجلا دول قرآن وکړی‌چی دغه مشتبه سړی دغه عمل نه دی ترسره کړی او مونږ د ده په بی ګناهی باندی پوره متیقین یو او ستاد اشتباه نه پاك دی که چیری سل تنه پوره نه شول نوهر څو کسان چی موجود وی په مکرر دول دی په قرآن قسم خوری تر څو په مجموعی دول سل قرانه پوره شی ، مثلاً که چیری شل تنه حاضر وی نوهر یودی پنځه ځله قرآن باندی قسم‌وخوری چی‌په‌مجموع کی سل قسمه پوره شی ، په هغه صورت کی‌چی کوم شاهد پرتورن سړی باندی‌شکمن‌شی‌نو پخپله تورن‌تو لږی. لږ ی شیبی وروسته پر قرآن شریف باندی سل واره لاس ږدی اوقسم کوی اووایی چی‌ما دغه جرم نه‌دی ترسره کړی‌نو بیا په دغه صورت کی بی ګناه ګڼل کیږی او برائت ترلاسه کوی . که چیری د مقتول وارثان له تحقیقاتونه وړاندی‌مشتبه سړی ووژنی نو هغه هم خپل برائت له پاره په هماغه دول سل کسه یاڅو تنه او په‌خپله سل ځله په قرآن مجید باندی‌قسم یا دوی او وایی‌چی‌هغه سړی چی ما وواژه قاتل وو او تر قصاص اخیستلو پر ته مادهغه سره هیڅ دول د ښمنی نه لرله.

دښځی دقتل په تحقیقا تو کی یوازی‌پنځو سو قسمونو ته ضرورت‌لیدل کیږی او که چیری تر پنځو سو یاسلو قسمونو وروسته بیا هم‌قتل وکړی نو دغه قتل عمدی یا قصد ی شمیرل کیږی او په هغه باندی دعمد ی قتل قانون‌تطبیقیږی .

## د جسما نی زیان بدل:

که چیری دچا د وجود کوم غړ ی لکه لاس ، پښه او پزه غوږ یادچا ستر ګی ړندی کړی شی نو دوی‌ورته (نیم مړی )وایی اودده نه دومره بدل اخستل کیږی لکه چی‌لومړی سړی ته ضرور رسیدلی وی‌او که چیری مقصد سوله کول وی نودنیم مړ ی‌یاخون بهادحق‌نیما ئی‌یعنی

شپږ سوه روپۍ باید هغه چا ته چې ضرر ور رسیدلی وي ورکړي . که چیرې د بدن غړي بیخي له کاره نه وي لویدلی او لږ څه زیان ور سیدلی وي نو په هماغه اندازه چې زیان یې لیدلی وي بدل ور کول کیږي . مثلاً که د لاس نیمائي قوت له منځه تللی وي نو د اصلي بدل نه نیمایي ناغه کمیږي . د بیکاره غړي نه پرته د نورو زخمو نو جرم او ناغه په لاندې ډول تاکل شوي ده : په سر یا ندې د توري یا چړې زخم چې یوه کوته وي (٤٠) څلویښت روپۍ ، په ډبره باندې د چا د سر د زخمي کولو په حالت کې یوه کوته شل روپۍ او که چیرې د توپك ، توري یا چړې زخم په مخ ، تندي یا غاړه باندې وي نو د هر خفیف زخم له پاره (٥٠) روپۍ جریمه او دملانه ښکته . تر پنځو پوري یوه کوته زخم باندې شل روپۍ ناغګي ټاکل شوي ده . د خفیفي وهنې تکو نې په سبب چې کومه صدمه و نلري د هغې په بدل کې مدعي ته بنایي چې د خپل ورور یا بل مر ستندوی په ملګرتیا مدعی علیه و نیسي په ځمکه یې را کوزار او لږ څه وهل ورکړي او دغه کار ته شرمنده کول وایي . کله چې په کلي کې دا ډول مدعی علیه د خو تنو په وړاندې شرمنده شي نو مدعي خپل حق ته رسیږي که چیرې مدعا علیه دا ډول شرمید نه و نه مني نو هغه دا اختیار لري چې مدعي ته د ناغي په ډول درې روپۍ ور کړي او سوله وکړي ځکه چې ده ته دا ډول شرمنده کې سپکاوی او پېنکاري نو ځکه دې د دریو روپیو ناغي په ورکولو راضي کیږي .

## د جبري زنا سزا :

که کوم سړی په جبر له کومې ښځې سره زناوکړي نو ښځه بې ـ ګناه او د زنا کار سړي پوزه یا پښه پرې کیږي د دغه جرم د ثبوت له پاره که چیرې عیني شاهد موجود وي نو ښه که نه نو مظلومه ښځه د پینبني نه د دریو ورځو په اوږدو کې د خپلې کورنی د خلکو په منځ کې وایي چې پلانی سړي له ما سره دغه جرم کړی دی نو بیا دغه ثبوت کافي دی . خو که چیرې مدعی علیه ووایي چې دغه ښځې د د ښمنی په سبب زما نوم اخیستی دی نو بیا د دغې ښځې وارثان لکه میړه ، پلار یا ورور او یا په خپله ښځه په قران شریف قسم کوي چې دغه تور د د ښمنی په سبب نه دی لګول شوی په دغه حال کې د مدعی علیه دلیل نه اور ـ

بدل کیږی ، خو په هغه حال کی چی ښځه تر دریو ورځو پوری خپله دعوه ښکاره نکړی نو ترهغی مودی وروسته دجبری زنا دعوه نه اوریدل کیږی .

## په مال پوری دمربوطو جرمو نو بدل:

### لومړی : غلا :

که کوم سړی دخپلو وزیرو نه دچامال غلا کړی نوهغه ته داسی سزا ورکوی چی غلا شوی مال بیرتـــه ورکړی اودغلا شوی مال د نشتوالی په صورت کی دوه چنده تاوانو ته ورکول کیږی اوترهغو پرته یـــو پسه چی (٥) روپی بیه ولری د جرمانی یاناغی په ډول مدعی اود هغو ملګروته حلا لیږی او یا(٥)رو پـــی نغدی ورکول کیږی اویوه تبه به هم مدعی ته ورکول کیږی ، دتبی مفهوم دادی چی مجرم خپله یوه لور چی تر هغه وخته پوری پیدا سوی نه وی اوکله چی په راتلو نکی کی پیداشی مدعی ته ورکول کیږی او مدعی علیه وایی چی که په را تلو نکی کـــی لومړی نجلی پیدا شی نو هغه بـــه مدعیانو ته ورکړی او کله چی دغه نجلی ژو ندی دنیا ته را شـــی اووروسته مړه شی نو د مدعیانو حـــق دهغی دمړ ینی په سبب ساقـــــط کیږی او که نجلی پیدانه شی نـــو دغه پور دمدعی زوی ته انتقالیږی او هغه یی باید ادا کړی او یا یی معادل بیه ورکړی دهری تبی بیـــه پنځه ویشت روپی ده. که چیـــری مدعی علیه ووایي چی دتبی ور کولو ته راضی نه یم او یا نه پیداکیږی نو دهغی په بدل کی د پنځه ویشتوروپیوپه ور کولو سره برائت مومی خو که چیری مدعی ووایی چی زه تبـــه نه اخلم نودتبی بیه نیمایی یعنـــی (٥.ر ١٢) روپی کیږی ویل کیږی چی د تبی بیه دمدعی او مدعی علیـــه دغو ښتنی په اساس لږه او یا ډیر یږی که چیری د غلو شمیر له یـــوه نه زیات وی نوپه هریوه با نـــدی یو یو پسه او یوه یوه تبه نـــا غـــه راځی خو غلا شوی مال دیوځل لـــه پاره یا پخپله اصلی مال یادو چنده اخیستل کیږی په دی شرط چی مدعی علیه ددی دود په ترسره کولو کی مسولی ته راضی نه شی نومدعـــیان اختیار لری چی دمدعی علیه یامدعی

علیهم شاروي ژوبل کړي .د ژوبـــل دا صطلا ح نه مقصد دوزیروپة ژبة دهغو کور نیو حیوا ناتو له وژ نی نه دی چی مدعیان د مدعا علیهم مال دغلا ، لوټ او لارو هنی په علت او یاد بدر کی اوهمسایه یا پنـــاه اخستو نکی ته د ضرر رسو لوپـه وخت کی پرته له دی چی مدعاعلیهم سوله منلی وی وو ژنی او کلـــه چی په دغه ترتیب ژو بله منځ ته راغله نو بیا مدعی دناغی او نـوروادعا ګانو حق نه لری که څه هـــم ددغی ژو بلی په تر خ کی د مدعی (علیه یوپسه مړشی اویا حتی که ) دمدعی دژو بلی په نیت دمد عـــی علیه مال ته ورشی او خپله توره راوباسی .په دغه حال کی هم دمدعی شرم او تاغه پوره کیږی.

## دغلا د تحقیق څرنګوالی :

که چیری غلاشوی مالونه مو جودنه وی او هم کوم بل ښکاره ثبوت هم په لاس که نه وی اومدعی علیـــــه انکار کړی وی په دغه حال کــــی دغلا شوو مالو نو په باب دوخت په نظر کی نیولو سره داسی تحقیقـــق کیږی: لومړی که چیری څوك دعـــوه وکړی چی زما مال دشپی له خوادنقب په واسطه اویاکوم بل ډول غـــلاشوی دی نو په دغه وخت کی باید مدعی دوه عینی شاهدان او یاداسی قراین وړاندی کړی چی په غلادلالت وکړی د شاهدانو د نشتوالی پـــه صورت کی منکر ته مدعا علیه په قرآن قسم ورکوی ، که چیری د ه سوګند وکړ برائت تر لاسه کو ی که نه نوغل ګڼل کیږی . کـــه چیری نیول شوی سړی مشهور غل او بد ماش وی نو دمدعی د غوښتنی له مخی د ګرمی اوسپنی او تو دو او بوپه ذریعه په هغه باندی ازمایښت کوی . دویم : که چیری مدعی ادعا وکړی چی زما غلا دورځی لـــه خــواشو ی او مشتبه مد عی علیه منکر وی په دغه وخت کی مدعی په قرآن قسم وکړی او وایی چی دی ز مـــا غل دی په دغه حال کی بی له .کوم بل ثبوت نه په مدعی علیه با نـدی جرم ثابت او هغه مجبور دی د غـلا شوی مال بیه ،تاغه او تبه ادا کړ ی خو دومره مراعات یی کیږی چی دغلاشوی مال دوه چنده نه ورنه اخستل کیږی .

## دلاروهنی او لوټ ماری بدل :

که کوم وزیر دخپلی قبیلی دقافلی نه دګر می د موسوم په پیل کی چی دشوا ل اوبړ مل غره ته تـګ اوراتګ کوی لوټ اوزیان ورورسوی او یاله کرم کلی یا کیږدی نه دلو ټ په ډول څه مال ترلاسه کړی نو د هغی قافلی یاکلی خلك په ګډه یاپه جلاډول واك لری چی دهر یوه مرتکب له مال لکه غوا ، اوښ، آس، پسه او یا وزه چی لاس ته ورشی هغـــه ووژنی اود ژوبلی دود ترسره کړی. کله چی دغه ژوبله عملی شی نود مدعیانو شرم او بی عزتی او د مد عاعلیهم دجرم بدل ترسره کیږی ، خو د غلا شوی مال پور یعنی حق دمرتکبینو په ذمه پاتی کیږی، په هغه صورت کی که دژوبلی د ارتکاب نه وړاندی مرتکب سوله وغواړی نو په دی ډول سره امکان لری چی دجرم د شرم په بدل کی اتلس ښځی چی په هغو کی نه تنی زوولی (دنیاته راغلی) اونه تنی یی تبی (چه تراوسه پیدا شو ی نه وی ) مدعیانو ته ورکوی که چیری ښځی ورنه کړی نو په یوی پیداشوی نجلی (۳۳) روپی او په یوی تبی چی لا زیږیدلی نه وی (۲۵) روپی د ناغی په ډول دغلا شوی مال سره یو ځای یا دغلا شوی مال بیه مدعی ته ورکوی او پری ایښودل کیږی، مګر د ا سی رواج هم شته چی ددغی ناغی په بدل کی چنی کوم جنس ورکول کیږی هغه په هماغه ډول دی چی دخونبها په وخت کی ورکول کیږی .

## د څارویو د زیان بدل :

که د وزیرو په قبیله کی کـوم سړی دڅا څا روی دزهرو او نور و وسایلو په ذریعه له منځه یوسی نو دغلاددود او دستورله مخی له هغه سره چلند کـوی ، کـه چیــــری دمیوه لر ونکي ونی دپری کولو په سبب چاته زیان ورسیږی نو په هری ونی سل روپی ناغه تاکل شوی ده، همدا راز دکوتی یا کیږدی دسو ځولو پـه بدل کی هم سل روپی ناغه تاکـــــل شویده . تردی پر ته د ســـو ز ل شو ی مـــا ل بیه هم و ر کو ی اوکه چیری ددی اورله کبله څوك مړ شی نو په مجرم باندی دقصدی قتل الزام راځی اوعمدی قتـــل دو د اوقانون ورباندی تطبیقیږی خو په دی شرط چی مرتکب ته د ارتکاب په وخت کی داخبره څر ګنده وی چی هغه خونی یاکیږدی ته چی دی اور واچوی پـه کی ویده یا بیدار سړی ورکی موجود دی.

## دبدرگی طر یقه :

بدرگه یوه مشهوره کلمه ده ،کله چی کوم لاروی چی په هر مذهب یاقبیلی پوری اړه و لری او کوم و زیر ته یو څه ور لږی په دوستان دبدرگی په دول له ځان سره واړی ی او ددوی له ملك نه تیر شی نو دهغه سرو مال ته دبدرگی دموجودیت په حال کښی کوم وزیر زیان ورور سوه نو بدرگه او دهغه قبیله لهمرتکب نه د غــلا ددود او دستور لهمخی بدل ا خلی . د وزیر و په بدرگه باندی با یـــــد زیات اعتبار و نه کړی شی .

**گاو ئدیتوب :**

درعیت همسایه نه پر ته دغــبه خلك هغه چاته هم همسایه وا یــی چی هغه دکوم بل ځای نه د کوم جرم له امله تبنتیدلی او د وزیر و پـــه قبیله کی یی پناه اخیستی وی .ددیهماسیه داری لاری چاری په دیدول دی چی تښتید لی سړی با یــــدیو پـــــه حلال او دهغه کلـــــی ملك او معتبر آنو ته چی پنـــا هوړی وی دودی ورکړی اوهغو ی ته ووایی چی ما دپلانی په حق کـــــیدا گناه کړی د ه مثلاً قتل ، غـــلا ، زنا یا دښځی تښتول ، او اوس زه ستاسی همسایه یم ، هغه خـــوك چی دده دودی وخوری هغه شخصاًاو نور تول په مجموعـــی دول د ی خپل همسایه اودشرم شر یـــكگنی، که دغه تبنتیدلی سړی دهغوی د خپلی قبیلی نهوی نو د وزیـــرو د دود او دستور سره سم دسولی د رامنځ ته کولو له پـــاره کوښښ کوی ، که چیری سوله ونه شوهاو دهمسایه توب په حالت کی دغــه مفرورته ددوی د قبیلی کوم سړ ی زیان ورساوه نوهغه سړی تـــــه دقبیلی خلك دناغه په دو ل شر م ورکوی کوم چی دلوت له پاره تاکل شوی دی، د مفرور مجر مـــا نو نـــه پرته بل دول همسایه هغه چا ته ویل کیږی چی د کوم زور ور سړی سره یې د ځمکی یا پور یا بل دولحق وی او هغه یی ورکولو تـــــه تیار نه وی او یاد کوم بل دا سـی فعل مرتکب شی چی د مدعی ددعوی له مخی دهغی فیصله د وز یــــرو ددود، دستور او نرخ له مخی ونه.

شي په دغه صورت کي مدعي يوه زوړ وژونکي يا قبيلي ته په همامغه دول چي وړاندي وويل شول ورځي او د هغوی په مرسته بدل يا انتقام اخلي ، په دې کي هيڅ شك نشته چي په دغه قبيله کي د همسايه توب تنگ ډير زيات دی. له دې امله ددوی د نورو ناروا کارونو په جمله کي دا هم يو بل ډيرلوی نار وا کار دی خو د دوی د قبيلي د مروجه دود اودستور د پياوړ تيا له پاره ډير گټور دی. دا ځکه کله چي که د کوم ښاخ نه يو څوك کومه گناه وکړي نو د دوهم ښاخ خلك له دې سره مرسته کوی او دې دملك له شړلو او زيان رسولو نه په امن کي ساتي ، او ددوی دزورله امله سوله هم مينځ ته راتلای شي او دوی دا دود اودستور د مجبوريت له مخي هم مني.

# په نکاح پوري تړلي جرمونه او د هغو ساتنه

**دزنا سزا:**

په دغه قبيله کي د زنا جرم له قتل سره برابر شميرل کيږي ، له دې کبله ښځي ولو ثانو ته د اصباح دې چي کله دغسي ښځي ميړه يا وروړ داد کوم چا سره دزنا کولو يا په بډستن کي د يو ځای څملا ستو په حالت کي ووينی نو دواړه وژني اوكه چيري دوی په بالفعل دول په زنا ونه ويني خو په دې خبر مطمئين وی چي هغوی به بدکاری کړي وی يا دا چي منکوحه ياغير منکوحه ښځه له خپل کور څه دبدکاری له پاره وتښتول شي نو دا دود دی چي هغه ښځه وژل کيږي او هغه سړي باندي يی لاس بر شي د هغه پښه يا پزه غوڅوی . که چيري داسي پيښه شي چي ښځه دبدکاری په سبب دميړه له خوا و وژل شي او هغه سړي ته چي ددې سره يی زنا کړي ده هغه زيلن چي پور ته وويل شول ونه رسوی نو د هغه ښځي وروړ يا پلار د هغې په ميړه باندي د متهم دپوزي پري کو لو دعوا او ياله ميړه نه دنيم مړي پور غوښتنه کولای شي . او په دغه دعواکي هغوی دا واك لري كه

چیری میره د نیم مړی پور ادا نه کړی نو دوی د هغه پوزه یا پښه غوخه کړی له دی کبله اثر ه‌زانی سړی د پوزی له قطع کیدو نه خلاصیدی نه‌شی البته دا سی کیدای شی چی د متهم سړی د آشنا ښځی تر وژلو وروسته د شپږ سوه روپیو جنس دنیم مړی د حق په ورکولو سره سوله کوی او ددغه جنس نیمایی برخه د ښځی میره او نیمائی برخه یی د هغی مور او پلار ته ورکول کیږی اوپه دغه سولی سره دزانی پښه یا پوزه له پری کولو نه خوندی پاتی کیدای شی .

## دښځو د ځوبولو په باب نرخ :

که چیر ی کومه منکوحه یا غیرمنکوحه ښځه و تښتو ل شی اوهغه سړی چی‌دغه ښځه یی تښتولی ده‌دسولی‌غوښتنه وکړی‌نودمړه نیک یعنی خونبها برابر یاد (۱۲۰۰) روپیو جنس او هم دتښتولی ښځی په بدل کی دوی ځوانی ښځی ، و ا ر ث یا میره ته ورکول کیږی او کاملاً برائت تر لاسه کوی ،کله چی‌دغه ډول سوله رامنځ ته شی نومیره خپلی ښځی ته طلاق او چاچی دغه ښځه تښتولی ده نو هغه یی ځان‌ته نکاح کوی، اوکه چیری ښځه بیر ته ورکړی نوباید د شرم په بدل کی شپږسوه روپو کم ار زښت جنس چی زیات قیمت بیه شو ی وی ورکړی ، که چیر ی دغه‌شیا ن‌ورنکړی نو باید پزه یی قطع شی او کله یی چی پزه پری کړ ی نو باید چی ښځه هم ووژل شی اوکه چیر ی ښځه ونه وژل شی نو په دغه حال کی دی مدعا علیه اوباید هغه چاته چی پوزه یی پری شوی ده شرم ورکړی .

## دښځو د ساتلو څرنګوالی :

پیغله نجلی سره له دی چی بالغه وی او کونډه د آزادی سر ه سره دمطلق واك خاونده نه ده ا و نه‌شی کولای له کوم بیګانه سړی سره د خپلو ورثه وو له رضاپرته واده وکړی او که کومی ښځی دغه کاروکړ نو دهغی سره د تښتولو د دود یا نرخ له مخی چلند کیږ ی دپیغلی ولی پلار ، ورور یاتره‌دی او د کو نډ ی د متو فتو فی‌میره و ر وز او نا ر ینه میر ا ث خو ا ره‌د سر پر ست حیثیت

لري. که چیری تر نامزدي وروسته میره مړشي سره له دي هم هغه
ښځه د میراث په ډول د میړه‌شوي سړي میراث خوار هغه خپل حق
ګڼي. اکثره داسي هم کیږي چي د منکوحه یا منسوبه کونډي په
بدل کي د ښځي دمیره وارثان دشلو یا څلویښتو پوري نغدي روپۍ اخلي
او هغه کونډه هغه چاته ورکوي چي ددي سره دواده غوښتنه لري
او دي ته دهغه سره دنکاح اجازه ورکوي خو که چیري د متوفي ورور
له هغه ښځي سره نکاح ته تیاروي نو دي لومړي مستحق شمیرل کیږي
او په دي ډول هغه ورور دخپل ډیر نږدي دوست خپل ورور حق په
دي ډول په ځای کوي.

## دنرخ دتعمیلولو طریقه :

دا څرګنده ده چي هر څوک مړه د دود او دستورونه چي د هر
څه شي په باب دلته ولیکل شول د هغوي د تعمیل له پاره کوم
حاکم یه حاکمانه قدرت نه شته، د دوي دغه رواجونه او قواعد چي
ددوي د اجتماعي حالاتو سره‌سمون خوري داسي دي چي دوي په خپله
دي ته اړ باسي چي ویي مني او تعمیل یي کړي په تیره بیا مدعا
علیهم چي دسخت بدل له ویري نه چي تر ډیرو نسلونو پوري‌مدعیانو
ته د هغه د اخستلو حق شته، ډیر زر سولي ته راځي کیږي او دهغوي
دقدرت او ویري نه چي کوم مدعي د همسایه په ډول ورځي او د هغه
نه مدعي د دود د تعمیلولو غوښتنه کوي د نرخ دعملي کولو له پاره
یوه عمده طریقه ګڼل کیږي.

## دبدل پیسي یا تاوان :

هغه نغدي روپۍ یا تاوان چي مدعا علیه یي د سولي د دود له
مخي ومني خو وروسته یي بیا په ادا کولو کي سهل انګاري او غفلت
وکړي نو دغه حق د دیواني پور شکل غوره کوي په هماغه ډول چي
دقرض په معامله کي دپور دنه ادا کولو د ثبوت په صورت کي
مدعي ته اختیار ورکول کیږي چي د تاکلو پیسو دتر لاسه کولو له
پاره دخپل جرئت په اساس پور وړي حیوانات یا نورشته اومنقوله
جایداد د زور یا غلا په ذریعه تر لاسه کړي که چیري یي په خپل

ځان کې دغه توا نو که لیده ئسود بل زور ورښاغ سره ډې همسا یه او دهغوی په مرسته دی خپل پو ر وا خلی په دغه صورت کې پوری و ړی مدعی علیه مال پــه هر ډول چې کیدای شی ا خستل کیږي چې دوی ورته په خپلـه ژبه شوځه وایی . که چیری شو دپور په بدل کې دغلا په ډول تـرلاسه هم شی دغه فعل کوم جرم نه گڼل کیږي که د پور د مال زیات مال دشوځه په ډول ونیول شی نو هغه ک و ( سالهنک) په ډول دمدعـي سره پاتی کیږي او هغه وخت چې مدعی علیه تاکل شوی پیسی ور کړی نود هغه په بدل کې بیرته خپل مال تر لاسه کولای شی .

## دسوگند طریقی :

په دغه قبیله کې عموماً دقرآن کریم سوگند په دغه تقریر سره تر سره کیږي چې لومړی زما پــه پاك خدای او بیا په قرآن شریف او دهغه په معنا وو باندی قسـم دی چې زما مقصود « خبره رښتیا ده ، اودسو گند طریقه په دې ډول ده چې په جومات یا په بل کوم پـاك او نمازځای کې ځاد رغوړ و ی او بیا قرآن شریف ایښودل کیږي او قسم خوړونکی تراو داسه وروسته پـه قرآن باندی لاس ږدی او سو گند کــوی .

په پخوا زمانو کې د ځینو ساده او ناپو هو قبایلو ترمنځ د اور او اوبو ازمایښت رواج لاره په دغـه قبیله کې هم په تودی او سپنی او گرمو اوبو باندی چې په خپله ژبه ورته کهیاړ یا توده وایی هـم د ازمایښت دود او دستور شته خود غلا په خاصو معاملاتو او د هغـه مدعی علیهم په سبب چې ا شتباه پری شوی او په بد چلنی اوبد ماشی باندی مشهوره وی اوپه د رواغـو باندې له قرآن کولو نه ډده نـه کو ی او دکلی ملك هم دهغه دبـد چلنی تصدیق وکړی نو مدعی پـه مدعی علیه با ند ی د غــــه ازمایښت تر سره کوی .

کهیاړ هغه عمل ته ویل کیږي چې د کلدار ی د یوی رو پـی پــه اندازه گرده او سپنه جوړوی او د پښن په دوگان کی په اور بانـد ی ږدی اوهغه وخت چې دغه اوسپنه د اور دسکروټی په شان تکه دسره شی وروسته په هغه سری باندی اشتباه پری شوی ده تول کالی یی

پاسی او پواز ی دستر له پساره یوه توته ور تسمه پر پېږدی او د هغه بدن د دی سپاره لوی چی د سورید لو صد نوم تعویز ورسره موجود نه وی تر هغه وروسته د مدعی علیه په بنی لاس باندی د کاغذ اوه وړی وړی توټی یو دبل په سر پوړی او په دغه وخت کی داهنګردو ، ګان هغه سره او سپنه راوړی او د هغه د لاس په ورغوی یی د کاغذو نسو دپاسه پږدی په دغه حال کی هغه سړی اوه قدمه ږدی او دغه قدمونه باید نه دیر ورو او نه دیر تیزوی کله چی اووم قدم پوره شی نو بیا اوسپنه له لاسه غورځوی . په دغه وخت کی د وه تنه ملکان چی د دوی ترمنځ د بسی عدالتی منصفان دی د هغه سړی لاس ګوری که چیری هغی سړی اوسپنی هغه او وه توتی کاغذونه چی د سړی په لاس کی ایښودل شوی وو سوزولی وی او د هغه په لاس باندی هم د سوز یدلو نښه موجوده وی پر ته له کوم بل ثبوت ه په هغه باندی غلا ثابتیږی .

دتودی اصلی معنی ګرم دی ، خو دلته د هغی نه مقصد یو دوډ دی چی د هغی له مخی په کتیوه کسی دوه اوبه ایښوی چی تر هغه نه یی زیات دایشو لوامکان موجود نه وی او بیا هغه مشتبه ته وایی چی د بنی لاس دری ګوتی دری ځله په هغو ایښیدلو اوبو کی ننباسی ، که چیری د دغه کار په ترځ کسی د هغه ګوتی پولی شی نو په هغه باندی جرم ثبوت که نه نو بیګناه شمیرل کیږی.

د حیرانتیا خبره نو لا دا ده چی دوی د دی ازمایښت په رښتنیوالی او صدق باندی پوره اعتقاد لسری او وایی چی هغه ځوک چی بسی ګناه وی هغه ته کوم ضرر نه رسیږی او له چیری ګنهګار وی هغه هیڅ کله له ضرر نه بچ نه پاتسی کیږی .

## د ملک دویشلو ګرنګوالی :

په لومړی سر کی د دریو لویو ښاخو نو یعنی اتمان زیو ، احمد ـ زیو او معسود و په خپل منځ کسی موروثی ځزلی سیمه په دریو مساوی برخو ویشلی وه ، خو کله چی د مسعودو ښاخ له دوونور ښاخو نو جلا او داور مړو او بتنیو په مقبوضه سیمه باندی یی سلطه ټینګ کړله هغه وخته د. و یشی په ترځ کی دوی ته هیڅ ورنکړل شول او اتمان لیواو احمد زیو په خپل منځ کی نیمائی نیمائی برخی وانیستی .

که دغه دوه ښاخونه په ګـډه سره دجګړو په اثر کومه نوی علاقه ونیسی نو هغه لومړی په دو دبرخو خوویشی او ورپسی یی په نورو ښاخونو او څانګو پـه دی ډول تقسیموی : د اتمان زیو د قبیلـی دولی خیلو ممیت خیلو اود ابراهیم خیلو څانګو ته یوه یوه بـرخـه ورکول کیږی د احمد زیو ښاخ ته نیمائی برخه په دی ورکول کیږی چی پاسنیو یعنی د غره اوسیدونکو ته نیمایی برخه یا ښکتنیو تـه چی د غرونو په لمنو کی ژوند کوی نیمایی برخه ورکول کیږی او هغوی بیا خپلی خپلی نیمایی برخی په نورو څانګو په دی ډول ویشی چی :

لومړی پاسنی : زلی خیلـو ، ګنګی خیلو ، تو جی خیلو ، خجیـل خیلو ، خانیا خیلو او سرکی خیلـو ته یوه یوه برخه .

دویم کښتینی ، یا ښکتنی : سپیر کی او هاتی خیلو ته دوی د وی برخی ، بیزن خیلو او عمر زیو تـه یوه یوه برخه ، پاینده خیلو او بدین خیلو ته (۳) پاوه یعنی پاسنی خپله نیمایی برخه په پنځـو ورو برخو او کښینی یا ښکتنی دو همه نیمایی په پاو کم نه برخو بـا ندی ویشی . دمسعود وښاخ خپله برخه په دریو حسو تقسیموی یعنی بهلو ل زیو ، علی زیو او شمن خیلو هـر یو ته یوه یوه حسه و رکـو ی ، دا ښکاره ده چیدوی برخـی د دو ی د لـو ی نیکه د نسب د استحقاق لـه مخـی نه د ی و یشـل شوی بلکی دغه ویش دتوغ لـه مخی منځ ته راغلی دی. دتـو غ له کلمی نه مقصد دتوری او خـر څ نه دی یعنی دلښکر کشی ، میلمه او نور هر ډول نقسان چی هر یـوه ښاخ د لومړیو ځایونو د نیولو په وخت کی زغملی وی اود دغه ز یا ن یا نقصان له مخی دوی په خپلـو منځو کی ویش سره کوی اواکثر آ داسی هم کیږی چی په توغ کـی د یو ښاخ برخه له بل سره هـم کډیږی او بیا هر یو ښاخ په خپل منځ کی د کورنی ویش او د نسب دشجری له مخی کوچنی برخی چی دوی ورته په پښتو ژبه ډډی (ډ ډ ه ) وایی جوړوی اوهر څوك خپله ډ ډه یعنی برخه خـور ی او دو ی دد ی برخی په کټه ا وزیان کی سـره شریك وی . د ډ ډی شمیر ټا کلـی نه دی . په پخوا و ختونو کی هـر سپایی اوهر هغه چا به چـی پـه جګړه کی خرڅ کاوه د هغوی دشمیر له مخی به هر یوه ته ډډی ورکول اوبیا به چی دکومی کـورنی اولا ده ډیره شوه نو بیا به دهغـه ډډه

یا برخــه په ډیرو کو چنیــو برخو وویشل شوه اوهغه کو چنیو برخو ته نوری ډډی یعنی نوی برخی ویل کیږی او په کومه کور نــی کی چی د اولا دونو شمیر یی لږوو نود هغو ی ډډی په ځای پاتی شوی اویا په لږو برخو وویشل شی .

لنډه داچی د ډډو شمیر د ســرو نوپه شمیر پوری اړه لری د هــری ډ ډی د ځمکی اندازه په مــساو ی ډول سره نه وی اودتوخر څډډډ ی په برخی پوری اړه لری .

**دمیراث د ویش دود :**

که کوم سړی کوم نارینــه ا و لادونه لری او مړ شی نود هغــه میراث دهغه نارینه ورثه وو تــه د محمدی (ص) شریعت له مخــی ویشل کیږی ، ښځوته د شرعی پر عکس د میراث برخه نه ور کو ل کیږی . هغه برخه چی د شرعــی ویش له مخی د ښځو حق وی هغه هم نارینه وارثان له خپلو برخــو سره یوځای کوی .

دمیراث ویش عموماً د کلــی د ملکانو یا ملایانو له خوا تر بسر ه کیږی . کونډه ښځه که څه هــم دیوی خاصی برخی حقداره نه د ه خو تر هغه وخته پوری د خپــل متوفی میړه په حق باندی‌نا ستــه وی چی د ډوډی او نفقی مستحقــه وی . او د ښځی مال چی وزیر یــی په خپله ژبه بن سی بولی د هغی حق گڼل کیږی او میړه وارثان په هغه باندی د دعوی کولو حق نــه لری . د ښځی تر مړینی وروستــه که چیری‌هغی‌کوم اولادنه لاره‌دهغی‌دمور او پلار دغه بن سی پــــه دی پسی د خیرات په ډول ورکو ی که چیری په خپله یی و سا تــی ورثه جایزدی .

په دوی کی د وصیت کولو رواج ډیر کم دی‌که چیری کوم ســړ ی وصیت وکړی او مړشی نو د هغــه وصیت خورا لږ عملی کیږ ی.

**په ځمکو باندی شخړی:**

په ځمکو باندی شخړی‌د حقیقت له مخی په دوی کی لږی دی داځکه چی له پیل نه‌هر چاپه خپلــــه برخه باندی قبضه لکولی ده ا و

هر چاته خپله ورده یا برخه ښه معلومه ده اویوازې په فك الرهن * ځمکه باندې شخړې منځ ته راځي خو دغه شخړې ډېر زر د دود او دستور له مخې فیصله کیږي . که چیرې له مرتهن د مدراهن مدعی له ملکیت انکار وکړي نو مدعی خپل ملکیت او هم د ثبوت لپاره شاهدان وړاندې کوي او که چیرې مدعی ثبوت ونه لري نو مدعی علیه د خپل ملکیت د ثبوت له پاره د شاهدانو وړاندې کولو ته مجبور دی که شاهدان ونه لري نو منکر مدعا علیه ته په قرآن کریم سوګند ورکول کیږي . که چیرې هغه سوګند وکړي چې دغه متنازعه زما میراثي ځمکه ده او د مدعی ملکیت یا رهن دی نه زه خبریم او نه زما پلار دمړینې په وخت کې په دغه باب ما ته څه ویلي وو . نو په دغه وخت د مدعي د عواساقطیږي . په هغه صورت کې چې د ګروی دپیسو په ډېر بښت یا لږ والي باندې شخړه وي نو د هغې له پاره مرتهن اختیار لري چې هر څومره روپۍ چې خپل حق ګڼي د راهن نه چې هغه یې په قرآن کریم باندې ږدي واخلي په دغه حال کې راهن هیڅ د ولدعوا نه شي کولای .

## په پور باندې شخړې:

دپور په معامله کې هم مدعی علیه د انکار په وخت او د شاهدانو د نه موجودیت په سبب مدعی یا په خپله سوګند کوي یا مدعی علیه ته قسم ورکوي که چیرې مدعی علیه سوګند ونه کړي نو دی بایدتاکلې پیسې ورکړي . ځرګندونه ده چې دا د دول ټولې مالي شخړې د دوارو خواو په سوګند خوړلو باندې منحصرې دي او سره له دې چې د تحقیق دود ډېر ضعیف دی بیا هم ډېره لږه حق تلفي منځ ته راځي او علت یې دادی چې دکلي د ملکانو او خلکو په وړاندې په درواغو سره په قرآن قسم خوړل د متنازعینو او شاهدانو د بدنامۍ سبب کیږي ، نو ځکه په دوی کې قسم خوړلو ته خورا لږ خلك حاضریږي .

---

* فك الرهن هغې ځمکې ته ویل کیږي چې له ګروی نه خلاصه شوې وي (ژباړونکی)

## په خپلو منځونو کی دشخړ و دفیصله کولو ځرنګوالی ؟

کله چی دو تنه وزیر یا د دوی قبیلی دوه ښاخه یا ټاټکی په خپلو منځو کی په ځمکه ، پیسو ښځو او یا نورو مقابلو په سبب شخړی وکړی نو خپلو دوستان، دکلی ملك یا د هغه ځای سپین ږیری په موضوع پو هوی اوکله چی د غه شخړه د دوی په خوښی سره فیصله نشوه نو جرګه د دریما نو یادریمګړو په توګه ټاکل کیږی .جرګه د و ی جګړی ته نه پریږدی . که چیر ی دواړه خواوی دا جرګه ومنی نو بیا وزیرو دوه څلور یا څو تنه وزیر د خپل ښاخ یا نورو ښا خو نو نه ملکان یا مخور د دریما نو په توګه ټاکی او هغه وخت چی دغه جرګه راټو له شی او ددواړ و نه دوستان او ګوند ی دلران دخپلمو جنبو سره را ټولیږی او پسه حلالوی او دجرګی برخه وا لممو او نورو حاضر ینوته د دواړو خواوونه ډوډی ورکول کیږی.د وزیرو دجرګی خرڅ عموماً ډیر زیات و ی او کله کله ددغه خرڅ اندازه د و دوی سوه روپیو ته ر سیږ ی . ددریمګړ واو ددواړو خواود ګو ند یدارانو نه پر ته کله چی عام و زیر دجرګی خبر واوری د ډوډی دخوړلو له پاره ډلی ډلی راځی اودواړوخو انه دغه ډول فضو لو خلکوته هم ډو ډی ور کوی او جرګی ته دچا راتګ او ډوډی خوړل نه منع کو ی که چیری څو ك منع کړی نو دغه کار بد نامی او سپکاوی ګڼل کیږی

که دواړو خوا و ته یو خوایی د ډو ډی ور کولو اوفجر کی له خر څ نه انکارو کړی نو دمغوی په باب خلك فتوا ورکوی چی په دی شخړه کی دده دعوا غلطه ده اوکه د اسی نه وای نوله خرڅ نه به یی تښتته نه کوله . دریما نو ته تل ښه خواړه یعنی دپسه غوښی ژیرغوړی ، ورېجی او ا کثـراً دغنمو ډوډی ورکول کیږی ، لنډه دا چی دا ډو ډی تر هغه وخته ، دوام موی ترڅوچی دریمان خپلی وروستی فیصله وکړی او هغوی یی قصداً ځنډوی .

کله چی شخړه د جرګی د برخه والو په رضا فیصله شی نو پسه دغه وخت کی ددواړ و خوا وشفاهی بیان جرګی ته او رول کیږ ی ددغه تقریر تر اوریدلو وروسته له دوی نه پوښتنی کوی چی تاسی

دواړه مونږ ته واك راكوي چي په څه ډول يي مناسبه و بولو په هماغه ډول فيصله وكړو، كه دوي اختيار وركړي نو ددوي د دود او دستور نه پرته دسولې په منظور يو تجويز د دواړو خواوو په خوښه نيول كيږي او كه هغوي ته د سولې واك ورنه كړي نو د شرعي احكامو له مخي ديوه ملا په مرسته د دوي شخړه فيصله او يا د وزيرو ددود او دستور مطابق د فيصلې تجويز د معاملې برخه والو ته وايي او بيا جرګه خلاصيږي. كه دغه فيصله د دواړو خواو خوښيږي نو دغه فيصله د قطعي ده.

كه چيري يوه خوا د دريما نود تجويز نه نا راض او ووايي چي د دوي په باب بي انصافي شوي ده نو بيا دغي خوا ته اختيار شته چي دوي په بل ځاى كي جرګه جوړه اودويم نظروغواړي او ددوي دتجويز په باب بل نظر ترلاسه كړي نو چيري دويمي جرګي هم د لومړنيو دريمانو نظر ومانه نو دا فيصله قطعي شميرل كيږي او كه چيري د هغوي نظر له لومړني جرګي له نظر سره مغايرت ولري نودپخواني فيصلي ناقص شفاهي دلايل را برسيره او په دغه باب د څو پخوانيو غلطي فيصلي را بر سيره كوي اواو خپل نوي تجويز او فيصله وړاندي كوي او بيا ناراضه خوا د دغه تجويز دنه منلو اختيار لري. په هغه صورت كي چي ددعوي كومه خوا د لومړي يا دويمي جرګي دتجويز نه انكار وكړي او يا د وزيرو ددوداو يا محمدي (ص) شريعت له مخي دشخړي فيصله ونه مني نو دويمه خوا ددي واك لري چي په بدي يا دښمني له هغه سره چلند وكړي، او له مال او جايداد نه يي بد ل واخلي اويا هغه ته څه زيان ور ورسوي او كه هغه سړى مظلوم او دبدل اخستلو توان نه لري نو بل زور ور ښاغ ته ور ځي او پسه حلالوي او په خپله ، جايداد اوهغه شي چي ددعوا باعث ګرځيد لى دى .

لکه څاروی ، پیسی یا ښځه هم مغـــوی ته ور وړی او ګانه چی دهغوی همسایه شونو په شرم او ننګ کی د هماغه ښانغ سره ګډ یږی او هغه خلك دویمی ډلی یــا ددغه سړی مدعیا نوته وایی چــی زما ددغه همسایه مدعی باید د ده سره دوزیرو ددود یا محمدی (ص) شریعت له مخی دعوی فیصله کړی او تر هغو چی دغه دعوا فیصلــه شوی نه وی په هغه باندی غرض نشی کولای او اکثراً د هغه دقدرت له مخی ښه فیصله را مینځ تــه کیږی . که نه نوددوی تر مینــځ دښمنی پیل او دیو بل مال چــــی لاس ته ورځی غنیمت یی ګڼی که دهغه همسایه مال یا سرته دهمسایه توب په موده کی د دویمی ډلـــی لخوا زیات ورسیږی ، د هغه چا سره چی همسایه و دهغه شرم او نقصان ته دلو تمار ی په ستر ګه ګوری او هغه ډول ناغه تر ینــه اخلی لکه چی د لوتماری په با ب ذکر شو .

لنډه دا چی د فیصلی وروستی طریقه دښمنی او زوردی ، هغــه سړی چی زور وروی بریا لــــی کیږی ، خود دغی لاری اختیارو لو نه وړاندی د دعوی د فیصلی کو لو له پاره ډیر تدابیر نیول کیږ ی . دګرمی په موسم کی کله چی د غه خلك په غرونو کی تولیږی نــــو هلته د هوا سوړوالی او وخــت نه په استفادهٔ سره د شخړ و او تنازعا تود حل او فصل کار و نــــه تر سره او اکثراً د زیات د خر خ او زیان له ویری په لوړی فیصلــه باندی قناعـــــــــت کوی .

## ستر وزیر :

داتمان زیو وزیرو نه د ممیــت خیلو اومدی خیلو دښاخونو ځا نګی یعنی توری خیل او پیپلی کا بــــل خیلو ته دوی پخپله اصطلاح سترو وزیر وایی اوهمدا رنګه دغو دریــو څانګو ته په خپله ژبه دری نغری یا دری لغړی وایی او مقصد یــــی دری کورنی دی. که چیری په وز یرو کی کومه لویه شخړه را مینځ نه شی او فیصله نشی او یا په کـــو مــه مسئله کی په مروجه دود اودستور باندی اتفاق و نلری اودریمان یعنی منصفان مختلفی فیصلی وکړی د و د دسترو وزیرو له دغو دریو کور

نیوته چې کوم سړی راشی یا دوا . ه خوا وی د فیصلی له پاره مخو ی ته ورشی ، هره هغه فیصله چې دوی نی وکړی هغه قطعی ګڼل کیږی . ادا ی دوزیرو اعلی مجتهدین دغه دری لغړی کورنی ده . او له همدی کبله

دفیصلی کولو قطعی اختیاراو واك دغو دریو کورنیو ته ځکه ورکړل شوی دی چې دوزیرو د دوداودستور ایجاد وونکی او رامینځ ته کوونکی ددغه دریو کورنیو لوی نیکه ګا ن ولکه څنګه چې وړاندی هم وویل شول.

## دملکانو حال :

د وزیرو په قبیله کی دملکا نو په ټاکلو کی موروثیت ته هیڅ اهمیت نه ور کول کیږی له څه هم دکورنی مو رثیت ته یوه اندازه پاملرنه کیږی خو هغه سړی چې دملکی وړاو دغه استعداد یی ولری نودده مخه څوك نه شی نیولی .

دښی میړانی شرایط چې د هغو په ذریعه دملکی نوم حاصلیدلای شی په دی ډول دی :

لومړی دماښام توره چې دهغه نه مقصد میلمه پالنه او میلمنو ته ډوډ ی ور کول دی .

دویم هوښیاری چې دغه سړی په جرګو کی باید په هو ښیاری سره خبر ی وکړی او په خبرو کی منطق او استدلال ته ځای ورکړی او په هر وخت د خپلی قبیلی د ښه والی ، وړاندی تګ او ساتنی په لټه کی وی . رشوت ، وانه خلی او خبر ی یی پخی وی نو په دغه سړی باندی د قبیلی خلك اعتماد کو ی

اود ملك په بلل کیږی اود خپل ښاغ مخورو ی او هغه مورثی ملك چې په پوهه او لیاقت کی له ده سره برابر نه وی، هغه ته غاړه ږدی . دو ی د ملکانو په تغیر او تبدیل باندی په خپلو منځو کی دښمنی لری کوی ، دا ځکه چې د دوی په ملکی کی کومه کته نشته ، په دی ډول کله چې د لومړی مستعد سړی له اولادی نه کوم یو دد غه مقام لیاقت ونه لری نو د دغه ښاغ د بلی کورنی کوم پیدا کیږی .او ددوی دغه دستوردی حبری ثبوت دی چې دو ی ټول پخپلو کی سره و رونه او برابر شمیرل کیږ ی . د ملك واك دجرګی د جوړ و لو پرته خو ر ا لږ او په جرګه کی هم د جرګی د اکثر و برخه والو داتفاق نه پرته ملك کوم واك نه لری او دخپلی قبیلی یا ښاغ دمخالفو ډلو نه دکومی ډلی د نارضایی په سبب د دریمانو دګډون او یا دولږو خوا وو د خونی

او رضایت نه پرته کومه فیصله نه شی کولای . که د جرگی غړی د کوم عام انتظام له پاره کوم تجویز وړاندی کړی نو دا تجویز دملک له خوا خپلی قبیلی یا ښاخ ته اوروڵ کیږی . خود جگړی د تجویز عملی کول او د لښکرو برابرول د سترامیر او ځلوېښتیا نو په معرفت ترسره کیږی .

ملکانو ته د ډوډی نه پرته بل کوم عاید نشته او هغه څوک چی ملک میلمه کړی دهغه له پاره اکثرآپسه حلالیږی .

اوس د احمد زیو په ښاخ کی د سوهان خان زوی نجیب خان او اتمان زیو په قبیله کی آدم لوی ملکان دی. دپاتی ملکانو نومو نه د هغوی د ښاخونو د قبیلو دشمیرسره یو ځای وروسته د فهرست په ډول راځی .

د کوژدی رواج:

د نامزدی او کوژدی رواج په دی ډول دی چی د هلک د مور او پلار له خوا د قبیلی یا ښاخ یو مخور یا سپین ږیری سړی د نجلی کورته د مرکی او نجلی دغو ښتلو له پاره استول کیږی . که هغوی یعنی د نجلی کورنی راځی شوه .نو هغه سړی ته چی د نجلی د غوښتلو له پاره راغلی دی وایی چی دی له شپیتو نه تر سلو روپیو پو ری چی د دواړو خوا وو رضایت و ی راوړی دغه روپیو ته دوی په خپله اصطلاح حیری وایی را وړی نو کله چی دغه پیغام واوری نو دغه روپی پیدا کوی اودپنځو یا څو تنو په ملګر تیا دنجلی کورته ځی او یویا دوه پسونه د خپل خوراک له پاره له ځانسره بیا یی او د شپی د ډوډی تر خوړلو وروسته دهغی نجلی د وارث لکه پلار یا ورور په لمن یا توکری کی یا د ی شوی نغدی روپی یا زرچی دو ی ، ورته حیری وایی اچوی چی له هغو پیسونه د هلک او مور او پلار د ملګرو په غوښتنه دوی یا څلور یا تر دغه زیاتی روپی بیر ته اخیستل کیږی او پاتی نوری تولی پیسی د نجلی مور او پلار ته پریږدی او پسه حلالوی. کله چی دغه دود ترسره شو نو د کو ژ دی عهد او ژمنه پخیږی او ترهغه ورو سته دغه عهد څوک ما تولی نشی ددغه دود تر پای ته رسیدووروسته سهار د هلک خپلوا ناو دوستان بیرته خپلو کورو نو یاکلیو ته ستینیږی تر هغه وروسته یو عجیب دود ترسره کیږی یعنی کله چی زوم دخپل خسر کره راځی

نو دځان سره یو پسه راولی او بیاد خپلو څو تنو ملګرو سره هغه
پسه د حپل خسرپه کور کی حلالوی‌او کلیوال هم راغواړی چی دغه
رواج دخترې په نامه یا دوی اود هغی ورځی په سبا په هغه لوښی
کی چی هلك ډوډی خوړلی وی په هغه کی دوه یا دری روپی اچو ی
او دهغه په بدل کی خسردسپینوزرو یوه ګوته یا یوه لونګی او یا
یوه جوړه بوټان یاسپین ټوکر نه جوړ شوی دستمال چی دسرو وریښمو
کارپه کی شو ی‌وی هلك ته ورکړی او بیاد حوښی رسم اودود
په دی ډول په ځای ګوی چی دواړه کورنی د یو بل کره ځی او ډوډ ی
خوری او د کوژدی مراسم په د ی‌ډول پای ته رسیږی . په دغه
قبیله کی د کوژ دی‌دعهد په ماتولو باندی شخړی لږی وی.

## دنکاح څرنګوالی :

ددغه قبیلی دا دوداو دستورډیرښه دی تر څو هلك بالغ شوی نه
وی تر هغه پوری نکاح نشی کولی. کله چی دواړه یعنی هم نجلی
او هم هلك دبلوغ سن ته رسید لنو دواده له پاره یوه ورځ ټاکل کیږی
او د هلك د کلی هر کوریا هر سړی چی له وراسره یو ځای ځی
یو ه او ړ ی یعنی یو ه‌پیمانه غله جوار یا غنم چی و زن
یی عموماً دوه سیره وی را و ړ ی‌او دورا دتګ نه یوه ورځ وړاندی
یوه اندازه د غنمو یاد جوارو اوړه‌یو یاڅو پسونه یوه اندازه کوړه‌ا و
د ناوی جامی دری څلور ښځی ا وپنځه شپږ سړی له ځان سر ه د
نجلی کورته وړی‌اوله هغو موادونه چی ورسره وی ډوډی پخوی، ا و
دغه ډوډی لومړی د نجلی د کلی‌او سیدونکی خور ی . تر هغه
وروسته د ما ښام په وخت کی وراچی شمیر یی د دواړو خوا په‌موقف
پوری اړه لری را رسیږی او پ‍ه‌داسی حال کی چی د کلی ښځی ا و
ماشو مانئی‌په‌ډبرو اوسو تیووهی اوکلی ته ننوزی اوهغه ډوډی د مخه
د دوی د خلکو له طرفه تیاره‌شوی‌وی خور ی او ټوله شپه په ډ و ل
وهلو او نڅا ووتیرو ی. په دی‌وخت کی ددوی ترمینځ دکټ ، بړستنی‌او
یا میلمنو ته دبل ډول عزت ورکولو، دود نشته د ژمی او اوربښت په
موسم کی په او رباند ی‌د تودیدلو په ذریعه د سړو تکلیف کم و ی‌که
دنجلی مور اوپلار توان ولر ی نود سهار له خواهم ورابانی ته وچه
ډوډی او د جوارو دلده ورکوی اورخصتو ی‌یی او هغه نجلی ته‌دنکاح
تر تړلو وړاندی دواده کالی و ر اغوندی او په آس یا غوایی باندی
یی سپر وی او بیا یی .خود هغ‍ی‌میره دوه دری ورځی د دوی‌دتسلیت

له پاره د خسر په کورکی پاتــی کیږی . په دریمه ورځ بیر ته
خپل کور او کلی ته ستنیږی اوملارا غواړی او نکاح تړی . تر نکاح
وروسته په لسمه یا شلمه ورځ نجلی بیرته د خپل پلار کــور ته
ستنیږی او تر دوو او نیو روسته دنجلی مور او پلار هغه د خپل میره
یا ورور یا دکوم دبل خپلوان پــه لاس هغه بیرته په د اسی دول
رخصتوی چی دیره دوډی پخوی اویو سړی یی په خپل سر باندی یوړدی
او د خپلی وسی په اندازه یو یاځو پسونه او غوایی ورکوی چی دغه
ورستنی دودته سروپر وایی ، نوموړی دوډی دمیره په کلیو ا لــو
باندی ویشل کیږی د نکاح د تړلو اجوره تاکلی نه وی خو اکثــر ا
د یوی روپی نه لږه ورکول کیږی.

## دماتم یا ویر مراسم :

په دوی کی داسی رواج دی که چیری کوم سړی مړشی نو دمړی تر ښخولو
وروسته په هغه کورنی باندی چی ماتم وی دوی یاد دوی د خپلــوان
،دنوری قبیلی په کورو نو باندی دوډی ویشی او دغه دو د ته دوی
په خپله ژبه شل گری وایی، ا وکله چی د کوم لیری ځای نه کــوم
میلمه د تعزیت او فاتحی له پار ه راشی نو یو پسه او غوړیی لــه
ځان سره را وړی او د مړی پــه کورکی یی حلالوی او دغه میلمه یی
دنورو میلمنو سره خوری . هغه ملاچی مړی ته غسل ورکوی د مرگ
د وخت جامی د مزد په دول ورکوی او د جنازی سره یو ځای دوسی او
قدرت په اندازه د پسونو یاوزویا نورو حیواناتو خیرات کوی .

## دتوری او لښکر کښی ځرنگوالی :

کله چی وزیرو ته ددی ضرورت پیدا شی چی په کومه قبیله یرغل
وکړی، نود هر یوه ښاغ ملکان په یوه یا څو تاکلو ځایو نو کی سره
راتولیږی او دخیر دعا کوی او پــر دښمن باندی د توری یا یر غــل
وخت تاکل کیږ ی او ددی قبیلی هر بالغ سړی باید په دغه لښکرکښی
گډون وکړی او دخیر تردعا وروسته کوم سید ، پیر، ملایا کوم بل متبرك
سړی یا ملك چی خلك ورته پــه درنه سترگه گوری او په پرهیــز
گاری باندی شهرت ولــری د ر ی دبر ی چی په پښتو ژبه ورته دری
گانی وایی یوپه بل باندی پردی اویو کوچنی خلی جوړی او د جرگــی
تولو برخه والوته خطاب کوی چی هر سړی ددی جرگی د مشوری دتعمیل
او ترسره کولو نه غاړه وغړ و ی نو دا خلی دی په بدی وړپسی ا و

هغه باندې دې ښېرې ولګېږي او کوردې يې خراب کړي او د هغه ښېرې د جرګې د ټولو کډه ونکوو نکو له خوا کېږي او ټول وايي چې دجرګې چې د پنځو يعني د ټولو له خوا دی دا ځلې دبدې د هغه چاپسې شي چې ددغه مشورې پر خلاف عمل وکړي او بيا هغه چا چې ځلې جوړ کړي وي بيرته يې ړنګوي، پنځه په ټولو پښتني قبيلو کې عامه اصطلاح او مقصد يې ټول دی مثلاً که څوك ووايي چې د پنځو وزيرو د اسلا ده يا پنځو بنو والو يا پنځو توته دا څرګنده ده چې ددغو اصطلاح کانو مقصد دا دی چې د اد ټولو وزيرو يا ټولو بنوالو او ټولو مرو توته څرګنده ده. او د قبيلې هر کوچنی او لوی ته د ټولو په عوض د پنځه لفظ استعمالوي.

لنډه دا چې کله چې په دې ډول دوی دکانو ځلې جوړ کړي نو بيا دغه مشوره هر څوك دويري نه هم عملي کوي. او د وی وايي که چيرې تدرتاً کوم سړی نه دی تړون سره مخالفت وکړي نو هغه ته مالي او ځاني زيان رسيږي او دغه دري کاڼي د هري مشورې او مضبوط تړون له پاره ضرور جوړيږي. دغه، خلك عموماً په خپلې دښمنې ډلې باندې ياد پسرلي دموسم (مارچ او اپريل په مياشتو) يادمني دموسم په پيل يعنې داکتوبر او نوامبر په مياشتو کې يرغل کوي. کله چې دغه تاکلي موسم را ورسيږي نو دهر ښاخ ملك د خپلو مربوطو ښاخونو له ډلو سره چې هر څومره راټول شوي وي له ځان سره هغه ځای ته راولي کوم چې دلښکرو د راټولو له پاره ټاکل شوی دی. ددې لښکر و ليږد يا دو لو وړدې دهر يوسړي د سره څومنې کوډې چې په هغه کې څو سيره اوړه وي چې د يوه تن له پاره يوه او نيم يا لس ورځې کفايت کوي مــبو جــو دوی. دال او توره يې په زړو ټوکرانوکې تړلي وي او ټوپك يې په اوږ باندې اېښې وي او په داسې حال کې چې ډولونه غږوي ډلې ډلې ټاکل شوي ځای ته ځي.

## دحربي يا جګړه ايزو فعاليتو نوويش:

---

کله چې دوی ټاکلي ځای تــه رسيږي نو ټول ملکان سره متفق او ټول اختيار دوو ملکانو ته ورکوي چې دوی ورته ستريالوی ملکان وايي چې د هغوی وظيفه داده چې هرښاخ ته يو مناسب ځای و ټاکي او نظم يې برابر کړي همدا رنګ سوله او بدې دده په خوښه يا غوښتنه او دنورو ملکانو په تائيد تر سر ته کيږي. اوس داتمانزيو په قبيله

کي آدم خان مداخیل او د احمدزیو په قبیله کي د سوهان خان زوی نجیب خان سپیرکی ستر ملکان دی. ددغو سترو ملکانو نه پرته یو تن دستر امیر په نامه ټاکل کیږی چی څو تنه ولړه یا کوچني امیران ددوی تر لاس لاندی په فعالیت بوخت وی او دهر امیر تر لاس لاندی دضرورت په اندازه څو کسان چی شمیری له شلو څه تر سلو کسانو پوری وی او دوی ورته په خپله ژبه څلویښتي یا محصل وایی ، وظیفه لري .

دستر امیر وظیفه داده چی دلښکرو په ځای کی حاضر اودجګړی په وخت کی دلویو ملکانو په غوښتنه پخپله لراده هر یو ښاخ په بیلو بیلو دلو وویشی او دجګړې له پاره یی تیار کړی . هر یو ښاخ غړی د جګړی په ډګرکی له یو بل سره سیالی کوی او غواړی چی ددی لپاره په بیلو بیلو دلو ویشل‌کیږی چی د هر ښاخ په هغه پل باندی خپله برتري ثابته کړی او د لښکرو دځای د ساتني بند وبست هم کوی .

دستر امیر دریم لوی کار دا دی چی که چیری دکوم ښاخ کوم سړی ، غفلت ، بی پروایی او یا تمردوکړی او په ټاکلی وخت حاضر نشی نود هغوی د حاضر ولوله پاره لویو کوچنیو امیرانو او دهغه تر لاس لاندی محصلانو ته وظیفه ورکول کیږی او دا څلویښتیان یا محصلان ډیروالګ لری او کولای شي له هغه چانه چی تمردیی کړی یا غیر حاضر شوی وی د وزیرو د دود او رواج له مخی ټاکلی جبرمانه واخلی، او د هغوی یو غوایی یا دوه پسونه حلال کړی او ویی خوری او پاتی برخه یی ورنه راوړی . او که چیری دوی تاغه ادا نکړی او په لښکرکی د کډون کولو نه د ده وکړی نو څلویښتیان دا واک هم لری چی د هغوکورونه لوټ ،تالا یا وسوځوی ، که په دی تالان کی د کورخاوند مقاومت وکړ ی نو څلویښتان دی وژلی شی دوزیرو د دود له مخی په دوی باندی هیڅ‌ډول الزام نه لګول کیږی خو ستر امیر د دوی دبی عدالتی څارنه کوی .

د( ۱۸۶۳ ) عیسوی کال د منی په موسم کی د احمد زیو اواتمان زیو دښاخونو اکثرو ځانګو د دوړو د ښاخ پر پای خیلو باندی چی دبنو دلو یدیځ په دیرش میلی روه‌دوړ د سیمی په لو د یځ کی دتو چی درو دپر غاړه میشته وو، ددی لپاره یرغل وکړ چی هغه لاره چی د وزیرو کاروانونه د ګر می په موسم کی شوال او د یخنی دموسم په پیل کی‌یی بیرته تګ‌ر اتګ کاوه د پلی خیلو دمزا حمت

وړو گرځیده ، چې داکار دو ښو دتوپولو حدته ورسیده او ټبر دریو ټالو پوری دهغوی تر مینځ د ښمنی جاری وه . کله چې توره را توله شوه نو په تنـدی تومی سیمه کې چې دغه ښاخ پـه کې استوگنه لری د وزیرو لخو ا محاصره شوه او سره له دی چې د وزیرو دلښکرو شمیر د پنځـه زرونه زیات و او محاصره شو و پای خیلو شمیر پنځه سوه تنـه رسیده سره له دی هم دغه محاصره شلور میاشتی اوږده شوه خوزیرووکولای شول چې له ځان دفـاع وکړی اوو جنگیږی چې په دو مرحوده کې له دواړو خوا وونه زـه تنه ووژل شول . په پای کې وزیرو سور نکونه وروو هل او یویـی والو زاوه له بله پلوه د پای خیلو ښاخ دخپلی قبیلی له مرستی نـه مایوس او تلولی شول او د وزیر وسره یی سولی ته غاړه کیښو د ه خپل کلی یی وزیر وته ورکړاو پـرته له دی ددوی نه دری زره روپی نغدی هم واخیستل شوی او هغـه کلی یی رنگ او یو نوی کلی یـی په کې جوړ کړ او دهر ښاخ نه یـی شلور سوه وزیر هلته میشتـــه کړل . تردی بریالیتوب وروسته د راتلونکی له پاره یی د لاری پـه نـه بند یدو با نـدی اعتمـادومونډنو د وزیرو لښکری متفر قی شوی .

کله چې د وزیرو لښکری په غر ه کی سره راټولی شوی وی نو په دغه وخت کې د وزیر و دوه دری ملکان د انگریزی سر کارنه د مرستی دتر لاسه کولو له پاره ماته را غلل . همداراز دوی ددی غوښتونکی و و چې هغو ی ته دخپل دود مطا بـق ددی اجازه ورکړل شی چې دهغـو وزیر وله ښاخونو ته چې په د ی موسم کې دسرکار د سرحد په دننه کې میشتـه دی خپـل شلو یښتیا ن وروليږی خوځرنگه چې سر کار پـه داسی بهرنیو شخړوکی د مداخلـی خیال نه لری نو ځکه یی د دو ی دغه دواړه غوښتنی ونه منلـی .

## وزیری اسونه اوسپرلی :

ښرگنده ده چې د وزیر واسونه کلك او په منډه کی تیز او چټـك رفتار لری ونی یی متوسطی خولندیته ما یلی دی سرونه یی وا ړ ه ، غوږ ونه یی ښایسته او نو کدا ره ، سمونه یی کلك اوخیتی یی دصندوق شکل لری . د ډیرو خیړنواوتحقیقاتو سره سره بیا هم ددی اسونو دنسل په باب کوم معلومات تر لاسه نه شو خود دوو دریو لاندینو ځا نګو آسان په دوی کی مشهور دی لکـه دغلو گلـه ، دخذر گـله اودا و ر مړو گله ، داسی اتکل کیږی چې په وراندی وختونو کی به وزیرو کوم

ښه آس په غلا را وستلی وی او د هغه له نسل به د وزیرو آسو ته
مینځ ته راغلی وی . د وزیرواسونه لږ خوراك او زیات كار كوی ، له
دی كبله كله چی په كوم شتمن سړی باندی ځرڅ شی نو د خوراك
اوخدمت په وجه ډیر زر چاغ،ښایسته او غښتلی كیږی ، او دوی تر
هغی اندازی فعال دی چی تر لـــه وریځ سړی وربانندی سپرلی كولای
شی ، په اوسنی وخت كی په د ی آسانو كی دآسانوموندل گران كاردی.
دوزیرو سپر لی دلیدلو وړ ده، دوی اكثراً در كاب له پاره مزرینی څپلی
په پښو كوی اوپه زړو او خیر نـو كالیو پوری یی توری تړی و ی .د
ځینو سره بد شكله نیزه او دځینوســـره واړه توپك ، تفنكچـــی
دوه خنجرو نه هم وی .

اوس په دكابل خیلو اتمان زیو،ممیت خیلو اتمان ږیواوزلی خیلـو
احمد زیو كی ډیر اسونه او سپاره موجود دی ، خو د مسعود و پـــه
قبیله كی له دو وسوونه زیـا ت سپاره نشته دمنډ ی او لاروهنو نه
پرته داوارو سیمو په جگړ و كـی د دوی سپاره د كارنه دی .

## دغلا اولو ټ لپاره ددوی دیو ځای كیدو څرنگوا لی:

غلا اولوټ ددغه قبیلی فطری عادت په تیره بیاد مسعو دو ښـــاخ
په دغه كار كی اول لمبر دی په دغه ترځ كی دوی په خپله زړورتیا فخر كوی.دوی
دكومل په دره لی دغلا اولارو هنی په وخت كی دخپلی قبیلی نه پر به د
نورو خلكو او گاونډ یو مال تـــه دښكار په سترگه گوری او د دو ی
ډیره نا پوهی دا ده چی دمسیحیـــی گور نمنت در عیت د غلامال حلا ل
او تردی حده یی متبرك گنی چـــی خپل كفن هم له هغه نه جو ړو ی
په هریوه ښاخ كی څو تنه مشهـورتكړه غله چی دوی پـــه خپلـــه
اصطلاح ور ته پیاوړی یعنی ز ړ ه وروایی موجود دی اواكثرا دو ی
په خپل مینځ كی همرازه وی ، كله چی د كوم جاسوس په ، لارښو نه
یاپه خپله دكومی قافلی یا مـا ل یا د او ښانودراتگ خبر واوری ا و
وپو هیږی چی په كوم ځای كـــی موقعیت لری نو خپل همر ا زملگری
راټول او هر څو مره كسا ن چـــی دغه حرام ښكا رته ضروروی هغه
تیارا وكله چی دلسو تنو نه لږ ه یوه ډله دشپی له خوا دغلا په نیت
چیرته ولاړه شی نو هغه ته غلـــه وایی چی د غل دكلمی جمع ده او د
هغو نه زیات چی شمیری یی سلـو تنو ته ورسیږی هغوی ته غدی وایی
او د هغوی نه زیات ته تاراكوایی او په هغه غدی یا تاراك كی چی

سپاره شامل وي نو دجرم ترارتکاب وروسته هغوی ته تاخت وایی کله چی تردو ولسوو تنو نه زیات کسان دتاخت له پاره سره را تــــول شي نو هغه ته لښکر وايي . ددې، ډلي مشری د پیاوړی یا زړه وړ په لاس کی وی کله چی دغه ډله لـه خپلوغرنیو سیمو نه دغـلااولارو ـ هنی په منظو ر دسړ کار مید انـــی سیموته روانه شی نو تر هغــه ځای چی د دوی د غره حددی هلتــه خپل څو تنه بی زړه او ډارن ملګری چی په خپله پښتو ژبه هغو ی تــه څاربانی وایی دڅار له پـــا ره

پریږدی او خپل ټول فالتو اسبا ب او بوټان او نور شیان هغوی تــه ورکوی او په خپله دجرم تر سر ه کولو له پاره ځان هغه تا کلی ځـای ته رسوی . دډلی مشر خپل ملګری په دوو ډلو ویشی لومړی ګډو وبی یا هغه څوك چی د مقصد ځای تــه ورننو ځی دویم ګډوونی یا هغــه، څوك، چی دریږی اوخبر اخلی په لومړی ډله کی چی نقب وهی یا مال راباسی پیاوړی هم شامل وی او دویم ډلــه د لومړی ډلی محافظت کو ی چـــی هغوی په غلا باند ی بوخت وی ا و هم کله چی مظلوم مستحـــقان و ر باند ی خبرشی د هغوی سره مقابله کوی .

د دغو بدبختی محا فظی ډلی پــه لاسونو کی تیری په ملا پوری خنجر او توره او د لوټ په وخت کــی د اکثرو سره ډال او توره او دځینــو سره توپك او تفنګچی هم وی ،کله چی د کور خاوند خبر شی نــوددی

محافظینو عادت داسی دی هغه وخت چی مالك دخپل مال دساتلو لــپا ره چیغه ووهی یا شو رما شور وکړ ی په تیره ئی وهی . که دډوی ملګری تیښته و کړی نو خیر اوکه دوی خپل ځان اویا کوم ملګری دنیولو په وحت نی وو ینـــی دهغه چا د وژلو لټــه کوی چی د دوی د نیو لو نیت یـــی کړی وی .

که څه هم په لومړی سرکی دوی عمدی قتل ،لوټما ری، غلا وی او نو ر شرار تونه کول خواوس عموماً یوازی په هغو حالاتو کی چی پورته بیان شول قتل کوی تر دغه عمل وروسته هر څومره زرچی کیدای شي غــلا شوی مالونه خپلو غرنیو سیمو تــه وړی اوهغه وخت چی دخپل غره حــد ته ور سیږی نـــو هغه څار با نی ډله چی د څار له پاره د فالتو اسبابو

نو سره هلته پاتی شوی ده . دو ی ته ډوډی چی ورته کاك وایی او په ډبره باند ی پخیږی لا دمخـــــه تیاروی دوی دغه ډوډ ی ، خو ر ی او دسترپا در فع کولو له پاره په هما غه ځای کی وید ه کیـــږ ی او څاربانی ډله فوراً غلاشوی مال اخلی اوروانیږی او یوتن دویده شو وغلو له پاره پیره کوی که چیر ی د سړی نه دمال تعقیب کونکی ولیدل شی نو هغوی بیدار وی او له دغه ځای نه روانیږی .

## دغلاشو وما لونو ویش :

دغلا شو ی مال یوه برخه ددړی په نامه یا دوی . د غلو مشر هغه وخت چی د پیښی ځای ته نږدی شی نو خپلو ملګرو ته وایی چی هغه سړی چی نقب وهی یاکو رته ننو ځی یا څاروی راوباسي توله هغو نه هر یوته دوی ډړی یعنی دوی برخی ورکول کیږی او هغه څوك چی بهر ولاړو ی یوه سړی ته یوه برخه اودمرتکبینو په مینځ کی دا ډول ویش ترسره کیږی خو سر غنه یا مشر ته دنور و په نسبت یوه یا د وی برخی زیاتی ورکول کیږی اودڅاربا نهریو ه ته یوګنډ کی یعنی دیو ی برخی خلورمه حصه ور کول کیږی . هغه غلاشوی مال چی لوټ په ذریعه تر لاسه شوی وی د هغی د یوی حصی نه پرته د هر یو ه وسله وال مرتکب په وسله باندی هم ویش ترسره کیږی ، که د چا سره یوازی یوه توره وی نو دهغه برخه معمولی او د هر یوه توپك یا تفنګچی خاوند ته یوه ډړی او هر یوه سپر خاوند ته نیمه ډړی تا - کله شوی ده . په دغه اساس که چا سره د غلا په وخت کی یو توپك یوه تفنګچه یوه توره او یو ډ ا ل وی نو هغه دری برخی اخلی خو په دی شرط چی دغه سړی نو موړ ی وسلی ټل له ځان سره ولری نه دا چی یوازی د غلا دوریځی له پاره اودډیری بر خی تر لاسه کولو په منظور یی له ځان سره راوړی‌وی. نو له همدی امله اکثراً وزیر ددی له پاره چی خپل ځان ته د پیاوړی او زړه ورنوم ترلاسه کړی نو دغه ټولی وسلی له ځان سره ګرځوی.

## دغلا شوو مالونو دلیږدولو لاری:

غلا شو ی څاروی او حیوانات غرونو ته بیول کیږی او اکثراً په سلیمان خیلو اوغلجیو باندی پلورل‌کیږی او یایی د توری ښاغ خلك اخلی او خوست ته یی بیایی ا و د ختکو په سیمه کی ځینی میا کان او ښان اخلی‌او غلاشوی مالونه لکه توکران او نور اکثراً د وزیرو په سیمه کې پلورل کیږی . دغلا شوو مالونو اخستونکی اکثراً د غلو له مشرانو سره اړیکی لری. او کله چی غلا شوی مالونه خپلو غر نیو سیمو ته یوسی د اسانونه پر ته نور ټول یی ډیر زرخر ځیږی .

## ددغه قبيلي تر منځ ديو والي‌اواتفاق ځرنګوالي :

هغه څه چي د افغانستان دټولو اقوامو په باره کي ما د خپلوڅېړنو په باب تر لاسه کړل د هغونه د ا خبره ځرګندېږي ، په هغه اندازه يووالي او اتفاق چه په دغه قبيله کي موجود دی په نورو پښتني قبيلو کي ساری نه لري او علـت يې د دوی په دود او دستور کي نغښتی دی‌ه خو بياهم د جهالت او ناپوهی له امله په ځينو ښاخونو کي دښمني مينځ ته راځی او دغـه دښمني او عداوت ان دوينو د تويو لو تر سرحده پوری رسيږی لکــه چي داتمان زيو په ښاخ کـی دمميت خيلو اوبرهم خيلو ځانګوتر يــوی‌مودی پوری په خيلو مينځو کـی سخته دښمني لرله او همدار ا ز بهلول زيو مسعودو د توری خيلواو عبدالي خيلو ځانګو په رزمك نومي ځای باندی د شخړو له کبله تريوی مودی پوری دښمني لرله . و يــل کيږی چي دغه دښمني ډيره‌پخوا ني او د دوی د دودنو د مينځ ته راتلو وراندی پيښه شوی وه . که څه هم په اوسني وخت کی د دوی تر مينځ کومه ظاهری دښمني نشته خو په زړو نوکی يو بل ته چندان پاك نه دی او دښمني دلی د يو بل ښه والي نه غواړی . سږکال د اتمان زيــو وزيرو د بکا خيلو او مميت خيلــود ځانګوتر مينځ په ښځو باندی خــوځله شخړی ، را مينځ ته او د وينو تويولو باعث شوی . او د سپرکـی احمد زيو او مسعود و وزير و تــر مينځ هم څو ځله دمال او قافلو دلوټولو په سبب شخړی پيل وشوی او درويش خيلو وزيرو د توری د راتولولو تکل کړی دی خوښايي‌چي د دوی تر مينځ سوله وشي .

## دنورو ګاونډيو قبيلو سره‌دښمني:

دوزيرو قبيله له خپلو ټو لـو ځلور وخواووګاونډيو سره دښمني لری خو په ترڅ کی دوی دومره‌پوهه لری چي که وغواړی د هر ی قبيلي سره دښمني وکړ ی‌نوپه هغه قبيله کی يوه ګوند ی د خپل ځان پــه ګټه مينځ ته راوړی .

په پخوازما نوکی د بنو ځيــو له قبيلي سره دځمکودنيولو په‌سر احمدزيواتمان زيواکثرآجګړی‌کولی اود مسعود و ښاخ د بيټنيو او اورمړو سره د ملك نه د خارجولو په‌سبب سخته دښمني موجوده وه . اودحټکو د قبيلي د ميری خيلو له ښاخ‌سره هم دوی څو جګړی وکړی .د دوی د مروتو قبيلي د لوحاني ښاخ‌سره‌هم پخواني د ښمني موجود ه‌او تقر يبـاً

یوویشت کاله وړاندې چې دآحمدزیوښاغ لوی ملك سوهانخان یو څه
د خپلې پخوانی دښمنی په سبب اوڅه هم د مروتو د نیمی گوندی د
غوښتنې په سبب د شپږ زره لښکر په ملگرتیا د مروتود قبیلې په
بیکو خیل اوسکندر خیلو په ښاخو باندی په لکی نوم ځای کی یرغل
وکړ په دغه جگړه کی د مرو تو کوچنی ډلی چی حسن خان خیسورهم
ورسره ملگری و دوزیرو لښکر وته سخته ماته ورکړه او تقریباًسل
تنه وزیر ټپیان او ووژل شول که څیری په دغه وخت کی مروتوددوی
مات شوی لښکر ترلیرې ځایو نـوپوری تعقیب کړای وای نو دوی ته
به یې ډیر زیانونه رسولی وای . اوس د دوی تر مینځ کومه ښکاره
دښمنی او جگړه موجوده نده اوسبب یی دادی چی دغه قومونه دانگریزی
سر کار تر حراست لاندی ژوند کوی .

وزیر اوس په ښکاره ډول دغلجیو، او د کور می د اوسیدونکو تو ریو،
خر وټو ،دوړ او میا خیلو سـر هدښمنی لری او هر کال د دوی تـر
مینځ د لړویا ډیروو ینو د توئیـدلو باعث گرځی . وزیرد کاکړ و د
قبیلې له ځینو ښاخو نو سره چی د گرمی په موسم کی د دوی غرنیو
سیموته خپل مالونه د څر ولوله پاره بیایی دهغو سره هم کله کوچنی
جگړی مینځ ته راځی خوداسی نښی موجو دی‌دی‌چی دوی به دخپلی زړه
ورتیا او دغرور او دغرنیو سیمو دد نیولو په اثر له دوی سره هـم
دښمنـــی پیـــل کړی . سر هددومره دښمنی دذوی په مقبو ضـه
سیمو کی هیڅ څوك مداخله نشـی کولای خو دوی‌په نورو باندی‌یرغلو-
نه کو ی .

## د پاچا یانو سره ددوی اړیکی :

ددغه قبیلی خلك له پخوا زمانو نه په مالداری او درمو په څرو لو
بوخت اوپه غرنیو سیمو کی اوسیدل، نو ځکه یی‌دپخوانیو شاهانو سـره
کم ارتباط لاره نوځکه وزیرپه‌خپلی آزادی باندی ویاړ ی اووایی چی موږ
له پخوا نه‌هیڅ پاچا ته باج نه د ی ورکړی .ددی قبیلی خلکو داورنـگ
زیب عا لمگیر دزوی بهادر شاه لـه پوځونو سره دوه ځله مقابله وکړه .
همدا راز هغه وخت چی د سکها نـو پو ځونه بنو ته راغلل نودسائیسانو
(دآسانو دساتونکو )اونورو په وژ لو سره یی خپل ځانونه گنهکار کړل .
لنده داچی دانگریز سر کار نه وړاندی دوی دهیڅ چارعیت نه وو .اوانگریزا

سرکار هم یوازې په هغوښا خو نو تسلط لرئ چي دژمي په موسم کې
دبنو دضلعې په حدودو کې میشته کیږي ، همدا رار دمیدان په سیمه
کې دوی له پخوا نه ځمکې لرلې ا و هم دسن کار لخوا د بخشش په ډول

دلته دوی ځمکې ترلاسه کړې د ی . اوس هم ددغه قبیلې اکثریت په
آزاد ډول په غرنیو سیمو کې ژوند کوي . هغه لومړني حاکم چي د وزیرو
قبیلې ځینې ښاخو نه یې رعیت کړل کرنیل هربرت اډ واردس و .

په (۱۸٤۷) عیسوی کال کله چي نوموړي دجرنیل وین کورټ لندت
په ملګرتیا دسیمې دچار ود تنظیمولو په منظور بنوته راغی اوپه دغه
سیمه کې یې په سرسرې ډ و ل دمالیې راټو لولو له پاره مطالعه
پیل کړه نو په دغه وخت کې دوزیرو قبیله چي ددوی ځمکې دبنو په سیمه

کې وې نو دوی دخپل لوی ملک سوهان خان ترمشرۍ لاندې په دغه کار
اعتراض وکړ اوویل یې چي موږ هیڅ کله کوم پاچا ته باج ندی ور کړی
نواوس هم دخپلو مقبو ضه ځمکو له سروی نه معذرت غواړو .

داخبر د(۱۸٤۷ ) عیسوی کال ددسامبر دمیاشتې په یوولسمه نیټه
کرنیل اډ وار ډس ته ورسیده او ده تر پوره غور وروسته په فارسي
ژبه یو اعلان جاری کړ چي د هغه ښیګنې اود عملي کوونکي د عمل

استقلال او خپلواکۍ ور نه څرګندیږي او څرنګه چي دغه اعلان کټور د ی نو
ځکه هغه کټ مټ لاندې راوړل کیږي .

**داعلان نقل : (*)**

هغه اعلان چي دلاهور بهـا در استنټ ریز ډنټ هر برټ اډ واردس
له خوا د (۱۸٤۷) عیسوی کال د دسامبر دمیاشتې په ا و لسمه
نیټه په میش خیلو کې جاري شوی دی :

« دا دوزیر ودقبیلې هاتي خیلو ، بیزن خیلو ، عمر زیو سرکي خیلو ،
محمد خیلو ، سودن خیلو ، بکي خیلو ، او جاني خیلو ملکانو ته دی چي دجرګې
له پاره غونډ شوي دي دا څر ګنده وي چي ماته داسې ښکاري له هغه

وخت نه چي پنځه ویشت یاد یرش کاله وړاندې دبنو ښیا نو ملک دخراسان د پاچهانو له لاس نه وتلي دی له هغې مودې نه دوزیر و قبیله

* په کتاب کې دغه اعلان په پارسي ژبه راغلی دی .

خو څرنګه چي دغه کتاب په پښتو ژبه ژباړل کیږي نوځکه پورتني اعلان
هم وژباړل شو .

چی په خپل مینځ کی اتفاق در لو ذاو بنو ځیان چی ددوی تر مینځ ا تفا ق
او یووالی موجود نه ونو ځکه وزیر له خپلو غرنیو سیمونه را ښکته

او دبنو زر خیزی سیمی یی و نیولی او کال په کال یی خپلی قبضی ته توسعه
ور کوله اوکله چی وزیر د بنو سیمی نیولی نو باید په دی پوه شو چی

په هغه وخت کی په بنو کی نه کوم قانون موجود واو نه یی کوم حا کم
لاره . که څه هم د بنو دود داسی وچی په خپل مینځ کی یی د چا حق

نه پیژانده او ځکه به دزورړد دخاوندوه ، او هغه څوك به چی دنو ر و
سیمو نه راتلل په همدی ډول یی عمل کاوه ، خواوس هغه وخت تیر شو ی

اود لاهور سر کار داسی تکل کړ ی دی چی د بنو ملك د پنجاب د ریا ست
یوه برخه وگڼل شی او په راتلو نکی کی به یو لوی پوځ اوحاکم د پنجاب

دریاست له خوا په دغه سیمه کی وټاکل شی ددغه تجویز مقصد دا د ی
چی د سر کار اوامر بی له ستونز و عملی شی ځکه په هره تپه کی دځمکو

جریب کول اود سروی چاری پیل شوی تر څو د ځمکو اندازه اود هغوی
ښتنان وپیژندل شی اوپاتی دی نه وی چی دهرچا سره چی د بنو ځمه.
وی هغه سړی که وزیر وی یا ختك او یا هم له کومی بلی قبیلی نه ،له
دی امله چی دسر کار مقصد د ټو لو خلکو سره په برابر ډول چلند کو ل

او تر یوه نظم لاندی راوستل د ی.. نو ځکه به دهیچا پلوی نه کیږ ی
که څه هم دی دلوی یا کوچنی قوم وی زور ور اویا کمزوری وی هر څوك

چی د بنو په سیمه کی ځمکه لری هغه د بنو ځیو په جمله کی شمیرل کیږی.
او هغه څه چی ملك سوهان خان وایی چی وزیر وتراوسه کوم یا چا

ته مالیه نه ده ورکړی نواوس یی څرنګه ورکړی ؟ تر هغی چی دری په
خپل سیمه کی اوسیږی ، د د و ...دلیل معقول دی داځکه چی تراوسه
ددوی ملك آزاد او د کوم حاکم تر قیا دت لاندی نه دی او مها راجادلیپ
سنگهه بها دړ هم دد وی دغرینو سیمو سره څه کار او غرض نه لری ،خو

هغه وخت چی دوی بل ملك ته راشی نو ضرور ده چی دهغوی نظم اوقانون
ومنی ،که دوی دسر کار ما لیه او قوانین نه منی نو ځکه دی هغه
چاته ور کړی چی پخوا ئی له هغه نه نیولی ، اوپه خپله یی قبضه
ور باندی ...ولی ...دی ...وی دی ...پخوا نیو په زړه پوری غرنیو سیمو ته

لاړ شی چی هلته مالیه نه ورکوی . هلته غنم نه پیږی اوهم ددوی په
دغه خبره باور ولری چی یا به قانو ن منی اویا به له بنو نه د توری په
زور وایستل شی او باید وپوهیږی چی له ما سره دومره پوځ نه موجود دی؛

چي د وزیرو ټوله قبیله ور باندی تباه کولی شم خوزه یقین نه لرم چی دوی به ترهغه اندازی نا پوه‌او بـی خبره وی چی هغه ځمکه چی د پر یش کاله یی په‌لاس کی وه په یوه و ریځ خوشی کړی یادی دخپل ټول فصل یوه وړه برخه چاته پریږدی ، نو د و ی ته‌دغه لاندی‌شرایط وړاندی کو م :

لومړی : دهغه ځمکی چی د بنوپه تپه جاتو کی‌د پیسو په بدل کـی اخیستل شوی وی هغه بی له شکه ددوی حق‌گڼل کیږی . اوهغه ځمکـه چی وزیرو په‌زور له پنځو کا لـو راهیسی نیولی وی هغه ذی هم ددوی په قبضه کی‌وی .که چیری له‌پنځـو کلونو نه‌په کمه‌موده کی و زیـرو ځمکه نیولی او بنو ځیو دهغـی د بیرته نیولو له‌پاره جګړه نه و ی کړی . هغه دی هم د وزیرو په واك کی وی .

دویم : په هره اندازه ځمکه چـی دوزیرو په‌لاس کی‌ده‌دبنو ددودله مخی دی خپل محصول دبنو ځیو پـه ځیر دمنی دموسم له فصل نه ورکړی اوپه راتلونکی کی‌دی‌خپل‌محصول فصل په فصل ورکوی .

دریم : هغه ټول څړځایونه چـی د تهل په نامه بلل کیږی او څلـور خواوی یی‌په‌دی ډول دی ختیځ تـه یی پراخی دختکو زراعتی ځمکی یـا دلتمر، کمر، نصرتی اوسوار اوسهیل ته یی یوه تنګه دره ، لویدیځ ته‌یی مچن خیل د کورمی دری اود سورانیو سیمی، قطب ته یی‌له هغه ځا یـه چی د کورمی سین له‌غره نه د بنـو ملك ته ننوځی. دغه ټول څرځایونه چی دمالونو لکه اوښان ،غو ایـان ، او پسونو دڅرولو له‌پاره دسرکار له خوا تخصیص شوی هغه څوك تر ی‌کټه اخستلای شی‌چی دسرکارتابعیت ومنی اود کال (۲۵۰) پسونه‌دمالیـی په ډول ورکړی اود مالیی‌دورکو لو ویش دی قبیله په خپل مینځ کـی دزیاتوالی اوکم والی په نظر کـی نیولو سره وکړی اوهر کله چـی دوزیرو قبیله له‌غره نه راښکته شی نو باید دهرښاغ ملك د سرکـار ملازم ،ته حاضر او دخپل ښاغ شمیـر دی دملازم په کتاب کی ثبت کړی چی څومره خلك تهل‌ته راښکته شوی‌دی.

څلورم : هغه څوك چی په للمـه ځمکه کی‌هر څومره ساحه‌ور کړ ی نو شپږمه برخه دی سر کار تـه ورکړی.

پنځم: څرنګه چی د وزیرو قبیله په للمی‌ځمکواو دبنوپه نور وسیمو کی په متفرق ډول ژوند کوی نوددوی له پاره به دسرکار له‌خوا سو هـان خان وزیر ملك وټاګل شی.

شپږم: په راتلو نکی کی به دوزیرو او بنو څوترمینځ دښمنی او عداوت له مینځه ولاړ شی. او ددوی تر مینځ وینی تویول، لوټماری او دزراعتی اوبو وچول بندوی. اوکه له وزیرو نه کوم یو ځان مظلوم گڼی نو باید زما حضور ته راشی اوعرض او دا د وکړی فقط.

باید ددغه اعلان په محتوا باندی خپل ځا نونه پوه او پخپل منځو کی سلا او مشوره اوډیر زر مثبت یا منفی ځواب راکړی.»

هغه وخت چی دغه اعلان خپور شو نو محتوا یی هغه وزیر چی د بنو په سیمه اودغرو په لمنو کی یی ځمکی لرلی د غفلت له خوب نه را ویښ اوټول هغه حکمونه اوشرایط چی په اعلان کی خپاره شوی وو د ملکانو په جرگه کی ومنل شول او ددغه حکم دشرایطو په نظر کی نیولو سره هغه وزیر وچی د بنو په تپو کی یی آبی ځمکی لرلی دا ومنل چی د خپلو حاصلاتو څلورمه برخه څرنگه چی په نورو بنو څیو کی رواج و د ما لیی په ډول سرکار ته ور کړی خو دوخت حاکما نو دځمکو دسروی جمع اوقیداو بندوبست په وخت کی له وزیرو سره له ډیری نرمی نه کار واخیست خو دبکا خیلو ښاغ له دغه نرمی نه محروم دی اود تهل او نورو ځمکو باندی شپږ مه برخه وټا کل شوه اوس دبکا خیلو له ښاغ نه پر ته نور ټول وزیر دغه مالیه درونده بار نه گڼی او په خپل وخت باندی یی ور کوی.

اوس غواړم ددغه قبیلی په هغه له دښمنی نه دك چلند وغږیږم چی دانگریز سرکار دوا کمنی له پیل نه یی تر اوسه دنو موړی سرکار سره کړ یدی.

دا خبره څرگنده ده چی ددغه قبیلی تقریباء ټول خلك غله دی او په دغه باب هغوی په خپله زړه ورتیا او اتفاق باندی افتخار کوی اوتر هغی چی دوی ته دټیکس او خراج په ډول څه پیسی ور نکړل شی نودوی په خپلو همسا یه گانو باندی یرغل کوی. کله چی هغوی دانگریز سرکار په لو یدیځه پوله کی دیو سلسو څلویښتو میلو په اوږ دوالی همسایه شول. نو دکور نمنت دملا زمینوله خوا ډیر کو ښښ کیږی چی دوی راضی وساتی خو په لومړی سر کی داحمد زیو او اتمان زیو ځینی څانگو او ټول مسعود ودانگریزی سر کارسره ډیر مخالفت څرگند او تل به یی په یر غلونو لاس پوری کاوه او تر څو به چی ډیر او، قوی خلك له دوی سره نه وو نو څو میله دننه په سرحدکی به هم کار وانونه او مسا پران محفوظ نه وو او وزیرو په دغه خبره باندی دپو هیدو ظر فیت نه لاره چی کیدای شی له دوی سره دملا او سولی له لاری چلندو شی

او هم دهغه زیان تاوان له دوی نه واخیستل شی اودا خبره خو دوی ته هیڅ دمنلو وړنه وه چی سرکار کولای شی دوی ته ددوی دخپلو غر یو سیمو په دننه کی سزا ورکړی، اوپه حقیقت کی دوی په ځان دا سی اعتماد لاره چی دوی به تل کولای شی چی په سرحد کی خلکو ته کړاوونه پیښی او مجرمانو او فراریانو ته به په خپلو غرنیو سیمو کی پناه ورکوی او انګر یزی سرکار به په خوشالی سره سره دروپیو په بدل کی دوی خپل پلو یان کړیدی ددغو خامو خیالواو لوټ په ذریعه به دوی تل په سرحد کی فسادو نه رامینځ ته او په څوکیو باندی به یی یر غلونه کول آن تردی چی یو ځل یی هم ددوی یوزیات شمیر خلکو دبنو دنیولو له پاره ملا وتړله اوهم یی دانګریز رعیت په هغو ځایو نو باندی چی دپولو په دننه کی میشته وو تیری وکړ اوتهدیدول به یی او کله به چی دوی ته په مناسب وخت مرسته ونه رسیدله نو هغه ځایو نه به یی لوټول ، مسا پرانو او دسرکار رعیت یی تـر هغه ځایه چی لاس رسیده لو تاوه او زیان به یی ورا ساوه.

په پای کی د (۱۸۵۲) عیسوی کال په ورو ستیو وختو نو کی تر هغه ورو سته چی دپخلا توب ،سولی اوحفا ظت دتړون نه تر دریو کا لو زیات وخت تیراو ددوی اکثره تیری او کړاوو نه وزغمل شول. نو دبنو دپټی کمشنر جان نکلسن دګورنمنټ په منظوری داسی پریکړه وکړه چی داحمد زیو له قبیلی نه دعمر زیـو په ښاخ باندی چی دبنو په شما لی غرو نو کی او سیدل او یو سخـت یرغل نه ورو سته چی دوی ترسره کړی و، دتهل له سیمی نه غرو نوته په شا شوی وو او هلته یی له پخوانه خپل قدرت لاپسی پـیاوړی کړی وه یرغل وکړی او دغه یرغل شپی په نا ځاپی ډول په دوی عملی شـو چی په دغه جګړه کی ددوی ځینـی کسان ووژل شول - کږدیو ته یی اور ونه وروا چول شول او رمی او څاروی یی دسرکار لخوا ونیول شول او راو ستل شول، لنده داچی دا یرغل بر یالی واو له هغه وخت نه عمرزی لاری ته راغلل او له حملو نه یـی لاس واخیست، دسرکار سیمو تـه ددوی تګ راتګ ازاد او له هغـه وخت نه ددوی کړه وړه سم دی.

او یوه بریا لی یرغل ددی له پاره کافی وچی هغه کارو نه چی داحمدزیو په ټولی قبیلی پوری مربوط ووسم کړی شی، دعمرزیو د ټکو لو نـه وروسته داتمانزیو قبیلی د کا بلخیلو ښاخ باندی چی دکو هاټ په خوله کی اوسیږی چی دری ځلی یرغل وشولو مړی ځل په ۱۸۵۵ عیسوی کال . چی ددغو یرغل ددی لپا ره کافی وه چی دسرکار دعوه چی ددغو خلکو سره یی لرله دسولی له لاری حل شی په (۱۸۵٦) عیسوی کـال

ددویم ځل لپاره په لارو وهو نکو باندې د شپې له خوا ناڅاپي بریده وشو او هغه وخت چې دوی په دې ویو هیدل چې دسرکار دپوځ له خوا محاصره شوي اود مقابلې یا تسلیمیدو نه پرته بله لاره نه وه پاتې.

دوی هغه قاتلان چې دسرکار لخواورنه غوښتل شوي وو سرکار ته وسپارل او دوی په خپله په امن کې پاتې شول..

د (۱۸۵۹) عیسوي کال دد سا مبر په میاشت کې ددریم ځل له پاره په همدغه کابل خیلو باندې په دې سبب یرغل وشو چې دکپتان مچم قاتلانو ته دوی پناه ورکړې او سرکار ته یې هغوله سپارلو نه ډډه کوله اوځنګه چې هغوی دخپل ملك دموقیعت په استحکام باندې داډه درلود نوځکه یې دسرکاري پوځونو سره په جګړه لاس پورې کړ خوماته یې وکړه اوددوی کیږدې مالونه اوښاروې دسرکارلاس ته ورغلل .په پای کې مجبور شول

هغه شرایط ومني چې دسرکار له خوادوی ته وړاندې شوي وو. اوس به دوزیرو دقبیلې دمسعودو دښاخ بیان وشي .

دغه ښاخ له نورودریو ځانګو نه دلوټ په کارکې ډیر مشهوراوپیاوړی اوددوی زیانره ګوزاره په لوټ جبراوتشدد باندې ده. دوی په دغه خبره پوره باور لري چې دهغوی غرنیوسیمو ته رسیدل او ددوی په چاروکې مداخله یوناشونی کار دی. دوی له پیلنه تراوسه په غلا، لوټ اولار وهنه بوخت دي او هیڅ داسې یومیاشت به نه وي چې دوی په دا سې یوه کار لاس پورې نکړي.

د( ۱۸۵۵) عیسوي کال دمارچ په میاشت کې یوبومي افسر چې دولس تنه پولیس هم ورسره وواو یوه دله لوټماران یې ددوی په غرنیو سیمو کې ښکار اوتر ډیرو لیرې ځایونو پورې ورپسې تللي وو. ددوی په ذریعه ووژل شول او دهمدغه کال د نوامبر په میاشت کې ددغه ښاخ دری زره خلك سره راټول اودټانك سیمې ته مخامخ دیوې درې په منځ کې دغه نیت سره یوځای شول چې نوموړې ښار لوټ کړي خودسرکار پوځ له پنځوس میله لیرې نه د دوی، مخ ته ورغلل خوددوی تصمیم عملي نه شو. په (۱۸۵۵)- عیسوي اوبیا په (۱۸۵۷) کال کې په دغه ښاخ ، باندې دپوځې یرغل تجویز منظور خودځینونورو ضروریاتو له کبله دغه کارو ځنډیده او دڅو کالو پوځې عملیاتو دځنډیدلو په سبب دغه خلك زړور

او په دغه خبره باندې يې باور ټينګ شو چې که دذوی غرنيو سيمو تـه
ور ننګ او ددوی په چارو کې لاس وهنه وشي نو دوی به ددغه عمـل
مخه په بريا ليتوب سره ونيسـي.

د (۱۸۶۰) عيسوي کال دمارچ دمياشتې په ديار لسمه نيټه دمسعود
وخلك پر ته له دې چې دوی ته کوم زيان ور رسيدلی وي د ځلورو زرو
تنو نه يو لښکر ترتيب او دلو يو ملکانو په مشرۍ ټانك د ښار دلو-
ټونو په نيت ميدان ته راغلل له نيکه مرغه په شاوخوا کې کليو کې سپاره
پوځ نه موجود وو او هغوی ته په داسې وخت کې خبر ورسيده چـې
دوی د (۱۹۵) تور زنو ټولولو مهلت وموند او دسرکاري پوځ دزړه ور توب
او دجنګي تعليماتو سره داشنا يې په سبب غرنيو لوټمارانو ماته وموندله
او ددغه لوټمارانو نه، له سلوتنو نه زيات مړي پاتې شول. له بلـه
پلوه دسرکار له خوا خلك لږ مړه شول، خو زيات اسان ضايع شول.
تر دغه وروسته نواب ګورنر جنرال حکم وکړ چې ددغه ښاغ غرنيو سيمو
ته بايد پوځ ولیږل شي ترڅو وړاندنيو جرمونو بدل او دراتلونکي
له پاره بايد داد ترلاسه شي، کله چې دير غل حکم صادر شو نو دضرورت
ور سپايان راټول او دغه پوځ دبريد جنرال چمبرلين په مشرۍ هغه ځای ته
چې لوټمارانو ته ذلت ور په برخه وورغی او هلته يې لښکرګاه جوړه
کړه خو دسپايانو دبريد نه وړاندې دمسعودو ملکانو ته اعلان ورو ليږل
شو. په هغه اعلان کې غرنيو سيمو ته سرکار دپوځ دننوتلو مقصـد
هم څرګند شوی او هغو ته خبر ورکړل شوی و چې ټرېوی، تاکلې
مودې پورې دوی ته ددې اجازه شته چې سرکاري لښکرګـاه ته
راشي او دسرکار دعوی تـه غوږ ونيسي او که چيرې دوی را نشي
او ياد سرکار دعوه ونه منې نو ملکانو او دهغوی له ښاڅونو ا.و
ښانګو سره به ددښمنۍ نـه ډك سلوك وشي او سزا به ورکړل شي
او خونونه به يې په خپلو غـاړو وی.

دبريد جنرال چمبر لين دغه معقول او پر ځای اعلان، ته هيڅ ځواب
ورنکړ شو بيا لښکر ته خبر راغـی چې مسعود دغره په دننيو سيمو کې
جګړې له پاره چمتو دي او زيـات تم کيدل ضرور نه وو، لکه چـي
د (۱۸۶۰) عيسوي کال د اپريل دمياشتې دشپاړسمې نيټې په سهار
بريد جنرال چمبر لين خيمې ته لی او دپنځه زره اوسلو جنګياليو په
مشرۍ ټانك ته مخامخ دټانك زام دری له پو لونه تير او غره تـه
ننوتل. په پيل کې ددغو لښکر ومقابله ډير خفيفه وه تر څو داخل
ته ورسيدل دسرکار لښکری دعسکري پلان له مخې په دووبرخو

وویشل شوی . برید جنرال چمبرلین دیو زیا ت شمیر لښکر و او
غرنیو توپو نو سره دشاهون په خواروان شو . او دسپا یانو یوه ډله یی
چی شمیر یی تقر یباً دوو زرو تنوته رسیده ، په پلو سین کی چی
دچنډ و له نه څلور میله وړاند ی پروت د ی . دلفتننټ کـر نیل
لمسډن تر مشری لاند ی پر یښود لشو . دبرید جنرال چمبر لین پو -
ځو نو بی له مقا بلی دغلیم ډیر کلی وسوزول اوکرنی او زراعت ته یی
ډیر زیان ورساوه خودری زرووزیروپه هغه ډلی باند ی چی په پلوسین
کی میشته وه ددغه کال داپر یـل دمیاشتی ددری ویشتمی نیټی پـه
سهار د شبخون په ډول یر غل وکړاو دپو ځو ړاند ی برخه یی لـه
مینځه یو وړه اوله دوی نه یـی تقر یباً پنځه سوه زړه ور کسـان
ووژل او هر څه به چی لاس تـه ورتلل له مینځه به یی وړل ا و
انسا ن اوحیوا ن به یی تر تیغ تیراوه . که څه هم په لومړ ی سر کی
ددغه نا څا پی برید په اثر پـه سر کاری پو ځ کی واز خطا یـی
او بی تر تیبی مینځ ته را غلـه خوتر لږی مود ی و روسته سپا -
هیانو ځانو نه سنبا ل او کور کهه او گا یډ پلټنې دتو پکو او تورو په
زور و زیر په شاو تمبو ل او تـردریو میلو پور ی دو ی تعقیـب او
ډیر وزیر ووژل شول او پـه دی ډول دو ی ته یوه وړه سو به وربه
برخه شوه ، هغه وخت چی د پوځ دواړه ډلی سره یو ځا ی شوی نـو
بیاهم یو ی برخی و ړا نـد ی تګ و کړدمی دمیاشتی تر څلور می
نیټی پور ی هیڅ کومه مقابلـه ونشوه په هغه ورځ د بر پړه ددری
تر مینځ او د غرو نو دواړو غاړ وته تقر یباً اوه زره تنه مسعـودود
سر کار ی پو ځ لاره بنده ا ودجګړی له پاره تیار شو ی وو، نو مو ړ ی
دره ډیره تنګه اوتګ را تګ په کی ډیر سخت دی . دښمن که څه هم
ددری لاره ډیره مضبو طه تړ لـی وه خو جنرا ل صاحب په داسـی
تدبیر سره جګړه و کړه چی وزیر یی ډیر زر تیښتی ته مجبور کړل . د
وزیر و مسعود ملک چی په دغـه جګړه کی حاضر و وایی چی مادهغی
دری ډبندو لو اوسختی مقابلی لـه پاره لښکری په درو ډلو ویشلـی
وی. په دی ډول چی خاص په د ر ه کی دښمن خیلو دښا خ خلك، دشمالی
غره په سر بهلول زی او سهیلـی خوا ته یو تمه خیل علیزی ځـا ی
پر ځا ی شو ی وو. شمن خیل پـه دی فخر کوی چی دتو لو نـــه
وړاند ی بهلول زی اودغره دسـر خلك و تښتیدل . لنډه دا چی تر دی
جګړی و روسته مسعود و بیا هیڅ وخت په دا مخامخ ډول جګړه و نـه

کړله دهغې میاشتې په پنځمه نیټه لښکرې په مخ ولاړې او تر پنځلس میله و ړاند ی تګ نه ووروسته دکانی ګروم تر څنګ چې د هغــــو خلکو یو میشهور ښار دی چې پـــــه هغه کې داور مړیو لړ شمیرسیدان او سیدل تم شوی. او ددغه ځــــای دبیګناه خلکو په غو ښتنه دو ی یوه اندازه رو پی واخیستی او دغه ښار له لوټ اوسوزلو نه وژغور ل شو . سر کاری پو ځ له ځوورځو تم نه و روسته دشمال په خوا مخــه وکړه او په یو لسمه نیټه دمکین سیمی ته ورسید ل او هلته تــم شول دغه ځای د مسعود و دقبیلی لوی ښار دی او هلته اوسپنیـــز ساما ن ا لات جوړ یږی او دعبدلی ښاخ اونور مسعود چې داوسپنـــې سوداګری کو ی ښه اوهو ســـــاژوند لری .

سره له دی چې مسعود په پر له پسی ډول وپو هول شول تر څـــو چې مسعود په لاره نه شی نودمکین ښار به لوټ کړی شی په دغه وخت کی سر کاری پو ځ دښنو خوا تــــه مخه کړه او دد ښمن زراعت اومالونه یی زیانمن او دمسعود و له حدنه تیرا و د اتمانز یو و زیرو سیمی ته ننوتل دخیسور در ی سر تــه تر رسیدلو پوری دمسعود و زیرو سپرو به لړ لړ دوی تعقیب او د دوی دداذیت باعث به ګرځید ل . خو د مقابلی له پاره به یی هیـــــځ اقدام نه کاوه . ددغه میاشتی په اتلسمه نیټه پوځ بیرته دبنو ضلع یعنی سر کار ی سیمی ته ورسیده اودغه معامله په ډیره آسانی پای ته ورسیده . او دسر حد دانتظا م له پاره دا ډیر بریالی یر غل و.اودهغو سیمو غرنی ګاونډی هم په دی پوه شول چې موږ په سختو غرونوکی دمیشته توب اوپه دغو ځا یونو باند ی دباور په سبب دانګر یزی سر کار سره دد ښمنی په صورت کی خوند ی نشو پا تی کیدلای او هــم هغوی دخپلو اعمالو په بـــد ل کی سخته سزا و لید له ، ددو ی ملک ولید لشواو نقشه یی واخیستل شوه چې دغه عمل په راتلو نکـــی کی ددو ی دویری اوعبر ت با عث دی . دمسعود و هغه ملک چـــــی دمولف سره یی کتلی دهغه دبیا ن له مخی په دی جګړو کـــی ددو ی (۲۸۰) تنه وژل شــــــوی وو. چې دتیپیانو شمیر ددغه عــدد نـــه زیا ت و ، په دغه جمله کی (۱۰۵) تنه د ټانك په جګړه کی (۳٦) شپږ دیرش تنه دبر یره په جګړه کــی او پاتی یی د پلو سین په جګړه کی وژل شو ی و ، هغه په خپله دا خبره منی ، چې دوی ته ډیر زیا ن ورسیده او د هغو ی له لو یـــو ملکانو نه جنګی خان سملی خیل ،لوټ خان شهابی خیل او چلك ملـك

شاهي او ميراث هيبت خيل او نورووړل شو ل.دو ی وایی چی زمو ني دقبيلي خلك د توپ له ډزو نــه ويريدل خو دهغو نه دو مره زيات زيا ن راو نه رسيده لکه چې رافل توپکو را ورساوه .

تر دغه يرغل و روسته دافلاس،دغلي دنشتوالي او د کار وانو نو دبند والي سره سره مسعود و دضدله مخي دسر کار سره دپخلا کيد و غوښتنه و نه کړه خو تر يوه کا لوروسته چی کله دوی ته دهغــه زړه ور توب نه خرابه نتيجه ورپه برخه شوه نو بيا يی دسولي غو ــ ښتنه و کړه او دپنجا ب گور نمنټ دبرقي مزی (تلگراف ) په ذريعــه سره د سر حد حاکما نوته د سولي دغو ښتني دمنلو په باب داسی امر وکړ چی دمسعود و له دريو واړولو يو ښا خو نو سره دی په بيل بيل ډول دسولي بند و بست و کړی اوله هريوه ښاخ نه دی په مفصــل ډول لاندني اقرار و نه واخلی .

لو مړی :

داچی دراتلونکی له پاره دی له سر کار سره دسولي ژمنه وکړی .

دويم :

که په راتلونکی کی د مسعودو،وزير و قبيله دسر کار سره کو مه بدی و کړی نو سر کار به دهغــه در يو ښــا خو نو له جملې دهغــه ښا خ څخه بد ل وا خلی چی بد چلندوکړی .

دريم :

که چيری له تو لو ښا خو نو نه کوم يو وزير بدی وکړی نو نــــور ښا خونه دی هغه مجرم ته پناه نــه ور کوی‌او مرسته دی‌نه ورسره‌کوی.

څلورم :

که چيری دو زير و دکو م ښاخ‌نه څوك‌دغلا مرتکب شی نو د پاتـــی خلـــك دی غلا شو ی مـــا ل‌په‌خپله سيمه کی نه پريږدی.

پنځم :

د دريو واړ و ښا خو نو ضامنان‌دی سر کاری سيمی ته دير غمـــل په ډول راشي او د سر کار ترنظرلاندی ، دی استو گنه غوره کړ ی. او د سر کار له خوا به هغــــو ی‌ته دگو زاری له پا ره منا ســـب خرڅ ورکړل کيږی او هم‌به ســــرکار له هغو سره ښه چلندکوی او

دمسعود و مشران دی وپو هول شبیچی دپور تنیو منذر جه شرایطـــو مقصد داد ی که چیری دسر ک رپه سیمه کی د مسعود و قبیلـــی دری واړ و ښا خو نو ته کوم زیان ورسیږی نو دمال خاو ند ته دده د حق او داد تر رسید و پور ی یوازی دهغه ښا خ کاروا ن ضبطیږی چی په هغه باندی دغه زیان ثابـت وی او مظلوم ته به دهغه دحق سپارلو له پاره دهغه دو داودستور له مخی چلند و شی کوم چی ددغه سر حد په نورو قبیلو کی جاری دی.

مسعود ودغه ټول شرایطومنل اود شنگی له ښاخ نه پر ته دنور و ټولو ښاخو نو دملکانو یوه لو یـــه جرگه راټوله او دسولی دشرا یطـو له پاره بنوته راغلل او د ډیټـــی کمشنر په حضور کی چی د سو لی کوم تړو ن و لیکل شو د هغه نقل په لاند ی ډو ل راوړل کیږی.ددغی سولی دتړون نقل د (۱۸۶۱) عیسوی کال دجون په میاشت په بنو کـــی دډیپټی کمیشنر کپتان مزو پـــه حضور کی د مسعود و او و زیـــر و قبیلی ددریو واړو ښا خو دملکا نو له خوا تحر یر او تایید شو .

**دسولی دتړون نقل:**

موږه د سلمی خیلـــو د ښا خ جنگی خا نزوی عمر خا ن او دلنگـر خیلو ـه ښا خ دسید شاه خان زو ی بارك خان د تمرو زو ی ببری گل ، دمزدور زوی متین دقا سم خـــــانزوی زار محمد ، د دریاخان زو ی علی خان او دگوری خیلو دښـــاخ دمیر احمد زوی شجا ع دختان زو ی ولایت ، دغفاری زو ی طوطی او دشا بی خیلو دښاخ د محمد ی زو ی داد ك ، دشیرك زوی سوها ن خا ن د میهما ن خان زوی زری د ناصر خان زو ی ولی خان ، دقتال خا ن زوی گلان دباری زوی عیسی گـــل دمردا خان زوی علی هیبت خان اودمحمد زو ی بید ل دگر یره لـــه ښاخ نه د صالت خان زوی میرخاك دسید امین له ښاخ نه دشیر محمد زوی گل شاه .

دمسعود دقبیلی دعلیز یو ټو ل ملکا ن چی دلته راغلی یو غوا ړ و دانگریز سرکار سره دزړه له کومی سو له و کړ و نو په لاند ی ډو ل اقرار کوو :

**لومړۍ ماده :**

موږ په ځپله خوښه دلتـــه حاضر شوی یو او د راتلونکي وخت له پاره دسر کار سره سرله کورواو کړی موده اوپه هغې به کلـــك ولاړ یو .

**دویمه ماده :**

که چیری په راتلونکی کی زمونږد قبیلی نه څوك دسر کار پـــه مقابل کی کومه بدی و ړی اویادکوم جرم مرتکب شی نوسر کـــا ر کولای شی زمونږ علیز یو نـــه پو ښتنه وکړی، مثلا که دعلیزا یــو له ټول ښاخ نه کوم یو دانگریزسر کار سره ددو ی په ملك کــی هر ډول بدی و کړی نو سر کـــار کولای شی له ټولو علیز یو به دهغې پو ښتنه او حساب و کړی او پــه دعه باب کولای شی دکار وانو نــو دنیولو له لاری اویا د همــــد ی اقرار نامی دنورو شرایطو دتعمیل له مخی چلند و کړی .

**دریمه ماده :**

که د بهلو ل زیو او شا مـــــن خیلو دښا خو نو نه کوم تن دسر کار په سیمه کی کوم جرم تر ســـره کړی او زمونږ سیمی ته پناه راوړی موږ به دهغه پناه په هیڅ و جه ونه منو او مرسته به ور ســـر ه ونکړو او نه به غلا شوی ما ل لـــه ځان سره و ساتو .

**ځلورمه ماده :**

که چیری دسر کار ی ر عیـــت نه کوم تن دسر کار په علاقه کــی کوم جرم و کړی او زمو ږ سیمـــی ته پناه راوړ ی نو هغه او دهغــه مال به مونږ هیڅ کله د خپلـــــی سیمی په حدود کی پری نږدو پــه تیره بیا د مچم بهادر قاتلان ،یعنی حواجه هوس ،ممریز او دین یــار گل ته به هیڅکله دااجازه ور نــه کړو چی زمونږ سیمی ته راشی .

**پنځمه ماده :**

مونږ د سختی دښمنی او وسلـــه والو کسانو دبرید اوجگړی ضمانت کوو ، خود غلاو په باره کـــــی دومره ذمه واری نشو احستلای چی هیڅ کله به و نه شی ، خودوسی ا وقدر ت په اندازه به تو ښـــبنی وکړ و چی دغه کار سر ته ونـــه رسیږی .

څو که چیری دسر حد په سیمه کی د علیز یو لخوا کــــو م زیا ن را مینځ ته شی لکه غـلا ،قتل یاکو م ځای ته اورور واچو ی نو د هغو په بدل کی سر کار ددی‌اختیار لر ی چی زمو نږ له بهیــر (کار وا نو نو) نه په لاند ی ډو ل‌جریمه واخلی .

د وژنی په بدل کی (۶۰۰روپی) دسخت ټپ په بدل کی چی کو م غړی ناقص او له کاره لوید لی وی(۲۰۰) روپی .

دعاد ی او خفیف ټپ په بـد ل کی د ټپ په اندازه .

داور اچو نی یاکو م بل زیان په بدل کی دهماغه زیان‌اورسیدلـی تاوان په اندازه .

**شپږمه ماده:**

دخپل اقرار در ښتیا وا لی ا وصدا قت په سبب خپل دوه تنـــه معتبر ه خلک د یر غمل پـه ډول دسر کار په خو ښه یود خپلـــی کور نی سره او بل په مجرد ډول‌د تانک یاد ښو په سیمه کی تر یوه کال پوری د سرکار په واک کـــی‌ورکوو که چیری دسرکار په ملـــک کی تر یوه کا له پوری دعلیز یـو له خوا کوم زیان مینځ ته را نـه غی نو یر غمل به خو شی کیږ ی‌که چیری په‌دغه موده کـی د سر ـ کار سیمی ته کوم زیان ور سید ه‌اود سر کار سیمی دمال حاو ند حق دپور تنیو شرا یطو له مخی ادا نه کړای‌شو نو بیا سر کار اختیارلری چی یر غمل خو شی کړی که نــه .څر نگه چی مونږ دسر کار ســره ژمنه کړی ده چی په راتلو نکی‌کی‌به په پور تنیو شرا یطو وفا کوو. نوځکه دغه غوښتن‌لیک دا قرارنامی‌په ډول سرکار ته وړاندی کیږی او هیله لرو چی سر کار زمو نږ ه‌دغه اقرار نامه و منـــی د (۱۸۶۱) عیسوی کال دجون (۱۹) نیټه .

عمر خان ،یارک خان ، ببر گل ،متین خان ، زار محمد خان ، علـی خان ، شجاع خان ، ولایت خان ،طوطـــــی خـا ن ، داو ک خا ن،

سو هان خان ، زاری خان،ولی خان ، گلان خان ، غنی گل خـان، علی هیبت خان ، بیدل خان.

دغه اقرار لیک نن‌ورځ پورتنیوکسا نو په خپلی خو ښی او رضا ـ یت سره دبنو دضلعی ډپټی‌کمشنرکپتان مزو بها در ، دټا نک نوا ب محمد شاه‌نواز خان بهادر او سلطان‌محمود خان تحصیلد ار په وړاندی

ولیکه او هغه وخت چی نومو ړی دپټی کشمنر قلم په لاس کی
وا خیست اودغه اقرار لیك یی و لوست نود کلمی او فا تحی تر دو
ستلو ورو سته یی هغه تصد یق او منظور کړ د (۱۸۶۱) عیسوی
کال دجون دمیا شتی (۱۹) نیته .

دشمن خیلو ، ښاخ د ملکا نو لاند ینی سو له لیك دپور تنی
شر حی له مخی :

پیر زال خان ، صا حب خان ، الله داد خان ، قمرالدین خان ،
معین الد ین خان ، شا دی خان ، عادل شاه ، عباس خان و بر ین
الدین ، سرور کمند خان ، منصب خان ، خواجه میر خان ، الله یار خان ، سید
میر او سید امین .

دغه دله خلك اصا لتاً د خپلی خوا اوو کا لتاً دخپل ښا خ دد غو
کسا نو شیر علی خان ، پردل خان ، خدا داد ، او حسین لخوا
(تصدیق کوی ).

## دبهلول زی دښاخ دملکا نو سوله لیك دپور تنی شر حی له مخی:

داحمد زوی تاج محمد ، داوری زوی لا تهی ، دالله یار زوی میسر ،
دمهربان زامن یار محمد او مسك ، دغر نا زو ی گد ی ، دمشعل زو ی
دهود ی ، دعلی زوی قایم خا ن ، دنامدار زوی برخوردار دوه ورو نه
درانی او شکر او دمحمد زوی پهوجړ دنانا خیلو دځا نګی دصورت زو ی
میرات او خوا جه ا حمد او (بیدا) دشنګی د ځانګی او دسمند
زوی قلندر شاه د بند خیلو له ځانګی دور سمند زو ی نانا
د مرصع له ځانګی ، او دشتر مان زوی دلا ئی .

پور تنی ملکا ن چی د بهلو ل زیو د ښاخ دی اصالتاً د خپلی خوا
او و کالتا دبهلول زیو دښاخ د نورو ملکا نوله خوا په تیره بیا
دلاند ی معتبر و کسانو لخو ادشنګی ځا نګی نه زبر دست ، سید
اونبی دنظر خیلو له ځانګی نه اخلاص او سوار او دملك شاهی
دځانګی نه فتح خان (تصدیقوی) .

ددغی سولی د شرایطو له مخی د وو واړو ښا خو نونه شپږ تنه
یر غمل چی د هر ښاخ نه دوه تنه دملکا نو و رونه او زامن تا کل
شوی وو سر کار ته و سپارل شول چی دهغو ی نه دری تنه
په بنو او دری تنه په ټانك کی میشته او داستو گنی ځا یو نه
ورکړ شو ل . چی مجرد و کسا نو ته دمیاشتی دولس روپی او د
کورنی خیښتنا نو ته (۱۸) رو پی تنخواه و تاکل شوه .

دسولې له تړون نه لا يو کال تير شوى نه وچي دبهلول زيــږ دښا خ دشنګي څانګى ملك چي نبي‌نوميده او دسولې په وخت کـــي حاضر نه و د کابل نه راستون اوپه فساد و نو يې لاس پورې کړاو

شو غلاو نه يې پر ته دپنجا ب درسالي پنځه کسه واښه ريبو نکى اويو غوبه دتانك په سر حـــــــدکى ووژل . ددغو جر مو په سبب

چې دبهلو ل زې ښا خ دشنګــــــى‌څا نګى له خوا را مينځه شوى و و او داسې ښکار يده چې دعليز يـوپوتيه خيلو شو تنو هم ورسره يو

ځاى شو ى وو . له دې کبله دد ى‌دواړو ښاخو نو خلك‌دسر کار پــــه سيمه کي ونيول شول ، او شمـن‌خيلو دد ى له پاره چې ددو ى‌سره

يې په دغه کار کي ګډون نه‌وکړى‌برائت تر لا سه کړ . په پاى کـــى

څلور نيم زره روپۍ ددو ى نــــه‌جرما نه واخستل شوه او ګناه يې

وبخښل شوه . خو ددغې جرمانـــى‌په سبب هغه څانګى چې ځا نونه بيګناه ګڼي ډېر نا راضه دي .

تر دوو کالو وروسته پر غمـل‌کسان رخصت شو ل که څه هم په اوس وخت کي ددو ى لوى‌جرمو نه‌اوغلاوى کمي شوى دي خــــو د

حيوانا تو اونورووړو غلا و ونـــه‌لاس نه اخلي له همدى کبلــــه د سولې دتړو ن دشرايطو له مخې دغلا شوو مالونو په بدل کي د دوى

قافلې نيول کيږى او دغه‌مال‌بير ته‌ورنه اخستل کيږى . او ددو ى‌حال داسې دى چې وايي قهر درويش برجان درويش .

## دبنود ضلعی په د ننه کی د ځینو ځایو نو د نیولو ځرنګوا لی

د احمدزیو د قبیلی، د ها نهــــی خیلو ، سپیر لی، بیزن خیلو، پایند ه خیلو ، عمر زیو ،سر لی خیلو اوبدین خیلو ښاخو ںواو داتمان زیو دقبیلی دبکا خیلو ، جانی خیلواود ملك شی ښا خونو چی دبنو دقبیلی د شاوخو ا اود غره په لمنه کی دتهل او ورغــړ په نامه سیمو دنیولو ځر نګوا لی او له هغه وخته چی نو موړی ځا یونه یی نیولی دهغوی مفصل بیان دلتــه راوړل کیږی . ځرګنده ده چی پــــه پیل کی د وزیرو قبیلی خلك پــــه عمومی ډول په شپنتوب او د ما لګی په خرڅرلو باندی بوخت وو اود لږو ځمکو نه پرته یی، چی هغه هم پــه غرنیو سیمو کی پرتی وی نــــوری زراعتی چاری یی نه تر سره کولی . تقریباً دوه سوه‌کاله وړاندی داحمد زیو اواتمان زیو د ښاخو نو ځینــــی ځانګو درمواو حیوا ناتو د ځر و لــو په منظور د ژمی په موسم کی دتهل او ورغړ دغره لمنو ته یی تګ پیــــل کړ اوپه هغه وخت کی دتهل پــــه شما لی او ختیځو سیمو باندی اکثــراً د مرو تو قبیلی قبضه لرله او همداراز دسندراوڼ ، دبك اودتهل پــــه نورو لویدیځو برخو سورانی بنوڅیو قبضه لرله . اود مرو تو ،سورا نیو او ختکو ترمینځ اکثراً په تهل باندی جګړی کیدی وزیر به یواز ی پــــه ژمی کی د مالونو د ځرو لو له پــاره دتهل په ځرځایو نو کی ما لو نــــه ځرول او دګرمی دموسم په پیل کــی دخپلو کیږ دیو او رمو سره بیر تــه

څرونو ته تلل . او ددوی د حیواناتو له څر ولو نه پرته کومې ځمکې او ملکیت نه لاره اود کر نیاویو ی سره یې بیخي مینه نه لرله . دوی ته ځمکې چې دتوچي دري په جنوب کې موقعیت لري اکثراً شاړې وې خو دمیري د څانګې دمالو نو له پاره څړځای ګڼل کیده تقریباً دوه نیم سوه کاله وړاندې چې له هغه وخت نه پنځه پښته تیر یږي داتمان زیو وزیرو ښاخو نو بکاخیلو اوجانيخیلو په ور غړ باندې په دایمي ډول قبضه ټینګه کړه او دوی لومړنی خلك و وچې دغه ځای یې د ځان لپاره په دایمي ډول ونیوه .

## د ورغړ اونورو سیمو دنیولو بیان:

ددغې سیمې دنیولو څر نګوا لی داسې دی چې څه موده د ه ځای ته بکاخیل او جاني خیل وزیر د ژمي په موسم د مالو نو دڅرولو له پاره راتلل او څرنګه چې دغه ځای دهغوی دغر نیو سیمو سره نښتي وله د ی کبله دبار کزیو دقبیلې د میري له ښاخ نه دالانومي دتو چي له او بو نه دبر لښتې په نوم یوه ویاله جاري او ځمکې یې دکرنې وړو ګر ځو لې او بیا دنورو ویالو په جاري کو لو سره یې خپله قبضه په دغه ځا ی لاپسې مضبوطه کړه، ترهغه وروسته دبکا خیلو وزیر و اوبنو څو بار ك زیو ترمینځ د توچي په اوبو اوڅړ ځایونو باندې دښمني مینځ ته راغلې او خبره دې حدته ورسیده چې وینې تویې شوې ددغو شخړو رامینځ ته کیدو په سبب جاني خیلو و زیر و ختیځ خواته ځان له بیل څړ ځای وټاکه خود میري ښاخ دخپل کبر ا وغرور په وجه له دوی سره داسې دښمني پیل کړه چې دجاني خیلو د ښاخ یو تن یې ونیوه او د هغه په زور ولویې پیل وکړ ، او هغه وخت چې هغه وویل چې زه جانيخیل یم نومیري خیلو ځواب ورکړ چې تاسې دجاني خیلو دښاخ خلك خپلې ږیرې مونډې کړې ترڅو ددې په سبب دبکا خیلو او ستاسو تو پیر وشي اوهغه وخت چې جاني خیلو دغه خبرو اوریده نود بکا خیلو سره یو ځای اودواړو ښاخو په ګډه دمیري له ښاخ سره په جګړه لاس پوری کړ چې په دغه جګړه کې د میري بارکزیو له خوا تقریباً شپیته کسه وو ژ ل شول . اودغو فسادو نه تر هغه وخته ا وږده شول چې ابدالي احمد شاه دبکاخیلو وزیر واو میري بنوڅیو ترمینځ د توچي اوبه د زراعتي ځمکو د خړوبو لوپه منظور داسې وویشلې چې دپسرلي په فصل کې یې تو لې او به وزیرو ته اوپه مني کې تو لې اوبه بنوڅیو ته ورکړل شوې، څرنګه چې مني دکر او دفصل اخستلو موسم و اوپه دغه موسم کې به وزیر غره ته تللي و، نوځکه دغه ویش دوزیرو په ګټه و ، خو د بنو څیو له پاره دغه ویش ګټور نو و .

د انگریزی سر کار د واکمنی په پیل کی د ښاغلی ادواردس په تجویز اودجنرال نکلسن په حکم دغه دودمنسوخ اوپه دواړو فصلو نو کی نیمی اوبه بکاخیلو وزیرو او نیمی اوبه بنوڅیو ته وټاکل شوی د بنو په سهیل ور غږ باندی چی کله اتمان زیو وزیرو قبضه وکړه نومحمدخیلو وزیر وداحمدزیو دسپیر کی ښا غ په ملگرتیا دداود شاه بنوڅی له ښاغ سره چی دبنو د سیمیپه شمال لویدیځ کی میشته وو دښمنی پیل کړه . ددغی دښمنی اصلی علت داوچی د پراچه دقوم یوتن چیدبنگښو د سیمی اوسیدو نکی و دداؤد شاه له بازار نه یو څه اسباب اومالونه واخستل اود کورمی له لاری بیر ته بنگښوته روان وچی په لار کی محمد خیلو وزیرو د داؤد شاه سیمی ترڅنگ په غرنیو سیمو کی دده مال لوټ کړ او دغه سودا گر د دا ؤدشاه له ښاغ نه مرسته وغوښته د داؤد شاه ملکانو چیغه وکړه او هغه غله یی تعقیب کړل اود محمد خیلو وزیرو نه یی څوتنه ونیول اوهغه یی دشوڅی یعنی تبادلی له پاره وساتل. د وزیرو دغلا ښوو اکثرو مالونو په ورکولو سره د خپلی قبیلی خلک خوشی کړل . تردغی پیښی څه موده وروسته داحمد زیو وزیرو دلو یاو مشهور ملك باره خان محمد خیل ورازه چی دبدرگی په ډول را ته دداؤد شاه ښاغ د خلکو له خواووژل شو ، ترهغه وروسته د وزیرو دقبیلی خلك راټول او دداود شاهپه سیمه یی یرغل وکړ له بلی خوا اکثر بنوڅی ، سورانی ، مندان ، عیسکی اوپتی ټول سره راټول او داود شاه دښاغ له خلکو سره په شرم کی شریك او دبنو څو دسیمی د کورمې ویالی تر څنګ د وزیرو له قبیلی سره په جگړه بوخت شول . په دغه جگړه کی بنو څیو ما ته وکړه خو وزیر و ته هم ډیر زیانورسیده، سره له دی چی وزیر قوی وو خو دښمن یی تر لیری ځا یو نو پوری تعقیب نه کړ . په دویم کال د منی دموسم په پیل کی و زیر د حملی په نیت سره راټول شول اوکله چی دداود شاه دښاغ خلکو دغه خبرو اوریده نو داسی تړون یی سره وکړچی هر یوتن که کوم زوی لری هغه هم باید له ځان سره دجگړی میدان ته راولی تر څو د تیښتی اراده ونکړی داخل به یا مونږ ټول دجگړی په میدان کی مړو اویا به له وزیر و سره فیصله کوونکی جگړه کوو .که څه هم دغه ډول زړور توب دبنوڅیو له عادت نه لیری و، کله چی غلیم دغه خبرواورید نو ویره ور ته پیدا او وزیر ملك چی ممکن نومیده هغوی ته خلك ورولیږل اود سولیغوښتنه یی وکړه اود وزیرو توره ( لښکر )دعیسکو خوا ته مخه وکړه او دداؤد

شاه د ښاغ خلکو په خپله ؤ یاله باندی یوه څوکړ جوړه اوله او پړنه په یی ګټه اخیستله ، دا ځکه چی دهغو وزیر و نږدی دوستان اوخپلوان چی په جګړه او نورو حالاتو کی دداؤد شاه دخلکو له خوا وژل شوی وونو هغوی به ٥ بندو نو دړنګولو او دویالی په قطع کولو اود اوبو دلږ ید لو په ذریعه به یی هغوی ته زیان ور ساوه ، یوه ورځ دوزیرو دقبیلی یو غړی په ویاله کی ووژل شو چی دهغه په سر ړو ځل بیا بدی پیل اوله دی امله چی دداؤد شاه د کشره ځانګه چی په تور ګو ندی پوری یی اړه‌لرله او دمشری ځانګی ترمینځ ښکاره دښمنی مینځ ته راغلی وه نو ځکه یی د وزیرو له قبیلی سره دمقابلی توان نه لاره .

دوزیرو دقبیلی دبهیدن خیلو سپیر کیو چی داود شاه د ښاغ د کشر له ځانګی سره ګوندی لرله نو ځکه د کشر ځانګی خلکو دوی ته له خپلی ځمکی نه چی پټها نو میده ور نکړه اود مشرانو ځانګی تقر یبا سل کاله وړاندی دهغی ځمکی نه خپله برخه دمحمد خیلو و زیر و ښاغ ته ور کړه . دداؤد شاه دسیمی لویدیځه برخه چی دغره په لمنه کی پرته ده دوزیرو په قبضه کی وه او په دغه ځای باندی هم ددوی دعوا ده په دغو پیښو کی دوزیرو لوی ملك بارخان نومیده اود وزیرو محمدخیلو د ښاغ ته و ،تر هغه شپیته کا له وروسته سرمست خان حسینی او سکندر خان موسکی‌اود بنوخیو دسپین ګوندی نور وملکانو د وزیرودمحمد خیلو دښاغ له پاره یو کلی د خواجه عبدالله صاحب زیارت ته نږدی دکور می دویالی دهافی ته نږ د ی‌دبنو خیو دکشر د ځانګی تنګو لو پاره چی دتور ګوندی سره یو شو ی‌وو جوړ کړ .او دهغه په ذریعه دکورمی دویالی غاړی دمحمد خیلو لاس ته ورغلی اوله ځلو یښت کاله راپه دی خوا دکورمی د سیمی دخنی په نوم ځمکی وزیرو آباد ی او داؤدشاه دخلکو ځینی ځمکی‌یی‌دګروی په ډول ونیولی .چی له هغه وخته تر اوسه ددوی په لاس کی دی ا ود تهل په شمالی او شرقی برخو کی خپلی رمی پیایی او تدر یجا‌یی‌د خپلی‌غلبی په ذریعه دختکو او مرو تو قبیسی په ښا نک ته مجبور ی کړی‌او دسورانیو او جندو خیلو بنو خیو ته یی سدروا ن،تهل، دبك اوپینګ‌سیمی یی دخه دوو تنو وزیرا نو په بدل لی او څه یی دیر غلو نو په دریعه برلاسه کړی .

ختك يى دچشمى او آرل نه په شا كړل اوسره له دئ چى د وئ
ټول پراخه تهل ونيوه خو بيا هم هغوئ ددغه ځاى وړى برخى كړ لى
اوپه پاتى برخو كى يى رمى څرولى او له دغه كارسره يى مينه لرله
او تقريباً له څلو يښتو پنځو سو كالو راپه دى خوايى دتهل د سيمى
دځينو ځينو ځايو نوپه كرلو شروع وكړه ، او داچى ولى يى پخوا كښت
نه كاوه ددغه كارله پاره دوه دليله موجود دى .

لومړى : دليل يى داد چى د وئ له كرنى سره زياته مينه نه لرله .

دويم : داچى په تهل با ندى ځينو نورو لكه مرو تواو ختكو هم دعوه
كوله او دوى يى په كراره نه پرښودل.

دانگريزى سر كار دواكمنى په پيل كى هغه وخت چى كرنيل اډ وارډ سن
چى دشمالى تهل په ټولو برخو باندى وزير وته درمو دڅرولو اجازه وركړه
اوورپسى دضلعو واكدارانود وز يرودقبيلى ملكانو ته غير آباد تهل چى
دسر كار ملكيت گڼل كيده د ځمكو دآبادولو له پاره وركړ اوپه دى ډ ول
يى دسر كار انتظا ميه د مخالفانوله خطر او حملى نه وژغوره له او په
تهل كى دغنمو اونخود و پيداوارزيات شول . ترهغه وروسته په دوى كى
دكرنى او زميندارى شوق پيدا او د وزيرو هر يوه سړى هيله من د ى تر
څو دتهل هغه برخه چى آباده شوې نه ده د آبادى له پاره له سر كار
نه واخلى چى له دغه كار سره ددوى مينه ښه ده او د تهل اكثره سيمى
د آبادى په حال كى دى .

**آبى يا نهرى ځمكى :**

د بارانى ياللمى ځمكو په بـاب وړاندئ معلومات ليكل شوى د ى .
آبى ځمكى دبنو په سيمه كى په تيره بيا دمنده خيلو سورانيو چى‌دوزيرو،
عمرزيو او نورو لاس ته ور غلى دى هغه يى عموماً د گروى په ذريعه
له بنو خيو نه ترلاسه كړى دى نه په زور اوددغه گروى علت په دغه
وخت كى اكثراً داو چى وزير و له بنو خيو نه ځمكى په گروى ونيولى
خو دوى به نه كرلى اواكثراً به پخپله دځمكو خاوندانو كرلى او كله به
چى وزير دژمى په موسم كى دغرونو نه ښكته شول نوله دوى نه به يى
يوه ټاكلى اندازه غله لكه جوار ا و نور دگروى دحق په سبب اخيستله او
هغه به يى غنيمت گڼله ا و ټاكلى اندازه غله به يى چى په دغه
ډول ترلاسه كوله هغى ته به يى اجاره ويله ، هغه وخت چى بنوخيو
د وزير وداساده توب وليده نو په لږو پيسو سره به يى ځمكى په اجاره
وركولى . خلك وايى هغه وخت چى وزير دلومړى ځل له پاره دبنو سيمى

ته راغلل نوداسی ساده وو چی کلــه چی یی دکور کمندو ښنه بو تــــی
ولیدل نوپه هغویی دتمباکو گو ما ن کاوه . اودگنی بوټی به یی په د ی
هیله درینبني سره له ځمکی راوایست چی ښایی په رینبنو پوری به یـــــی
د کوړی توټی نښتی وی . په داســی گروی دارانو باندی د ځمکی گروو ل
دبنو خیو د ځمکی له لاسه وتلو لــه پاره کوم خطر نه و .دمندو خیلــــو
په سیمه کی دعمرزیو وزیر ودگروی بل علت داو چی د درانیو دواکمنــی
په دوره کی قلنګ یعنی محصول تل دځمکی له خاو ندنه ترلاسه کیده او
هغه چا به ځمکه گرونیو لی وه سره له دی چی په ځمکه یی قبضه لــرله
د ځمکی له محصول نه معاف و. دچا وزی سروا نیو ملك چی چیاړ نو میده
یو ځل یی درانی حاکم ته یوه اندازه سوغات و مانه اوله هغه نه یـــی
وغوښتل چی دگرو شوو ځمکو محصو ل دی د ځمکی له خاوند انو نه وا نــه
خیستل شی . ددی مشوری د قبیلیدو په امید چیاړ خپلی اکثره ځمکــــی
ده وزیر ود قبیلی په خلکو گرو کړی، تر څو چی دمحصول د پیټی نه یـــی
اوږي سپکی شی ، له دی کبله چــی وزیرو په خپله په غرونو کی ژونــد
کاوه نو په هغوی باندی محصول نه وخود نورو ملکانو دنه ر ضایت لــه
امله دا نقشه عملی نه شوه اودتولو مقبوضه او گروی ځمکو محصول لــه
نوموړی چیاړ نه وا خستل شو ، چی د هغو په سبب دی برباد او ځمکی یی
هم له لاسه ور کړی اوله دغه وخت نه دوزیرو قبضه ور باندی ټینګـــه
شوه چی اکثراً اوس هم د دوی پــه قبضه کی ده او نوره برخه یـــــی
مشقتیانو ( بز گرانو) ته په لــبن ه بیه اجاره ور کړل شوی او ځینی یــی
څو ځله په څو تنو گرو شو ی د ی. اوس چی بنو څی دځمکی د خلا صــون
دعوی کوی څو وزیرو دغه ځمکه خپل پلرنی میراث بولی او اکثراً د گروی
له دعوی نه انکار او ځانونه ورځخه بی خبر گڼی او څر نګه چی په دغــه
باب بنوځي کوم قوی ثبوت نشـــــی وړاندی کولای اوهم دکرنیل اډواردس
داعلان دلومړی شرط له مخی چــی د (۱۸٤۷) عیسوی کال دد سامبـــــر
دمیاشتی له (۱۷) نیټی نه تر اجرألاندی ونیول شو ، وزیرو دعوه وګټله .
په لاندنی برخه کی یو جـــدو ل راغلی چی په هغه کی د وزیرو دځمکو
تخمینی اندازه چی دبنو دضلعی په دننه کی موقعیت لری او همدا ر ا ز
ددوی دمالیی اندازه ، د ملکا نـــو دانعام اندازه او نور ښودل شوی دی.
څو دځمکی په اندازه ،له دی کبلــه دڅادوړ نه ده چی دټولی ځمکی صحیح
اندازه معلومه نده .

دانګریزي سرکار د واکمنۍ په حدود وکې د وزیرو قبیلې د مقبوضه محکو فهرست

| شمیر | دقبیلې نوم | د محکود مالکانو نوم | به تخمینی ډول د محکو اندازه | | | د مالی شمیر | | | د بخشش شمیر | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | اباډي | ماري | میزان | مالیه | د پیسو نو له بابته | میزان | نغدي | د ملکانو لونګی |
| ١ | بزن خیل | میرا کبر جعفر او نور | ٢٤ | ١٠٠٤ | ٢٥ زره کناله | ٣١٥ | ٤٨ | ~~٣٣٣~~ ٣٢٢½ | ٣١½ ٨ آنه | • |
| ٢ | بیپرکی | نجیب خان | ٦٠٠٠٠ | ١٤٠٠٠٠ | دوه لکه کناله | ٢٦٢ ٦ پایي | ١٥ | ٢٩٢ ٦ پایي | ٧٦ ١١ آنه | • |
| ٣ | بدین خیل | رضا خان | ٧٠٠٠ | ١٣٠٠٠ | ٢٠٠٠٠ کناله | ٨٤ ٩ پاي | ٣ | ٨٧ ٩ پاي | ٨ | • |
| ٤ | پاینده خیل | بریم خان | ٨٠٠٠ | ٨٠٠٠ | ١٦٠٠٠ کناله | ٥٧ ١٤ آنه ٩ پایي | ١٤ ٨ آنې | ٧٣ ٦ آنه ٩ پایي | ٥ ٥ آنه | • |
| ٥ | سرکی خیل | لال میر شاه داد | ١٦٠٠٠ | ١٩٠٠٠ | ٥ زره کناله | ١٤٠ | ٦٠ | ٢٠٠ | ١٤ | • |
| ٦ | ماتی خیل | عظیم بند او نور | دوه لکه ٧٠٠٠ زره | ٩٢ زره | دوه لکه ٩٩ زره کناله | ٩٠٠ | ٢٢٤ | ١١٢٤ زره | ٩٠ | • |

| شمیر | د قبیلې نوم | د حکومت د ملکانو نوم | په تخمینی ډول د حکومت اندازه | | | د مالیې شمیر | | | د بخشش شمیر | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | | | اباديِ | شاړي | میزان | مالیه | د پسونو له بابته | میزان | نغدي | د ملکانو لونګی |
| ۷ | محمد خیل | فضل شاه | ۱۰۰۰۰ زره | ۷۰۰۰ زره | ۱۷ زره کناله | ۹۹۰ | ۰ | ۹۹۰ | ۲۲۲ | ۰ |
| ۸ | عمرزي | لنډ ن ك اويكي | ۲۱۸۳۰ زره | ۱۰۲۵۵ زره | ۳۲۶۸۵ ۱۶ مرله | ۴۸۰ | ۲۵ | ۵۰۵ | ۴۸ | ۰ |
| ۹ | تبه جات | نجیب میراکبر او نور | ۴۹۶۸ | ۱۰۰۰ | ۵۹۹۸۱ کناله | ۱۲۵۰ کناله | ۰ | ۱۲۵۰ | ۳۲۵ | |
| ۱۰ | تختي خیل | جان بهادر، حسین شاه او نور | ۷۰۰۰ | ۴۰۰۰ | ۲۲ زره کناله | ۴۰۰ | ۰ | ۴۰۰ | ۴۶۲ | ۳۲ |
| ۱۱ | سوده‌ي خیل | غاصم، زبیر، سردار اورضا خان | ۲۵۰۰ | ۲۰۰۰۰ زره | ۲۲۵۰۰ زره کناله | ۳۷۰ | : | ۳۷۰ | ۳۷ | ۳۲ |
| ۱۲ | نري خیل | حسن خان او نور | ۲۰۰۰۰ کناله | ۱۲۰۰۰ زره کناله | ۲۰۳۲ کناله | ۳۲۵ | ۰ | ۳۲۵ | ۱۵ | ۳۶ |
| ۱۳ | جاني خیل | ګلاب | ۵۵۰۰ | ۳۰۰۰۰ | ۵۲۵۰۰ کناله | ۵۸۰ | ۰ | ۵۸۰ | ۵۸ | ۵۲ |
| | ټول شمیر | ۳۹۴۹۹۷ | ۲۵۷۹۵۵ کناله | ۷۲۳۶۵۳ کناله | ۶۳۶۰ | ۳۵۹ | ۶۸۱۹ | | | ۹۱۰ زره بای |

## د کوچ او لیږ دید لو ځر نګوالی:

د احمد زیو ا واتمان زیو ښاخو نو اکثره ځانګی داپریل او می په میاشتی کی هغه وخت چی داوړی موسم پیل شی دسلیمان دغره سیمو شوا ل ، وانه، برمل او نورو سږ و ملکو نوته لید کوی اودمنی دموسم په پیل کی یعنی داکتوبر او، نوامبر پـــه میاشتو کی بیرته دغره لمنو ته راځی اوپه پورته اوښکته دواړو بر خوکی هر یوښاغ چی په ژمی کی دښو پـه شاو خواکی اوسیږی یوه اندازهځمکه لری چی نوموړی غرنی سیمه ددوی پخوانی ملکیت او تهل اونوری سیمی یی وروسته نیولی دی .

ددغو خلکو تګ راتګ چی ښکتـه او پور ته سیمو ته یی کوی او دهغه په ترڅ کی له ډیرو کړاوو نو سرهمخامخ دی دتر حم وړ د یمـــــاځو ځله په خپلو سترګو د دوی لیږدوولیده چی په دغه وخت کی ددویښځی له ډیرو کړاوونه سره مخامخ د ی ، دیوی قافلی سره د پاینده خیلـــو دځانګی یوه ښځه وه دهغی په شـا باندی داوبو یوژی ، پرسر باندی یی یو کوچنی هلك اوپه اوږو با نـد ی یی یوکوچنی تیرهم اینښ دل شو ی واو سره له دی یی هم خپل مالو نه ځارل اوهم کله به چ یی کو چنـی ماشوم ژړل نوهغه ته به یی شید ی هم ور کولی ، په همدی ډول دپنځو، شپږو کالو یو هلك د اوښانو دګلی پسی په لوڅو پښو روان و.کله چی اوښ له ده نه وتښتیده او د هغه په پښو کی به اغزی لاړه نوده بی لــه کوم ځنډاو فکر نه اغزی په جرئـت سره له پښی نه راوایست او پخپل کاربه بوخت شواو سره له ډیــری ګرمی دهغه سر لوڅ و. چی دغه حالات ددغو خلکو پیاوړ تیا او کلکوالیښیی دبالغو کسانو سره وسله اود ځرمنی کوډی چی په هغه کی اوړه وي لـــه ځان سره وړی اوهم په دغه حال کی خپل مالونه مخ په وړاندی بیا یــی دغه لیږد پ ه داسی سخته ګرمی کـی ترسره کیده چی معاذالله .

دوی دمزل په وخت کی کیږ دی،نه درو ی بلکی دکو می ونی تــر سیوری لاند ی کو زاره کوی ،دویسهار د لمر تر راختلو و ړا نـد ی په لیږد پیل اولږ تر لږهدو ر ځیشپږ کو سه لارو هی او دور ځــی په لسو یا یوو لسو بجو بانــد ی په یو ځای کیدمه کوی او خپـــل حیوانا ت او ځارو ی څرو ی دو ی د ګهیځ ډوډی تر لیږ دو ړانـــدی پخوی او دشپیډوډی دمزلترو هلووروسته تیاروی ، دوی دسفرپوخت کی تل دغنمو ، جوار ویا اور بشـوډوډی خوری او که چیـــری ډوډی پخه نه کړی نو خام اوړه هم خوری.

## دګیږدۍ دود اودستور :

دغه کوچنی خانګی‌د خپلی استوګنی له پاره یوه کوچنی کیږ د ئ چی اکثراً دوږو له تورو وږغنو نه جوړه شوی وی .

استعما لوی ، دو ی دغه ليږدۍ‌دضرورت په اندازه ددر ئ (سطرنجئ) په دوول جوړوی اوهغی‌ته په پښتو ژ به کیږ دی وا یی او په دوه دوله دی چی یوه یی‌دژمی اوسږ وپه موسم کی استعما لوی : چی لږه لویه ده اودوه‌لرګی لر ی . او دويم دو ل یی چی دګر می په موسم او دسفر په وخت‌کی تری استفاده کوی کوچنی‌وی .

دیو ی‌کیږدی بیه له اتو نه‌نیولی تر شلو رو پیو پور ی‌رسیږی دیخنی په موسم کی د کور تر لغړی نر او ښځی سره یو ځا ی دهغی په د ننه کی په ځمکه باندی‌ځملی .

مګر په هغه وخت کی چی چانوی‌واده کړی وی اوکله چی کوم ماشوم زیږیدلی وی او یاهغه وخت‌چی څوک دنوی واده‌شوق په زړه کی ولری دنور ی کورنی نه‌لږ لیری‌په هما غه کیږدی کی په بیل دو ل‌په داسی حال کی د کور ځینی شیان‌یی‌دپردی په دوول په، مینځ‌کی ایښی وی ځملی . سره له دی چی ددغو کیږدیو اوږ دوالی دځلورو ګز واو پلن والی‌یی له دریو ګزو نه زیات‌نه‌وی خو دژیا تاو ر ښت په وخت کی دامکا ن تر حده ځارو ی‌هم‌له ځان سره یو ځای دخیمی به دننه کی ساتی .

## دښځو او نارینه وو تر مینځ دکورنیو چارو ویش :

ښځی د اوبو د راوړ لو اودکوردنورو معمولی کارو نو نه پر ته دنارینه و سره دفصل په ریبو لواو ټولو لوکی هم مرسته کو ی او د وریو په څرولو او دسو ن‌دلر ګیو او د و ښو په راوړ لو بوحت وی همدا راز نارینه وو ته‌دوړ یو نه دجامو جوړو لو دنند ه هم ښځو ته ور په غاړه ده .دسفرپه‌وخت کی چی‌غره ته تګ راتګ کوی د اوبو د ژیو وړل را وړل،په‌حیوانا تو د بارو نو بارول او د اسبو نو وړل‌دهغوی‌په‌غاړه وی ،سره له دو مره زحمت او زیار ګاللو بیاهم دوی دیر ی بی قدر ه‌دی ان‌تر دی چی د ښځو په قاتل باند ی قصاص نشته .

## کسبو نه او عادتو نه :

په پیل کی د دغه قبیلی اکثراًخلك د غوایانو او رمو په څرو لو او دشنی مالکی په سودا کری بوختوو ، خو او س اکثر په کر نــــی ، مالداری او دوړ یو خر څو لواونورو کسبوو نو له لاری خپله گو زا ره کوی .

که څه هم ددو ی دپسو نووړی‌اعلی جنسیت نه‌لری دا ځکه چی په خراب او خیرن ډول تو لیـړی‌خو ددو ی پسو نه دغو ښو او چاـ غوالی له کبله دومره ښــــه دی‌چی لومړی در جه پسه یی لــــه اتور و پیو نیولی تر لسو رو پیـوپوری بیه لری . دوی دمالکــــی ، څارو یو ، سپنسینو او سپینــو ټوکرانو ، ژ یړو غوړ یو او نـــور و شیانو سوداکری هم په لړه اندا زه‌کوی . هغه هندوا ناو نور سوداـ کران چی دخو ست او دوړو سیمی‌ته تګ راتګ کوی . دهغو ی سره ځینی و زیر داجور ی‌په اخیستلـوسره بدر که کو ی او ځینی نوریی په لو ټ اولا رو هلو بو خت دی .او س د تیرو وختو نو په نسبت دوی دنورو ښا خو نونه ډیرښــــه‌چلند کو ی ، دو ی‌دعلم او پو هی له حاصلو لو سره هیڅ مینه نـــــه لر ی‌او س څو تنو ملکانو زمــــا سره وعده کړی ده چی موږ بــــه خپل ځامن د مروجه علومو په زده کړه بوخت کوو باید و لیـــــدل‌شی چی په دغه نیکه وعده به‌کله وفا وکړی .دوی په پوځ کی دداخلیدوهیڅ هیله نه لری ، له خپل ملك نه د باندی سفر کول په دوی کــی‌نه لید ل کیږی خو لږ شمیرو زیر شته چی د خپل ملك شاو خواتر څلو ښتو کوسو پوری یی سفر کړی وی . خو نورو ټولوتقریباً که خپل ملك نه د باندی سفر نه دی کړی .،اود سوداکری له پاره لیری ملکو نو ته‌هیڅ نه دی تللی ، په دی‌قبیله‌کی دنورو پښتنی قبیلو په شـــــان دنارینه وو د ناستی له پاره عـا م ځای یعنی حجره نشته ، دو ی‌عموماًدخپلی کیږدی یا کور په وړا ندا ی په ځمکه یا پوزی باندی کښینی‌اوهغه وخت چی کوم میلمه ور کــره راشی په تیره بیا دژمی په موسم‌کی په یوه بیل ځای کی اوربلو ی او دکور نا رینه هم دهغه ترڅنـګ‌کښینی کله چی د خلکو راټولید و ته کوم خاص ضرور ت و لیـدـل‌شی نو دو ی په یوه میدان‌کـــی سره را ټولیږی په دغه غونډه کی‌دوی چلم څکوی‌او دخپلو څارو یواو دکرنی دجارو په باب سره خبر ی‌کوی او بهلولزی ،مسعود دهغــو غلاو او لار و هنوپه باب خبر ی‌کوی چی تیری شوی دی اویا پــه

راتلونکی کی دهغوی نیت لری .مسعود ،وزیر دیر نصوار اچوی ، همدا راز عبدلی مسعود هغه وخت چی په خپلو مینځو کی سره راټول شی نو داوسپنی دتجارت په باب سره خبری کوی . داتمان زیودښاخ او داحمد زیو ، محمد خیلو ځانګړی شمیر خلك بنګ اوچرس هم څکوی .

په دوی کی هیڅ څوك شراب نه څکی او له زنا او دښځو سره له معاشقی نه ډیره کرکه کوی ،دوی در واغ وایی خو په دومره ساده ګی سره خبری کوی چی ترلږ فکرکولو وروسته د هغوی رښتیا او دروغ ثابتیدلای شی .کله چی ددوی نه کوم مجرم چی غلا او یا کوم بل کار یی کړی وی زمونږ له خوا ونیول شی او عدالت او محکمی ته وړاندی شی نو هغه دخپل خلاصون آسانه لار انکار کنی . او کله کله داسی هم پیښیږی چی دخپلی دفاع شاهد ، هغه څوك چی د غلا له مال نه یوه برخه ورکړل شوی وی، خپل خپلوان او حتی هغه څوك چی په غلا کی ورسره شریك وی هغه هم ښیی، او داسی شاهدان تل د مدعی غلیم په ګټه وی .

**خوراك :**

دوی دخوراك له پاره عموماً دغنمو ، جوارو او اوربشو له ډوډی او همدا راز دپسه له غوښو نه ډیره استفاده کوی او هم د جوارو له ډلدی نه ګټه اخلی او دغلو ډلی، کاروانو نه او هم ځینی خلك دسفر په وخت کی د کاك په نوم ډوډی خوری . کاك هغه ډول ډوډی ده چه لومړی یوه ګردی تیږه په اور باندی تودوی او بیا یی په اوړو کی پټوی او داور په خفیف انګار کی یی ښخوی او څه ساعت وروسته چی پخه شی نو را باسی یی او له تیږی نه یی رابیلوی او خوری یی، دکوړی شربت، اوپه شړمبو کی میده شوی ډوډی دهغوی خوند وره غذا ده . دوی هیڅ کله او ړه نه چڼوی. دهغوی غوره غذا دا ده چی غټی وریجی دڅیړو غوړ یو سره یو ځای کړی او بیا یی وخوری او دپسه غوښه او وازده دغنمو او جوارو له ډوډی سره یو ځای نوش جان کړی .خو دغه ډول ډوډی دخپلو ډیرو نږدی او قدرمنو میلمنو او شتمنو کسانو نه پرته نورو خلکو ته په کلو نو کلونو هم نه رسیږی . او دډوډی خوړلو ډول یی دا دی چی دکور ټول نارینه یا هغه کسان چی له دوی کره میلمانه وی د لرګی په

یوه ښانک ، کنډ ول یا خاور یــــن لوښی کی دودی اچوی که چیری ښوروا له شړو مبی اوشربت پیدا شی نو هغه په گده سره خوری اوهغه ډ و ډ ی چی له دوی نه زیاته شی نو هــغــه ښځی بیله خوری ، په دغه خلکو کی نر اوښځی په گده سره دودی نخوری که څه هم ښځه او میره وی .

همدا راز دوی دسهار له خوا لــه خوب نه وختی را پاڅیږی ، او دو ی دغه عادت یوازی دحقیقی معبــــو د دعبادت له پاره نه بلکی دا د دو ی معمولی عادت دی چی ټول نراو ښځی سهار وختی له خوبه را بیدار ا و ښځی د ډوډی په پخولو او نارینــه د حیوانا تو دڅرولو له پاره د لمـر ختو دمخه خپله ډوډی خوری اوپخپلو کارونو بو ختیږی . د ډوډی پخــول دښځو دمعمولی کارو له جملی نــــه شمیرل کیږی . یوه ورځ په خپلــه مؤلف ددوی تم ځای ته هغه و خـــت ورغی چی دوی غرونو ته د تگ لــه پاره چمتو وو، اوهلته یی له نږدی نه ددوی دوداور واجو نه و لیـدل ، ددوی په کمپ کی دمانښام له خوا هری خوا ته اور نه بل وو اود وزیر و هغه ښځی چی مخونه یی پټ نـــه و وډوډی په پخولو او نارینه یی پــه ډبر ینو تبیو باندی له نرمو اوړونه د ویشلو په پخولو بوخت وو ، خــو اکثراً داوړ بشو اوجوارو ډوډ یو په پخولو باندی مصروف وو . ددغــه ډوډ یو د بل والی له دوو اینچو نه کم نه وی او هغه وخت به چی دډوډ ی دواړو خواوی لږ وچی شوی نـــــو دسور کولو له پاره به یی په اور باندی اینښو دلی او هغه وخـــت به چی ډوډی ښه سره شوه . نو بیا بــــه دخوړ لوله پاره تیاره وه .

دمعمولی خوړ ونه پرته دد وی په غرونو کی دخرتجه * دو نی میوه چی دوی یی پرکی بولی وچوی اوبیا یـــی اوړه کوی اومفلس خلك یی دکاختی او تنگی په وخت کی اکثراً داور بشو داوړو سره یو ځای کوی او ډ و ډ ی تری پخوی او خپله خیټه ور باند ی مړوی اویو بل بوټی چی ببر یی بولــی دهغه پانی اوچوی ، بیا یی میده کوی اویوازی د شړو مبو سره یی خوری ددغه قبیلی په مقبوضه غرنی سیمه کی څو ډوله وچی اولمدی میوی پیدا کیږی چی دوی یی غنیمت گنی اوډیری یی خوښی دی چی دلته یی توپیــــر راوړل کیږی . لومړی هغه میوی چی یوالځی ملکان او ددوی نږدی خپلوا ن او دوستان یی خوری اوپاتی نوروته په سختی سره ترلاسه کیږ ی.مندته

---

* په اصل ( ٤٠٠ مخ) کی هــــم دغسی لیکلی ده خو مراد ځینــــی دڅیړی ونه ده زما په خیال دغــــه نوم به «خرلنځه »وی چی د څیــړ ی (بلوط) دونی یو ډول دی . (رشاذ )

یا زرد آلو چی په ځینو غرنیو سیمو کی په زیاته اندازه پیدا کیږی اکثراً د جوارو او اوربشو سره په یوه وزن اویا دغوایی سر بار یی په خلور وانو خر څیږی . همدا ر ازانګور چی دغنمو سره په برابر وزن پلورل کیږی خو پیداوار یی زیات نه دی . آلوچی او انار پیدا کیږی خو دجنسیت له پلوه د ستاینی وړ ندی، همدا راز بادرنګ د جوار وسره کرل کیږی ، کدود وزیرو لخوا هم په پاخه اوهم په خام ډول خوړل کیږی، په دغه سیمه کی هندوانی هم پیدا کیږی خو پیداوار یی زیات نه دی . جنغوزی یا زنغوزی چی په هند ی کی یی دنیزی په نامه یادو ی د چیلدونی میوه ده چی دغه ونه په غرو نو کی په خود رویه ډول موندل کیږ ی اوهر څوك یی په خپلو مقبو ضه سیمه کی د خر څولو اختیار لر ی، خو نرخ یی ډیر ارزان دی تردی چی په دوو دریو روپیو سره د جنغو زی دونو لوی ځنګل دمیوی تر لاسه کولو لپاره اخیستل کیدای شی او دخپل خوراك نه پرته دبنو بازار ته هم د خر څلاوله پاره راوړل کیږی . کشملی هم همدا راز میوه ده، تره کی یوه خوږه میوه ده چی تر یوالی هم لری ، دویم ډول غرنی میوه چی پخپل سر راشنه کیږی شمر توت دی او خلك یی په مړه خیټه خوری اوخصوصاً دپسرلی په موسم کی په زیاته اندازه خوړل کیږی اومسعود وزیر یی په اومه ډول هم خور ی. کور کوری دیوه واړه بوټی تورر نګی میوه ده چی تازه یی ډیره خوندوره وی اودغه خلك یی د کټك سره خوری شملنی یاشولنی چی دزیتونو د ونی میوه ده اوشیره وه مومانی او پشتو رګی اوانځری هم د دوی په غرو نو کی شته دی اود هغوی عمده خو راك تشکیلوی اود کور کوری د میوی په باب ویل کیږی چی د صحت له پاره هم ګټوره ده .

## پوښاك :

## د نارینه وو جامی:

نارینه د ډبل ټوکر پګړی چی او پړدوالی یی له دریو ګزو نه تراوو ګزو پوری رسیږی او عموماً تور یا نیلی رنګ لری په سروی. د تور ی خیلو ښاغ سور بی رنګه او پاتی یی سپینی پګړی چی ډیری زړی و ی په سره وی اود ملکانو اوشتمنو خلکو نه پرته نور ټول خلك په خپل ټول ژوند کی له یوی یا دوو پګړیو نه زیاتی نه شی په سر کولای اوځا د ر چی هغوی په خپله ژبه ور ته پټکی وایی اوله سپنهسین د ډبل ټوکر نه جوړ شوی دی اوپه غرونو کی دهغه په ځای سپین رنګه شړی استعما لوی

او ځینې ملکان لونګې استعما لــوي هغه کمیس، چې له ګوکر نه یې جوړ
وي چین دار او یا بې چینه وي چې هغوی په خپله ژبه خلقه یا اتیکو یې ورته
وایي له ډېلو وړیو نه په پراخ ډول جوړ شوی وی او خلقه اکثراً له طبیعی
رنګه وړیو نه په داسي ډول جــوړ یږي چې ګریوان او مخکینۍ برخه یې
په ژیړ واو سرو ور یښمواوسپینسیو باندې ښایسته شوی او عمو ماً دغه
کار ددوی دښځو له خوا تر سره کیږي اودغه وړینه انګر کی ته دوی پـه
خپله ژبه شړی وایي او اغو ستل یې په زیاته اندازه رواج لری . د دی
شړی بیه له یوی روپی نه نیولی تر د وو روپیو پور ې وی . د نار ینـــه
و پایجامه ( پرتوګ ) له یــو ډول سپین ډېلې ټو کرنه چې لږ پراخ وی
اغوندی خو دمسعود و غریب خــلــك خپله پا جامه له وړیو نه هم جوړوی
او ځنې معتبر ملکان هغه وخت چـی دحکامو حضور ته ورځی نو لــــو ی
ګهیره داره پرتګو نه هم ا غونـدی .

## د ښځو جامې :

ښځې عموماً یو ډول تور رنګـــه ټیکری په سروی چې له یــو را ز ډېل
ټوکر نه جوړ شوی وی .همدا را ز زړی ښځې له ډېل ټوکر نه جوړ ی
کوچنی دو پټی یا ټیکری چې خا کــی رنګ ولري په سروی . نازو لـی او
نازنینی ښځې چې دوی یې په خپله ژبه نیازمنی ښځې بولی او نـــوی
پیغلی د ټیکری په ځای یو ډول ټوکر چې جمې یې بولی او د سالاری پــه
ډول سری، زیړی او توری لیکۍ لری او یا یو ډول لونګی چې غاړی یـــی
وریښمینی وی په سروی او ښځینــه کمیس چې دوی یې خت بولی د و ه
ډوله وی یویی نجلانه خت او بــل یی ګر یوانه خت ـ چې لومړی ډو ل
یی پیغلی اغوندی چې له یو ډ و ل رنګینی اوډېل ټوکر نه جوړ شوی او
په ګریوان باندی یی څه کار نه وی شوی او هم چینداره نه وی . دویـم
ډول یی ، چې دواده شو ښځو له خوا اغوستل کیږ ی او اکثراً له د ډېــل
سور ټوکریا تور رنګه نیلی نه جوړ شوی وی. او ددغو کمیسو نودګریوان
شاو خوا اوپه ټول ټټر باندی اکثراً د سرو اوژیړو ور یښمو یا سپینسیو
کار شوی وی اودغه کارهم عمو مـاً ښځې تر سره کوی . اود ټټر نه لږ
لاند ی دټول کمیس ګرد چا پیــره تر هغه اندازی چین داره وی چې ټول
یی دیوه ګون په ډول ښـــکا ر ی

هغه کمیسونه پورته د ټټرخواته ډیر تنګ او تر هغه لاندې ډیر پراخ اود پیشو ازپه شکل ښکاری او اوږدوالی یی له غاړی نه نیولی تر پښو پورې رسیږی . دواده شو و ښځو پرتګو نه اکثراً له څو دولو توکرانو نه چی نیلی ، زیړ او آسمانی وی او هغه دوی په خپله ژبه بیګمی ، زیریرخیش او سور خش بولی جوړ وی . ددغو پرتګو نو د جوړ ولو ډول داسی دی چی اوږدوالی یی ترزنګنو پوری رسیږی چین داره وی او ښکتنی برخه یی تنګداو ډپا یجامی په ډول او له زنګنو پورته پراخ وی . د غر نیو او مفلسو وزیــر و ښځی تر زنګنو پوری یو ګز سو سی توکر دچین داری پټی په ډول پــه زنګنو پوری تړی چی دو ی پخپله ژبه ورته ور بلی وایی او له زنګنو نه پورته وی او دکشمیری ښځــو غوندی دکمیس نه دغه کار اخلی او دداسی یوه لوی کمیس په اغوستلو سره چی ترښنګرو پوری او پړدوالــی ولری پر توکـ ته چندان ضرورت هم نه لیدل کیږی .او پیغلی نجو نــی دیو ډول سپین دبل تو کر نه جوړ پر توک چی تر زنګنو پوری چینداره او پورته یی کهیره داروی اغو ندی.

په وزیرو کی دپیغلو نجو نواووا ده شوو ښځو تر مینځ ډیره ښکاره نښه داده چی پیغلی نجو نی سپین پرتګونه اوله سره چیټ نه جوړ ساده کمیسونه چی چینداره وی اغوندی په داســی حال کی چی واده شوی ښځی برعکس اوږده چینداره او کریوان لرو نکــی کمیسیو نه اوسوسی پرتګو نه اغوندی او دوی دځر منی څپلی اواکثراً دمزرو څپلی نر اوښځی یی استعما لو ی .

دوزیر و ښځی دسره یا نیلی توکر کمیسونه چی کریو انه او ټټر یــی خامــك شوی وی . ډیر خو ښو ی. احمدزی او اتما نزی وزیر د خمتاد بل او رنګه توکر دبنو په بازار اومسعود یی دټانك اوبنو په بازارو نو کــی اخلي ددوی په ملك کی پنبه نـــه کرله کیږی . اوددغه جنس توکر تل په بهر کی اخیستل کیږی .

**دساز او سرود سره مینه :**

دغه خلك دموسیقی له اصلیت نه په مطلق ډول خبرنه دی . خو بیا هم دځپلو زړونو دخوشحا لو لو لــه پاره په کی سندری سرود او نڅا رواج لری ، سرینده له لرګی نــه په بد شکله ډول جوړ یږی او پــه هغه باندی دکولمو دری تاره لګو ی او بیایوه وړه کمانی داس دوړیالکی له وینبټونه جوړ وی چی د سرینده دوهلو او غږو لو له پاره ور نــه کار اخلی که څه هم ددوی د سریندی غږ په زړه پوری نه دی خــو

دوی داسی مینه ور سره لری چــی واوری نو ټول خپل کارو نه پر یږدی که په کوم ځای کی دسریندی غــږ پیل ټوی ، اود سریند ی غږ وو ټکی او هلته سره راټولیږی اوپه نــڅــا له سر سره مطابق خپل حرکتو نــه اجرا کوی .

او داسی سندری او نڅا وی دواده‌له مرا سیمو نه پرته هم عام رواج‌لری او کوچنی اولویان بی له کوم شرم نه دغه کار ټوی اوهر چیری چــی سر ینده غږول کیږی نو ټول نڅاپیل کوی .له سریندی نه پرته د شپنــو اوغوبه وو سره یوه‌شپیلی هم و ی‌چی دوی یی دروی‌بولی او پنځه سوری دلر ی . د و ی په شپلــی باندی‌خپلی شوندی ږدی او پو کوی یی او په هغو سوریو باندی ګوتو ته حرکت‌ورکوی اوله هغی نه یو تأثیر ناك غږپورته کیږی اود شپیلی غږ ته شپا نه‌ا وغوبه را ټولیږی او نڅا ګانی ټوی ، په ودونو ئی له ډول سره یو ځــای سندری او نڅاوی کوی او شور ماشور جوړ وی .

لنډه داچی په دوی کی، سنــدری ویل او نڅا یو شور او شوق دی خــو ددوی دشوق‌په اندازه د هغوی‌سندری او سرو د خوند ورنه دی.

ددوی ښځی که څه هم سند ر ی وایی خو نڅا نه کوی . ډول اوسورنی دوم په ذریعه وهل کیږی . دوزیرو موسیقی آلات یوازی سرینده اودروی یعنی شپیلی ده .

## د وزیرو ښځی

ددغه قبیلی اکثره خلك پیاوړی، فعال اوجګی ونی لری .د وی‌ښکلــی ګرد مخونه ، ګردی سترګی‌او پرا خی تندی لری .

خو د خوی له مخی زودر نجه‌اوکینه کښی خلك دی ، همــــدا راز دوی ، ننګیا لی طابع او نا عاقبت اندیشــه خلك دی اودمسعود د ښاغ‌دپیژ ندلو له پاره یوه بله عجیبه نښه هــم موجوده او هـــغه دا ده چی ددوی دغاښو نو شمیر (۲۹) یا (۳۰)دانــی وی اودیر واړه واړه اوننوتی وی او بل داچی ددوی ددواړی اوږی لږ ی‌دمخ خواته ټږی ښکاری ددغه قبیلی اکثراً خلك خپل ویښته اوږده پــر یږدی چی تر اوږ وپوری رسیــږ ی که څه هم دوی دویښتو دپاك‌ساتــلو سره مینه نلری خود شږ شمو پــه تیلو او په ژیړو غوړوپی غوړوی. د اکثرو پوښاك اوجامی ډیری خیر نی وی ان ټردی چی ر نګ یی تور اوښتی وی .دوی صابون تقریباً نه‌استعما ـ لیوی او په هغو ی کی داسی کسان هم شته دی چی تریــوه کال پور ی خپلی جامی نه منځی .اوهغه و خــت‌د جامو کوم ځای ورته بیلمانځه‌ښکاره شی نوپه اوبو یی و ینځی.

## میلمه پالنه :

داخلك په ډیرمینه او شوق‌میلمنو او دوستانو ته میلمستیا ور کوی او
کله چی د میلمنو شمیر ترا تـــو کسونه زیات وی نو ضرور ور تـــه
پسه حلالوی . دمعتبر و میلمنو لـه پاره که شمیر یی تر دغی انـــدا زی
لږ هم وی پسه حلالوی او هغه تو له غوښه دکلمو نه پرته د سراو پښو
سره دوی ته پخوی تر څوهغوی پـه دی شکمن نه‌شی چی دغه پسه یـــی
د ځان له پاره حلال کړی دی، کلـه چی ډوډی تیاره شی نود هروا تو تنو
له پاره په یوه مجمه یا تالی کـــی‌غوښه راوړی اوږ دی یی او اکثراً د
کور خاوند په خپل لاس هر میلمه ته د غوښی ، وازدی اوهډو کی بر خـــه
په لاس کی ورکوی اود ښو روا سره په غوړو کی پخی وریجی د غنمـــو
ډوډی ( د ډور به دوسی په اندازه ) او یا دجوارو او کره ور کوی اودغـه
ډول خواړه زما دخپلو ستر گو لیدلی‌حا ل دی اود میلمستیا دادود ما هغه
وخت ولیده چی یوه ورځ په اتفاقـی‌ډول دسر کاری علاقی نه د بـانـدی
په غرنی سیمه کی میلمه شوی و م او علت یی داو چی یولوی او سابقه
دار مجرم دخپلی ډلی سره د جـر م دارتکاب په نیت دښو نه تقر یبـاً
شل میله لری دخیسور درلی په غر ه کی میشته شوی و.دهغه د تعقیب له
پاره (۱۸٦۳) عیسوی کال دفبرور ی‌دمیاشتی په نهمه نیټه د سلو تنوپه
ملکرتیا چی اکثراًپه کی‌ملکان، رعیت‌او نورو و دشپی لخوا دننه غر یـو
سیمو ته دسرکار دپلو یا نو پـــه لار ښو نه ورغلل اود څو تنومجرمانو
تر نیولو وروسته هغه وخت چـــی بیرته راستون شوم نو هغو خلکـــو
چی په‌دغه ځای کی زمونږ پلو یا ن وو دهغوی ملك زمونږ له پـــاره
میلمستیا جوړه کړه اوکله چی‌دهغه په غوښتنه ورغلو نوو مو لیدل چی
دپسونو لمونه په وښو کی پیچـــل شوی اوهمدا راز دپسونو نور غـړی
هم پاخه شوی وو، ماخپلو ملگرو ته د خوړلو اجازه ور کړه او څرنگه چی
له ماسره هم اکثراً وزیروو نـــو هغوی په خوښی سوه لمونه و خو ړل
او ډیر صفت یی کاوه او ددوی لـه صفت نه‌دغه خبره څرگند ید له چی
په دوی‌کی دا ډیر غوره خواړه د ی که څه هم په داسی نازك وخت کـی
زماتم کیدل بی ځایه وو خود هغـــو پلویا نو دزړ ونو دنه ماتو لو لـــه
پاره چی ددوی پلیو کسانو ز مونـږ دبیرته راستنید ولاره هم سا تلی‌وه
نو ځکه ماخپلو ملگرو ته هلته‌د تم کیدو اجازه ورکړه چی‌له دی کبلـه
هغوی ډیر خوشحا له شـــول . اودمیلمستیا او دتور ی ( لښکر کشی)
د خرڅ په وخت کی ددوی د توغ له مخی هر سړی خپله برخه ور کوی او

د کورنیو میلمنو له پاره په ځینو ښاغلو نوکی د توغ په حساب اوځینی یی په خپله خوښه اودوسی پـــه اندازه میلمه پالنه کوی . دمیلمستیا خواړه په دری ډوله دی:

لومړی . دمیلمه له پاره تر تولو قدر من او غوره خواړه د چاغ پســه حلا لول دی چی دلم سره یی پخوی اود وسی په اندازه وریجی ،ډوډی، جواری یا اوکره ورسره پخوی ، اوهعه نه دمژه مړی او یا ښوره وره (۱) وایی .

دویم : کوندی (۲) مړی :

دا هعه ډوډی ده چی د ژیړوغوړیو سره د غمو یا نورو شیانـو ډوډی خوری .

دریم : وچه مړی :

چی وچه ښیده هم ورته وایی.او ډوډی ورکوی خود میلمه له پار هیڅ کله چرګ نه حلالوی مګر اوس په کښینیو (ښکتنیو) وزیرو لی دچرګ حلالول رواج شوی دی . لنده داچی ددوی‌میلمه پالنه دمیلمه د حیثیت پوری اړه نری یعنی دا چی دقدرون میلمه ته ښه‌خواړه ورکوی او دویم ډول‌میلمه ته هغسی ډیرښه خواړه نه ورکوی ، کله چی نــوم مسافر د دوی سیمی ته راشی ،نو هغه وظیفه غواړی او خپله کوزاره وربا ندی کوی خو ځینی مسا فران‌د ملا یاا خوند په نوم هم ځانونه میلمه کوی . د میلمه له پاره پړستـــن او کټ کم ترلاسه کیږی خو قدرمنـــو میلمنو ته سطرنجی ورکوی چی په ځمکی یا پوزی باندی یی اوار وی دوی هندو میلمنو ته هم میلمستیا کوی . دوی میلمستیا ته پخپله ژبه میلمستیه وایی .

---

(۱) دښکره وری نه مقصد پسه دی .

(۲) کوندی مړی بی‌ښکره مړی :هغه ډوډی ته وایی چی پسه پـه کی نه وی .

## ددوی اقتصادی جوړښت :

وزیرو په لوړی سرکی په ډیرافلاس او فقر کی ژوند کاوه خو د انګریزی سرکار دواکمنی په وخت کی هغو ښاخونو چی دتهل ځمکی یی په ډیرامن سره کرلی دهغو اقتصادی وضعه ښه لښوه او آسوده شوی دی او ددوی نه پرته هغه څانګی چی په غرونو کی میشه دی په هغوکی هغه خلك چی په سودا ګری بوخت دی ښه اوسو کاله ژوند لری . او پاتی خلك په تیره بیا مسعود د ا وسپنی دسوداګرانو پرته نور تول دپخوا په شان نیستمن دی . کله چی دوی پخپلو سترګو وینی چی نیك چلنه خلك ورځ په ورځ شتمن کیږی نو ښایی دوی دغلاعادت پدوګنی ا و هغه کسب ته چی ددین او دنیاګټه په کی وی رجوع وکړی.

## دغلی دپیداوارو څرنګوالی :

ددوی په غرنی ملك کی غنم ،جوار ، اوربشی او وریجی پید ا کیږی په غرینو سیمو کـی ددوی ځمکی خورا لږی دی نو ځکه حاصل یی ددوی کلنی اړتیا نه پوره کوی.د ځمکو داوبه په تیره بیا نهری ځمکو د لږوالی په سبب یی اهمیت ترهغی اندازی دی چی یوه ویا سته ځمکه په منځنی توګه په (۲۲) روپـی پلورل کیږی .یوه ویاسته د دو ی ددودله مخی اوه لس ګزه رسی ته ویل کیږی . او دغه ګزله دووفو تو او دری انچو سره برابر دی اوهغه ځمکه اوږده ددغه رسی له اوږد ـ والی سره برابره او پلن والی یـی د ذکر شوی رسی نیمایی وی هغی ته یوه ویاسته ځمکه وایی ، دتهل په ځمکو باندی داحمد زیو د ښاخ ځینی څانګی قبضه لری او اکثـراء پکی غنم او نخو دکری او په منی کی په کی باجری ترهغی اندازی ډیری وی چی ددوی له خوارك لس چندو ته رسیږی اودهغی دخرڅلاو لـــه مدرکه ډیره ګټه ترلاسه کوی .

## مذهب او عقاید :

د وزیرو دقبیلی تول خلك اهـل سنت او جماعت اوحنفی مذهبـــه مسلما تان دی خو دمذ هبی علم زده کړه په تیره بیا دقران کریم لوستل هم په هغوی کی لږ رواج لری اوپه اسلامی عقایدو پوازی تش په نو م پوهیږی نه په علمی توګه خوسره له دی هم دوی ډیر مذهبی تعصب لـــــر ی د و ی مذ هب ته ډیر په درنه سترګه ګوری او

دنورو مذاهبو دپیرو انو مالو نــه نوتوی او روایی گنی ، همــدا راز دوی دانگریزئ سرکار د سیمــی دمسلما نا نو ما ل هم روا گنــی ،

که څه هم په دوی کی جوماتو نه اوملایان ډیر نه دي خوعوام خلــك یی لمونځونه ادا کوی په تیره بیـ اتمان زی وزیر او داحمد زیو دښاخ

دسپیر کی څانگه او دمــسعودو دعبدلی او علیزی څانگی د لمانځه په ادا کولو کی ډیر مشهور دی. هغــه اتمان زی چی دایمی استوگنځی لری، دوی جوماتونه هم لری . ویلای شوچی دغه خلك دلمانځه په تولــو

فرایضو، واجباتو، قواعدو ، رکوع ـ کانو او سجدو باندی په ښه ډو ل نه پوهیږی خوسره له دی هم تــرحپلی پوهی پوری فرایض ادا کوی. په دوی کی ملایانو ته ډیر قد را وعزت ورکول کیږی او دهغو دخوی

نه چی کومه خبره واوری هغه ته دسندپه اندازه اهمیت ور نوی .دوزیرو ملا یان ډیر پوه نه دی . وعظ او خطبه دعامو خلکو په مینځ کی په ښه ډو

ل نه شی اداء کولی ،ددغه ســـا ده خلکو تر مینځ تعویذ لیکو نــکی هم شته چی ددوی په غولولو سره له دوی نه شیرینی اوندرونه اخلی. د ملادند ه امامت او خلکو ته لومنځ ورکول دی . همدا راز دوی کوچیو هلکانو ته لمونځ ورزده کوی ، نکاح تړی او دجنازی لمونځونه ادا نو ی ملایان اکثره مړوته غسل ور کوی نود مړو زړی جامی هم دوی تر لاسه کوی .

ملا یانو ته دعشر غله او دمړ ی سقاط هم ورکول کیږی خو دوی اکثراً مفلس وی . ځینی ا سود ه حــا لــه خلك روژه فرض گنی خو ځینــی ناپوه وزیر د روژی دمیا شتی لــه راتلونه هم خبرنه وی . ما اوریدلی

چی داوارو سیمود او سیدونکـــو وزیر ونه یوتن د روژی د میاشتــی په پای کی غره ته لاړ او هلته یی وویل چی نن اختر دی د غرنیـــو وزیرونه یوه سړی وویل الحمدالله چی روژه تیره شوه او مونږ خبـــر هم نه وو پاك خدای دی په دی گناه زموږ غاړه بنده نه کړی . ځکــه چی مونږ دروژی دمیاشتی له را تلــونه خبرنه وو . نوله دی کبله معاف یو، کله چی ددغه قبیلی کوچیان غرنیو سیمو ته تگ راتگ کوی نو په هر ځای کی چی دیره اوتم شی دهماغه ځای په یوه پاك اوښه ځای کی یو ه

یوه ډبری ږدی او دجو مات علا مــه جوړوی او د دوی ملاچی له هغو ی سره ملگری وی په دغه ځــای کیاذان کوی، او په جماعت ســر ه لمونځ اداء کوی،ځینیوزیر ی شپانه او غرنی غوبه داسی هم وی چی هغوی

دلمونځ سبق نه وی ویلی په مجموعی ډول د دوی په باب ویلای شو چی هغوی په دینی چارو کی لږ معلومات لری.

## مالداری :

دوزیر و دآسانو په باب وړاندی معلومات وړاندی شول ، د هغوی نه پرته په دغه قبیله کی دپسونـــــو ډیری رمی سا تل کیږی په تیره بیاد احمد زیو ښاخ ډیر پسونه ساتی چی په ژمی کی تهل او په اوړی ئی د سلیمان دغره څوکوته ځی . نرپسونه اکثراء دبنو په بازار او دهغه ځای په شاو خوا کی پلورل کیږی اومیږی عموماً دنسل دزیاتوالی له پـــاره ساتل کیږی د دوی په ملك کـی دسپینو پسو ډیری رمی تر ستر گـو کیږی . دوی دپسو نو دوړیو دخـــرڅلاونه ډیره گټه ترلاسه کـوی . غربی وزیر د وزورمی هم سا تی ،حو په ننهل او اورو سیمو کی وز ی لږی دی .

دوی ځینی خلك اوښان هم روزی، په تیره بیا کوچیان چی دسفراولیږد په وخت کی په هغو باندی دکـــور اسباب او کیږد ی باروی . ددغـــو اوښانو نه دمالگی دسواد گری پـــه منظور هـــم گټه اخلـی . دوی د اوښا نو جو نگی (نربچیان) د خپلی قبیلی په سوداگرو او نورو کسانو پـلوری ، دوزیرو او ښان اکثـــراء واړه واړه بی مهاری او زیار گالونکی دی چی له کوچنی والی نه هغـــو باندی کته اچوی . دغه خلک گاو ـ میښی هیڅ نه ساتی ، حوغوایان اوغواوی په کی ډیری دی . خو ونی یی تیتی ، ډنگر اورنگونه یی تـــوروی ، د غه خلك وایی چی د ښو رو غوایانو او غواگانو ساتل په غرونو کی مساعد دی داځکه چی دغه غواگانی اوغوایی پیاوړی او فعالوی نو ځکه دوی توربخون سلنډاد نسل غوایا نو روزی به پمدرنه کوی اوهغه وخت یی چی بچی یو کلن شی نو هغه باندی بارونه وړی او دبی ر حمـــی خبره خودا ده چی په لنگو غوایانو باندی هم بارونه وړی یایی پـــه یوی کی تړی . دوزیرو په هـــر کور کی خرشته دی ، په تیره بیا کوچیان دتهل داوبو ژی ور باندی وړی او هغه څوك چی اوښان نـــه لری نو هغوی دلیږد او سفر پـــه وخت کی له خرونه دما لونو دوړلو له پاره گټه اخلی .

## د وزیرو سپی :

په دغه قبیله کی درمو او کـــورونو دساتلو له پاره دسپیو ساتنه ډیره رواج لری او دغه سپی ډیر هو ښیار او با خبره دی او غله پــه دی نه بریالی کیږی چی غلاوکړی. دغه سپی په جنگ ئی تکړه، وږی او لوړ قدونه لری خو په دغـــه قبیله کی د ښکارکولو مینه نشته.

## نارو ځـــی :

د وزیرو خلك سره له دی چی د ډوډی دخوړلو سره احتیاط نه کوی اوخیرن گرځی خودتازه هـــوا دمو جودیت له کبله په دوی کـــی

ناروغی لړه د. اود کوی لـــه ناروغی نه د مسعودو له ښاغ نه پرته دنورو وزیر و لــوی او و اړ ه‌لن مره کیږی . د دغی قبیلی پــه کوچنی ښاحونو کی دتبی نارو غــی شته اوهغه وخت چی دوی له گرم ملك نه غرنیو سړو سیموته یاله ، گرمو سیمو نه سړو سیمو تــه راځی نو هغوی دځو ورځو تبه کوی او داسی سړی ته تود او ســوړ وایی . په دوی کی دلویی تبــی او وچکی تبی ناروغی هم شته اود هر ډول تبی له پاره ژون اچول* یعنی دپوستکی اغوستل دی اوترتیب یی داسی دی چی هغه پسه چــی تازه حلال شی دهغه گرم پوستکی لوخ ناروغ ته اغوندی چــی دوړیو خوایی د باندی وی . که نــاروغ د دوویا دریو پو ستکو په اغوستلو ښه نه شو نو نور پوستکی هــم وراغوندی ترهغو چی یا ناروغ مړ شی او یایی تبه پریږدی .خواکثراء دپوستکی په اغوستلو سره جوړ یږ ی او ظاهراء ددغه کار گټــه په دی کی ده‌چی وجود خولی کیږ ی‌او تبه ورکیږی او تر څــلو رو پهرو **پوری یو پو ستکی اغوندی که څه هم دی له آز اد ی هــوا او اوبو نه پر هیز وی خوزیردپرهیزډیر مراعات نه کوی . ددی نه پرته دتبی څخه دجوړید لو په منظــو ر دجمال کوټه *** جلاب چی مسهل دی هم استعمالوی او د موســمــی تبوله پاره دغنمو اوړه په اوبوکی گډوی او په ملایم ډول یی جوړوی او په اور باندی یی پړدی اوپــه هغه کی کورکمن او تور مرچ اچوی او بیایی گرم‌گرم خوری چی د هغو په اثر وجود گرم او خولی کیــږی اوپه دغه ډول تبه لیری کیږی .

مسعود له و چکی تبی مـــړی تبی او دکوی له ناروغی نه ډیــر ویریږی او په کوم کلی یا کیږدی کی چی دغه ډول ناروغی موجو ده وی هلته تگ راتگ نــه کــوی .دوزیر و خلك دسادگی په سبب د پیریانو له سیورو نه ډیر ویریږی او داکثر و ناروغیو علت دپیریانو اوښاپریانو سیوری گنی او د هغو ی له صدمی نه د ځان ساتلو اودهغوی ددفع کولو له پاره حیله گــرو اوتعویذ لیکونکو ملایانو ته ر جــوع

---

* په اصل (۴۸۰مخ) کی هــم دغه کلمه ژون لیکلی ده یعنــی ژی ترو اودمخه راغلی ده خودغــه کلمه ماژون اروېدلی ده چی‌واوتر ژی دمخه دی په منگلو کی متل‌دی« تاړلمی ته خپل وژن بــلا دی» ناصران یی وزن بولی . (رشاد)

** یو شبانه روز اته پهره‌دی‌اوهر پهر دری ساعته ـ څلور پهر دوولس ساعته کیږی . ( رشاد )

*** دجمال کوټی سهی نــو م جپال کوټه ده په پارسی یی «دند» بولی انگریزی نوم یی eroton دی

کوی او هغوی ورته تعویذ و نــه لیکی او تعویذونه په څرمنو کــی
پوښی لیږی اوبیایی په غاړه کــی اچوی په وزیرو کی به داسی ډیر
لږ خلك وی چی تعویذونه لــری .او دهر سړی په غاړه کی څو څو
تعوید ونه وی اوپه هغو بانــدی عقیده لری . تعویذ لیکونکی ملایان
اکثراء په یوه تعویذ باندی یــوه روپی او څلور آنی نذرانه یـــا
شکرانه اخلی او دوی په دغه عمل باندی وزیر معتقد ساتی .

**کالــونــه :**

---

دهغو دبرونه پرته چی اوسپنه ورنه لاس ته راځی ، تراو ســه د
دوی په سیمی کی دبل شی کــان خرکند شوی نه دی . د اوسپنی د
استخراج طریقه چی مسعود اووزیر ورنه کار اخلی په دی ډول ده چی
د مکین او بابړ و دسیمی غردمالکی دکان په ډول کنی او یوډول تــور
رنګه ډبری چی ډیری څلیږی او هم درووند والی یی د نورو د برو پــه
پرتله زیات دی راباسی او بیادغه تیږی میده کوی او هغــه د هوا او
ارزښت نه دساتلو پــه منـظور دیوی کردی خیمی یاڅپری تر لاندی
دکان کی چی دوی یی مندو بــولی اچوی او دچونی دوړوتوتو پـــه
شان یی جوړوی او په دغه ځای کی دوی برخی د ډبرو سکاره او دریم
برخه نو موړی معد نی تیږی اچـوی او دڅرمنو دبنیو په ذریعه هغو ی
ته ډیر زیات تاوا و حرارت ورکوی او هغه وخت چی ډیر زیات حرارت
ورکړشو نو اوسپنه دختی پـــه په شکل اوړی او سور رنګ غوره
کوی او له خپل ځای نه ښکتــه تونیږی چی د اوسپنی دساما نـو
الاتو په ذریعه یی کثا فت او اضـــا فکی مواد لیری اوله اصلی اوسپنی
نه بیلیږی . دلومړی تاو اوسپنی ته متره وایی چی دشلو سیروبیه
یی یوه روپی ده اوبیا په بلدوکان کی حرارت ورکول کیږی او پـــه
پخی اوسپنی بد لیږی چی بیا ورڅخه کشــــــی چـــــی د و ی یی په
حپله ژبه کرکی یا پالی بولــی جوړوی . او دلس سیرو نـــرخ
یی په غره کی یوه روپی وی .دغه کانونه دیوه خاص سړی په واك کی
نه دی اوپه هر ډول چی مسعو دوزیر یی وغواړی کار ور څخــه
اخلی ، خو دوی په خپلو مینځوکی کانونه او دهغو ځایونه ویشلــی
دی . ا و هغه اوسپنه چی په مکین کی لاسی ته راځی . عموماء داور ـ
کون په سیمه کی خرخـــیږی اوهمدا راز دغه اوسپنه دمن زی ښاغ
له حوا په ټاك او دیر ه اسمعیل خان کی او کوکړی بهلولی زی او استانی
شهابی خیل یی دبنو ضلعی دمروتو په سیمه کی پلوری او د مسعـودو د

په تخمیني ډول د قبیلو شمېر

لاندې یو فهرست کتبل شوی دی چې د هغې له مخې د مرزوه لوي ښاخ شمېرکېږونه

د استوګنې ځایونه او د ملکانو نومونه ښودل شوي دي

لومړي : د اتمانزیو د قبیلې په باب تفصیلات

| شمېر | د مشهورو او عامو نیاخونو نومونه: د پورتنۍ نیاخونو نومونه | د مشهورو او عامو نیاخونو نومونه: د لاندې نیوخانګو نومونه | د وسلوالو کسانو شمېر | د ملکانو نومونه | د استوګنې ځایونه | کسب |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | | محبیت خیل یا محمود خیل | ۳۵۰۰ | | حسن خیل په کېټوکې د وزي خیلو د خیسوډ ري په سرکې او نور په خواره واره ډول | کرنه ، د مالګې خرخول او بورک‌خیل کراس کاروونه |
| ۲ | | منظرخیل یا منځرخیل | ۶۰۰ | بلال ، قمرالدین | په خواره واره ډول سره ستوګنه لري | په کرنې او مالدارۍ بوخت دي |
| ۳ | | مدخیل یا مداح خیل | ۲۵۰۰ | آدم خان مساخیل | د ګوپه غره کې چې د وزیرو په پورتنۍ برخه کې موقعیت لري | ،، |
| ۴ | | توري خیل | ۳۰۰۰ | ایخزکتي ، میرحسن معروف شیخ عبدالرار اخوند او نور | په شهره تله او دره خیسور کې | کرنه ودانیوو لرګو پلورل ، خوزر اړن او ورسل خیل په غلاوو بوخت دي |

| نمبر | د مشعورانو پښا خونو نومونه: د بورتنی پښا خونو نومونه | د مشعورانو پښا خونو نومونه: د لاندنیو څانګو نومونه | د وسله والو کسانو شمېر | د ملکانو نومونه | د استوګنې ځایونه | کسب |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵ | | کابل خیل | ۳۲۰۰ | ملک د...ین، رحمت شاه عالم شاه او نور | د کرمی د رود پخاره دغره پعد ننه کی استوګنه لري | په ګرنه او غلا بوخت دي |
| ٦ | | ملک شاهی یا ملک شی | ٤۰۰ | صالح | اکثره د میرانو د تمانسی پسیمه کی چی د ګیډ غره په لمنګو قسمتونو اوسېږي | رر |
| ۷ | | جانی خیل | ۱۰۰۰ | الهداد، بګی رضا داد، میرشاه، کریم خان | رر | په کرنی او د لرګیو خرڅولو بوخت دي. |
| ۸ | یکاخیل یا یکه خیل | سروپی خیل | ٤۰۰ | قاسم، سردار | د ورغر سیمه کی استوګنه لري | د کرنی په چارو بوخت دي |
| ۹ | | تختی خیل | ٦۰۰ | حسن شاه، سردار جنګ بهادر | رر | ررر |
| ۱۰ | | نری خیل | ۵۰۰ | حسن خان، کریم خان کته مېر | رر | په کرنی او غلا و بوخت دي |

ټول شمېر ۱۵۷۰۰

| شمېر | د مشرو او وړو پښتنو نومونه: د پورتنی پښتنو نومونه | د مشرو او وړو پښتنو نومونه: د لاندنیو څانګو نومونه | د وسله والو کسانو شمېر | د ملکانو نومونه | د استوګنی ځایونه | کسب |
|---|---|---|---|---|---|---|
| ۵ | | کابلی خیل | ۳۲۰۰ | ملک د من، رحمت شاه، عالم شاه او نسور | د کرمی د رود پر غاړه د غره په دننه کی استوګه لري | په کرنه او غلا بوخت دي |
| ۶ | | ملک شاهی یا ملک شی | ۴۰۰ | صالح | اکثره د میانود تمانسی په سیمه کی چی د کرمی د غره پلمنکو قسمت کی اوسیږي | رر |
| ۷ | | جانی خیل | ۱۰۰۰ | الهداد، بکن رضاداد معمرشاه، کریم خان، | رر | په کرنی او د لرګو مخرڅولو بوخت دي. |
| ۸ | پکاخېل یا پکه خېل | سروپی خیل | ۴۰۰ | قاسم، سربدار | د ورغر په سیمه کی استوګه لري، | د کرنی په چارو بوخت دي |
| ۹ | | تښتی خیل | ۶۰۰ | حسن شاه، سردار جنګ بهادر | رر | ررر |
| ۱۰ | | نری خیل | ۵۰۰ | حسن خان، کریم خان کته مشر | رر | په کرنی او غلا و بوخت دي |

ټول شمېر ۱۵۷۰۰

د ریم ؛ د مسعود وزیرود قبیلی په باب تفصیلات .

| نمبر | د مشهورو او هم ښاخونو نومونه | | | د وسله والو کسانو شمیر | د ملکانو نومونه | داستوګنې ځایونه | کسبونه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | د پورتنی ښاخونو نومونه | | د لاندې ښاخونو نومونه | | | | |
| ۱ | علی زي | بوتیه خیل | ندابی خیل | ۱۲۰۰ | ګلان ، عمرخان ، زربلند میرپاباو | د بابړ ښغرها و نورو ځایونو کې په متفرق ډول اوسیږي | داوسنی خرخلاو . غلا او لږ څه بګرنه بوخت دي |
| ۲ | رر | رر | من زي | ۲۳۰۰ | د جنګی خان زوی عمرخان سرفراز ، یارك | د غره په د ننه کې په متفرق ډول | داوسنی خرخلاو د بوزیو خرخول او د کرګیو خرڅونکی |
| ۳ | رر | مشمن خیل | جیار خیل | ۶۰۰ | برزان ، بردل ، میناد ین یاسین الدین | په شهیر او میلان کې | د اوسنی خرخول |
| ٤ | رر | رر | خنی خیل | ۵۰۰ | | په شهیرکی او هم په خوارمواره ډول اوسیږي | رر |
| ۵ | رر | رر | بدین زي | ۸۰۰ | | رر | رر |
| ٦ | رر | رر | ګلی شاهی ګلی شی | ۱۰۰۰ | قمرالدین ، میرحسین ، شودي | په غورلام نومی ځای کې چې د کانی ګورم نه ختیځ خواته موقعیت لري ـ | رر |

| شمیر | د مشهوروا و موشاخونو نومونه | | | د وسله والو کسانو شمیر | د ملکانو نومونه | د استوګنی ځایونه | کسبونه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| | د پورتنی پښا خونومونه | | دلاندینیو خانګونومونه | | | | |
| ۷ | بهلولزي | هملخیل | عبدالی | ۲۵۰۰ | زبردست ــ سعید | اکثراً په مکین کی اوباتی په خوارومارمد وله استوګنه کوي | داوسپنو خرڅول اود کرنی چاري |
| ۸ | رر | رر | ملکشی | ۸۰۰ | اخلاص او شوازي | دکانی کورم نه پورته په غره کی اوسیږي | داوسپنو خرڅولواو قلاوبیاندی بوخت دي |
| ۹ | رر | رر | نظرخیل | ۹۰۰ | فتح خان | رر | اکثراً په کرنه بوخت دي |
| ۱۰ | رر | رر | بلند خیل | ۳۰۰ | دمشعل زوي میر بابا | مکین | په کرنه بوخت دي |
| ۱۱ | رر | تانوخیل | هیبت خیل | ۱۴۰۰ | تاج محمد میرغضب جهانګي | په خوارومارمد ول اوسیږي | په کرنه او غلاوو بوخت دي • |
| ۱۲ | رر | رر | عمرخیل | ۲۰۰ | شاه دیدار | مکین | په کرنه اخته دي |
| ۱۳ | رر | رر | کوکري | ۶۰۰ | شاه مراد درانی پخپ ــ شیراز | په خواره وارمد ول اوسیږي | داوسپنوپه خرڅلاوکرنی او غلا بوخت دي |
| ۱۴ | رر | رر | ورمرخیل | ۲۰۰ | ګل میر | رر | رر |
| ۱۵ | رر | رر | شنګی یا اپشنګی | ۱۲۰۰ | دمانګی زوي نبي او نور | اکثره ذ تاك پهدرمکی اوسیږي | داوسپنی خرڅول او په بیروغلاوو بوخت دي |
| | تول شمیر | | | ۱۴۵۰۰ | | | |

نوټ: د دي تخمینی شمیر لمخی چی په فهرستکی کښل شوي دي تول ( ۳۹۹۵۰ ) تنه دي چی د هغوله جملی نه داتحانزي بناخ ( ۱۵۷۰۰ ) تنه داحمدزي ( ۹۷۵۰ ) تنه او د مسعود د ( ۱٤۵۰۰ ) تنه دي • که څه هم دا شمیر صحیح نه ښکاري خو بیا هم تقریباً صحیح دي ځکه چی د دي شمیر پهباب د اکثرو ملکانو د نظریو والی موجود دي د غه نته چی په فهرست کی کښل شوي د مد هغو ښاخونو پهتمونزته را ښیي چی د بنوخلمی په سرکاري حدود کی ځمکی لري • د دي شمیر څخه څرګندیږي چی په دي لوی قبیله کښی یوازی په ۱۷۵۰ تنو باندی انګریزی سرکار قبضه لري او اکثراً د ژمی په موسم کی غرونو ته ځی • د دي قبیلی د تو لووګړو شمیر تقریباً یو لکو تنو ته رسیږي چی شمیر ری مخ په زیږدو دي •

ښاغ سوداګر خلک وایی چې دوی په کال کې تقریباء دپنځوسو ز روروپو په بیه اوسپنه استخراج او په خام او پاخه ډول یی خرڅوی .

په مکین کې دعبدالی د ښاغ خلک له اوسپنې نه هرکاری، کوزی تبی ، پیالی اویومونه جوړوی اوشاو خوا سیمو ته یی دخرڅلاو له پاره وړی او همدا راز دغه ډول لوښی او اوسپنې د اورګون په سیمه کې دپرملی قبیلی خلک اخلی او په غزنی ، کابل ، کندهار او د غلجیو په سیمه کې یی پلورې دمسعودو وزیرو خلک ا کثراً د اوسپنې دخرڅولو له لاری ګوزاره کوی او داوسپنو سودا ګران دنورو خلکو په پرتله شتمن او هوسادی.

## ګربز ښاغ :

د وزیرو د قبیلې د نسب له شجری نه ښکاری چې د سلیمان زوی وزیر چې دوزیرو دقبیلی لوی نیکه دی دوه زامن لرل چې له دوی دواړه ونه خودی ددریو زامنو پلار و چې تر ټولو کشر یې مبارک و او دمبارک زوی ګربز نومیده چې چې دده اولاده دګربز په نامه یا د یږی .

که څه هم ګربز د وزیرو دقبیلی یو ښاغ دی خواوس د ملک ددوداودستورله مخې له وزیرونه داسې جلاد ی چې مغوی باید له پا تی و ز یرو نه په جلا ډول ذکر شی، په پیل کې ګربز دمسعود و وزیرو سره یو ځای دمغو دغره په شمالی برخه کې او سیدل لکه څنګه چې دشکتو په دره او دبابړو په غره کې تراوسه هم ځینی سپین ږیری و زیر د ګربز و دوخت د اوبولګولو او دمغوی د کورو نو نښی نښانی ښیی او تقریباء تر دوو سوو کالو وړاندی دغو خلکو له دغه ځای کوچ وکړ او ددوی دکوچ علت د اوچې دګبر په غره کې په لومړی سر کې دبیټنې دقبیلې دوړکاړی ښاغ میشته و ،ګربز و په دوی باندی یرغل وکړ، مغوی یی قتل عام او دګبر غرییی په خپله قبضه کې راوست . څه موده وروسته په هماغه ډول چې د بیټنیو په برخه کې ذکر شول دبیټنیو دکجین ښاغ په ګر بز ویرغل وکړ او ترسختو جګړو ور- وسته ګربزو ماته وخوړه او دګبر غربیا دبیټنیو لاس ته ورغی او څرنګه چې ګربز په دغو جګړو کې کمزوری شوی وونو له دی کبله د وزیرو دسیمی په لویدیځ اوشمالی څنډو کې د خوست دسیمی جنو ب ختیځ او ددوړو دسیمی په شمال لوید یځ غرنیو سیمو کې میشه شول،

ددوی په دغه غرنی سیمه کې دژمی په دوو میاشتو کې واوره او ــ ریږی ، او څرنګه چې غرنی کر بزاکثراء دپوز یونه جوړوسوو خیمو کې ژوند کوی نو ددغو واو رو په اثر ددوی ددغو خیمو ښکتنی برخې تر دریو یا څلورو فو ټو پورې خرابیږی ددغه ښاخ خلك غر یب مګر جنګیا لی دی . دوی د خوست په جنوب ختیځه برخه باندی یرغل کړی او دخوست لږه برخه یی په خپله قبضه کې راو ستلی ده ، نو ځکه اوس دکابل حکومت د واك منلو نه پرته یوه جریب ځمکه باندی په هر فصل کی دوی کابلی روپی مالیه ورکوی . او همدا راز دخوست حاکم دهر کورنه د لوګی په نامه دوی روپی محصول هم اخلی .

دکربز و پوښاك او دود اودستور اکثراء دخوست د نورو اوسیدونکو قبیلو په شان دی خو ددوی فزیکی جوړښت ښې ، څیری او رنګونه یی د وزیرو په شان دی. کربز دپاتی وزیر و سره په کټه او تاوان کی شریك نه دی خوهغوی خپل ورونه ګڼی . دوی دمخه دوزیرو په نرخ عمل کاوه خو اوس یی نکوی .

ویل کیږی چی ددغه ښاخ دوسله والو کسانو شمیر (۱۰۰۰ ) زر تنه دی . دوی عموماء د کرنی او مالداری په چارو بوخت دی خو ځینی یی سودا کری کوی او د بدرګی چاری هم ترسره کوی دوی بی علمه او نا پوهه خلك دی دغه خلك دخوست دسپین ګوندی او تور ګوندی د شمیر په وخت کی په سپین ګوندی کی شمیرل شوی دی.

## د وزیر و دلالی یالیلی ښاخ :

ددغه ښاخ دوسله والو کسانو شمیر پنځه زره کسه ښودل شوی دی چی د سپین غره په شمال او لوید یځه برخه کی اوسیږی. دا خلك هم دوزیرو د قبیلی یو ښاخ دی چی دخپل پاتی برخی نه بیله شوی ده او ددوی دلیږد په باب داسی ویل کیږی چی لالی ابن وزیر له خپل پلار سره دشوال په غره کی اوسیده چی اتفاقاء دهغه له لاسه دشیتك د اولادی نه کوم یوتن ووژل شو ، نو په دغه وخت کی دی دبدل له و یری د خو ګیانیو قبیلی ته ورغی او هلته یی واده وکړ چی اوس یی اولاده دی حد ته رسیدلی ده ،دویم روا یت داد ی چی نو موړی یوه ښځه چی لیلانو میده غو لولی او ښیښتو لی وه او په لاره کی ده په دیر زړور توب سره خو تنه شینواری غله چی دده د معشوقی نه یی د شرارت په منظور او به غوښتلی وی، ووژل، او له هغه لیلانه دده خو اولادونه دنیا ته راغلل چی اولاده یی تر اوسه هم مشهوره ده .

د گربز ابن مبارک د نسب شجره



مؤلف دډیرو هڅوسره سره په دې بریالی نه شو چې دد غه ښاخ له کوم غړي سره ملاقات وکړي اوهمدا و جه وه چې دد ې ښــاخ د وروستیو څانګو دنسب شجره تــرلاسه نه شوه .

## دډور قبیله :

لکه څنګه چې دشتیك دنسب په شجره کې راغلي ده دغه ښاخ هم دشتیك له اولادې نه دی . کله چې دکیوی ا و سوراني اولاده ، چـــې په بنوځبو سره مشــــهوره ده د شوال نه دبنودسیمې خواته راغلل نو له هغه وخت نه تقریبا تــــر (۵۰۰) نه زیات کلونه تیرشوي دي دا قبیله هم دغره په دننه کــې د توچي د رودپه دواړو غاړو کــې میشته شول اود زیاتو معلو ماتــو سره سره دا حال څرګند نشو چــې له دوی نه وړاندي په هغه ځـای کې چې اوس د دوړو دملك پــه نامه بلل کیږي څوك اوسیـدل او یایې هغه وخت چې ولیدل په دغه ځای کې څوك نه شته په کې استو ګن شول . د اور یدلو روایتونو او دموجودو دلایلوله مخې دا ســـــی ښکاری چې وروستی روایت بــه رښتیا وی . ددغه ښاخ پخوانـــی تاریخ او دهغوی اړیکی دپخوانیـو پاچایانو سره ترلاسه نه شوې خود (۱۱۱۲) هجري کـــال چــې د (۱۶۹۶) عیسوی کا ل سره سمو ن خوري اوله هغې موده نه (۱۶۸) کلو نه تیر شوي دی او اورنګزیب دواکمنۍ په وخت کې په هغه کال چې شهزاده بهادر شاه دبنوملــــك نیولی وپه هماغه کاله یــــی د دوړو په سیمه هم دولــــس زره روپۍ مالیه مقرره او سید حسین په نوم یوسړی یې ددوی حاکـــم وټاکه . ترڅه مودې پورې ده په سختۍ سره ګوزاره وکړه او هغه وخت چې دبنو دسیمې انتظـــا م خراب شو نو دوړهم آزاد شـــول ، ترڅو چې بیا ایرانی نـــــادر دوی تا بع او د زمان شاه درا نــــــــی تر دورې پورې یې دولس زره روپې مالیه ورکوله خوکوم حکمران پــه دوی باند ې ټاکل شو ی نـــه و. او یویا دوه کاله وروسته به یــو درانی افسر دیو شمیر پوځ ســره ددوی سیمې ته ورغی او د دولس زرو روپیو مالیې په نوم به هـــر څه چې ګوتوته ورغلل وا خیستل اوله ځان سره به یې یووړل . دفتح خان بار کزي د حادثا توپه ترڅ کې شاه زمان دیوه سید پیر په غوښتنه د دوړو دولس زره روپیې مالیـه وبخښله چې دهغې په بدل کـــی د دوړو خلك خپل دغه پیر اوسید اولادې ته دهری ـ غولې ځمکـــی په سریو څه غله ورکوی او لـه هغه وخت نه دوی هم آزاده دی. په اوسنی وخت کې دوی د وزیرو دقبیلی د زور زیاتی په سبب هیله

من دي چې د انګریز سرکار دوی ته دخپل مهربانی په سیوری کې ځای ورکړی او ددوی سیمه هم دانګریزی سرکار په محروسه او نیول شوو سیمو کې شامله کړی اوځرنګه چې زمونږ حکومت د حدودو دپراخوالی او دملکونو دنیولو خیال نه لری نو ددوی له ډیرو غوښتنو سره سره بیا هم محروم دی .

پروسږ کال ددغه ښاخ په خلکو کې یوه آوازه خپره شوی ده چې انګریزسرکار غواړی ددوی سیمه دکابل امیر ته وبخښی، کله چې دوی دغه فضوله خبره واوریده نو ددوی ځینو ځانګو بیا ددی غو- ښتنه وکړه چې مونږ پرته له کوم دلیل نه دانګریز سرکار اطاعت منو اوسرکار دی مونږ د بی رحمه حاکمانولاس ته نه سپاری که څه هم دغه خبره بیخی غلطه او انګریز سرکار هیڅ کله د کوم دلیل نه پرته په بهرنیو سیموکی مداخله نکوی خوسره له دی هم له دغه خبری نه ښرګند ، ده چې د انګریزی سرکار دښه چلند او عادلانه انتظام زمونږ په آزاد و ګاوند یو سیمو باندی څومره تاثیر ښندلی دی . اوهغوی هم په دغه خبره پو هیدلی دی چې د عادل سلطنت رعیت په امن او آرامی کې ژوند کوی . ددغه ښاخ خلک ډیر جنګیالی نه دی ، دوی منځنی ونی، غنم رنګه ، خوزیږ بخون هوسا غو ښتونکی ، تنبل مزا جه او عیش خوښوونکی دی ، دوی په وعده خلافی او نامردی کې مشهور دی ، په دوی کې په ښځو او بی ږیرو هلکانو باندی مینه کیدل ډیر رواج لری . اوپه دغه معامله کې دوی د افغا نستان تر ټولو قبیلونه لوړی درجه بدکاره دی . اوهغه وخت چې په یوه بی ږیر ی هلک باندی څو تنه مین شی نو په دغه معامله کې رقیبان له یو بل نه دوړاندی کیدو او دمعشوق د جلبولو لپاره څو پسونه یا نور حیواتات حلالوی او د شپی له خوا دغه حلال شوی پسه د خپل رقیب سره دسیالی په منظور د هغه کور ته نږد ی په یوه جګ دار باند ی ځړوی ، کله چې سهار دهغه رقیب دغه حال وګوری نو په مقابل کې دی هم په همدغه کار لاس پوری کوی او دغه کار ترهغه وخت پوری جریان لری تر څو یوه خوا مغلوبه شی اویاهغه معشوق ددو ی له جملی نه کوم یو دملګرتوب له پاره وټاکی . کله کله په دغه بدکار باندی د دوی تر مینځ شخړی منځ ته راځی اووینی تو یږی اوپه دغه خبره باندی په













څرنګه ده چې د دوی اصلي ښاخ ضعف ده چې هر یادي ذکر شو خو لرغونه سوري نه خو منتشر قوم هم له دوی سره یو ځای شوي دي چې ددې د دوی اولاده نه بلکې د دوی په نامه بلل کېږي لکه چې په برخه ګټه او تاوان کې له دوی سره یو ځای دي. ددوی تفصیل په دې ډول دی، ملخ زر، عبدک زر، درپه خیل یوزراو ده اسحاني یا امزوني قوم، ترون یو سنه ګ نه چې ددوی شجرې پورته راغلي دي.

په کلیو کی هم ګوندی ګا نی موجودی وی. اوکوم عاشق چی دبل په نسبت ډیر پسونه حلال کړ ی فخر وربا ندی کوی .

دوی دومره ډیر رانجه استعما لوی چی سترګو چار چاپیریی تر غوږونو پوری توروی اکثره ځوانان سترګی په شونډو باندی سری کوی ځینی یی یوه سترګه په رانجو توره اوبله په سندری سره کوی او ددوی سترګی هیڅ کله هم د دغو خرابو رانجو نه خالی نه وی ددوی بل خراب عادت دا دی چی په خپله پکړی کی دخپل ملك ډول ډول ګلان د شانګو سره ټومبی .

لنډه دا چی ددوی عادات ډیر خراب دی او ددغو ټیټو او بدو شوقونو په سبب دوی باید نیم لیونی و ګڼل شی ددو ی پو خا ك اکثرا له توری خمتانه جوړ شوی وی خو ډیر خیرن وی ان تردی چی بوی یی ترلیری ځایونو پوری ځی دوی خپلی جامی قصداء خیرنی ساتی ځکه دهغه چاچی په تن ډیری خیرنی وی نو هغه ځان داسی ښیی چی ګواکی د ی غوړی ډیر استعما لوی او په دغو خیرنو جا مو فخر هم کوی.

دوی په زیاته اندازه ژیړغوړی استعما لوی او غوړ لاس پخپل مخ اوکالیو باندی راکاږی او په غوړ یو باندی غوړه ډوډی په خپل جیب کی ږدی اوپایی په لنګوټی پوری تړلی تول هغه ځوانان چی ږیره یی لوړی را ورسږی هغه خیریی ا و ځینی یی په نوسی را - باسی او ددیرشو او شلو ښتو کلونو عمر خلك یی دبیاتی په ذریعه مورچه پیه کوی او ځینی خلك د اختر په ورځوکی ږیره او بریتونه له یوی خوا خریی . دوی په خپلو سیموکی غلا لږه کوی خو دخپلی سیمی نه غلا له پا ره بهر ته ځی په تیره بیا دانګر یزا سرکار په نیولی ملك کی چی دوی ته نږدی هم دی . دغسی پیښی لږی کوی . دوی اکثرا د کرنی په چارو بوخت دی اودځمکی په چاروکی ډیر زیار ګالو نکی دی .

ځینی یی سوداګری هم کوی خودخپلی سیمی نه یی دباندی تګ خوښ نه دی ، ددوی ډیر اوږدسفر دبنو او خوست پوری دی او ددغه دیرش میله سفر هم په دوی کی دګوتو په شمیرسوداګر خلك کوی. ددوی په سیمه کی تمباکو ډیر پیدا کیږی او دخرڅلاو له پاره یی بنوته راوړی ، همدا راز ددوی د سیمی پنبه اوغله ددغه ملك د خلکو له ضرورت نه زیاته ده . دکرنی ځمکی یی ښی دی خو د کښتنیو دوړو نه پرته د کنیو ا و کور کمندو کرنه په دوی کی رواج نه لری . له بهرنه په تیره بیا دبنو نه ددوی سیمی ته خمتا او اپین ډیر صادر یږی .

ددوړو خلك اکثراً تر یاك دی او تـــــی حتی ځینې ښځې یې هم اپین خوری او په دوی نی به داسی خلك لږ وی چی داپینو، چرسو یا بنګو نشــــه دی و نکړی .

دوی شنه غرنی بنګ و چـــوی او په چیلم کی یې څکوی . خــــو دوی حتی دشرابو نوم هم نه پیژنی. د نورو نشو استعما ل له ماسپښینی نه نیولی تر وله شپه دمستی په حال تیروی خوسره له دغو بدو کارو نو لموبخ لږ قضا کوی خودوی یوازی ، لموبخ لږ قضا کوی خودوی یوازی دلمو نځ په اخلاص اوتوا ضع سره ادا کړی.

دغه ښاخ له وزیرو سره لویه دښمنی لری. سره له دی چی ددوی دښمن قوی او پیاوړی دی خو بیاهم دوی په خپل منځ کی اتفاق (یوالی) نه لری . دد غه ښاخ دټولو وسله والو کسانو شمیر تقریبا (۱۲۰۰۰) تنو ته رسیږی چی په دغه شمیر کی څلور نور ښاخونه چی د نسب شجره یی وړاندی را غلی ده هم شامل دی ددوی په سیمه کی چی دپخوانیو زړو او ورانو ودانیو د دکنډ وا لـــو نښـــی نښـــا نـــی پاتی دی له هغو نه دا ســـی اټکل لیدلای شی چی دهند وانو یا یو نانیانو دحکمرانی په دوره کـــی لو یدیځ افغانستا ن ته له دغـــه ځای نه یوه عامه لاری تللی وه .

ددغه ښاخ خلك نه په پوځ کـــی د داخلیدو سر ه مینه لری او نه هم ددغه کار لیاقت لری .

## د تنیو ښاخ :

ددغه ښاخ د نسبت شجره وړاندی ذکر شوه دوی خپل ځانو نه ددوړو ورو نه ګنی ، حو څدرا ړوایی چی تنی د کاغ ډم له نسله دی ، مګر د خیړ نـــو په نتیجه کی دا ثابتـــه شوه چی تنی هم دکرړا نیو یا کرلا نیـــو یو ښاخ دی ویل کیږی چی تنی د وه تنه صلبی ځامن لارل یـــویی ا ر ی چی اولاده یی اریو زی دی دویم یی مری چی اولادی ته یی مری خیل وایی او مری ابن تنی یو کوچنی ماشوم چی سینګی نومیده و روزه چی دهغه اولاده دسینګی په نامه سره مشهوره شوه، تنی دخوست په لویدیځ او جنوب کی میشته او اکثرا په غرو نو کـــی اوسیږی خو ځینی خلك یی دغرونو په لمنو کی هم استو ګنه لـــری . ددوی لوی کلی د درګی په میدان کی دی چی پنځه سوه کوره لری .خلك وایی چی په دغه ځای کی زر تنــــه وسله وال کسان شته دی د درګی پرته چی ددوی له ټولو کلیو نــه لوی کلی دی دالاندی کلی هـــم لوی کلی شمیرل کیږی .

حصارك ، كوځه ، نرخـــي اواتمان، دغه ښاخ په دايمي استوګنځيو کې سره ژوند کوي او مسقف والاکورونه لري . ددوی لويديځ غربنه شين‌دی کې سيوري لري او دلته ښکار ی‌بازان هم ډېر نيول کيږي . .

ددغه ښاخ ټول شمير تقريبـــاً دولس زره تنه دی چې دهغو لـــه جملې دری زره تنه وسله وال کسان دی ددوی د ټوپکو شمير دوسلـــه وسله والو کسانو په پر تله ۱/٤ لږ دی . ددوی له جملې نه دری‌زره تونه يی‌تور ی‌لری. هغه سړ ی‌چې‌ټوپك نه لري نو توره او سپرضرور ساتي . ددغه ښاخ خلك ډيرجنګيالي او زړه ور سپايان دی . دخوست د سيمي دګونديو له جملې نه دو ی بايد د سپين ګوندی غړی و شميرل شي .دوی داسمعيل خيلواو دتورګوند نورو غړو سره کلکه دښمني لري.

او دخپل همت په وجه دوی‌اکثراً بريالی وی . ټول تني د کرنی پـه چارو بوخت دی . ځمکی يی للمـــی‌خو‌يوه اندازه آبی ځمکه چې دوياله په ذريعه خړو بيږی هم لري .ددوی ځيني خلك تر بنو پوری د تنبا کو او نورو شيانو سوداګری کوی خو اکثراً له خپلو سيمو نه بهر تـــه تګ د دوی نه خوښيږی که څه هم‌ددوی په ميدانی سيمو کی داوسيدو له کبله بايد د خوست دحاکم تـرلاس لاندی وشميرل شي او د کال‌زر روپی ماليه دنعلبندی په ډول پـه دوی باندی تاکل شوی ده خو لـــه دغو پيسونه دوه سوه روپی دملکانو په انعام لی مجرا او په پاتی اتـــه سوو روپيو ماليه کی له‌دوی نـــه ځيني اجناس لکه داسانو نعلونـه، يومان ، هر ګاری او نور اوسپنيز‌سامانونه چې اکثراً د دوی په سيمه په تيره بيا په کوځه کی جوړيږ ی‌اخلی او بيايی دوی په خپلو مينځو کی په هر کور باندی په تاکلـــی‌اندازه ويشي ، سره له‌دی چې لـه دوی دومره لږ محصول اخستل کيږی بيا هم ددغه ښاخ اکثره خلك دخپل غرور ، زړه ور توب او سختوغرونو دموجوديت په سبب دخوست له‌حاکم نه ياغي کيږی . که څه هـم د دوی‌تر مينځ کورنی دښمنی ډيری نشته خوددښمني او عداوت نه خالي هـم‌نه دی .دغه ښاخ په دووګوند نـو ويشل شوی دی چې په يوه ګوند کی يی اريوزی او سينکی او په بل کـی يی مری خپل دی چې‌دشمير‌له مخـی‌دوروستی ګوند غړی زيات دی اوپه دوی کی هم داوتی خيلو د ځانګـــی‌شمير ډير زيات دی او په مری‌خيلو کی هم دری نامی په‌يوه خوا اوخيبی‌خيل، اتمان زی او خبر زی په بلـه خوا دی چې ددوی ترمينځ شخړی نه را مينځ ته کيږی .

اوس کل خان توکل هیبت د دری نامه په شانکه اسمعیل او ادکل د خیبی خپلو په شانکه اوخان او فقیـــر شیر احمد او دل واز او نور دد غه
ښاخ ملکان دی ،دتنیوخلك جگی ونی، غنم رنگه او ښایسته خیری لری ، دوی پوشاك اکثراً دوړوته ورته دی خوځینی خلك یی پشمی اندر کهه (شړی) هم اغوندی .ددوی پرتکو نه کهیره داره او سوسی دی او دوی ډیرخیرن
گرځی د اخلاقو له نظره دوړ وتــه ورته والی لری خو دهغوی نه لـږ ښه دی دښځو سره عشق او مینــه کول په دوی کی زیات دی خوپـــه
پښتنی ننگ کی تر دوړ و تکړه د ی. دغره اوسیدونکی تنی دوزورمـی او د میدانی او اوارو سیمو اوسیدونکی د پسونو ډیری رمی ساتی . دغوایانو کلی‌هم‌په دوی‌کی ډیری دی. دوی دخوراك له پاره دغنمو ،اور بشو اوپړدنو نه استفاده کوی .خو اکثره یی داور بشو او غنمو اوړه استعما لوی . تنی یو ډول غرنی میوه لـری‌چی له خیړیو یی حاصلوی او پرکی یی بولی اوړه کوی او بیایی خوری. ددوی خوراك او پوښاك ډیر لثیفدی.

د تڼيو او شينکيو نسب نامه




۲۱۳

# پنځم باب

## دافغانستان دهغو متفرقو قومونو بیان چې ذکرېږي: افغانانو په برخه کې نه دي لیکل شوي

په دغه باب کې به تر تولـــو وړاندی دهغو قومونو حال ولیکل‌شي چې د افغانانو په ډله کې داخـــل‌حو ځانونه سیدان بولي . * څرګنده ده چې بختیار او سترانی (ستوریانی) په شیرانی کې مشوانی په کاکړ و کې هنی او وردګ په کرړای کې‌خوندی په داوی کې ـ سپندزی په ترین کې غر شین په میا نه کی‌اوپه کوتی بیـتـنـی لی د ا تـو لی قبیلی دپـــور تنـــــی تفصیل په اسا س‌پـــــه مر بو طو افغا نیه قبیلـــو پوری اړه لري . که څه هم ظاهر آځانونه سیدان نه بولي خو څرګنـه چې په افغانی قبیلو پوری اړه لري‌او په هغو پوری مربوط ددوی دنسب پلرنی شجره تر لاسه نه شو له دی کبله بنایی دوی ځانونه په پټـــه سیدان وبولي خو څرنګه چې عـــوام ددوی په سیدی باور نه لري‌نوله دی کبله دوی وایی هغه وخت چـــې مونږ دساداتو له ریښې نه بیل اود افغانانو سره یو ځای شو نو ځکـــه مو ددغه قوم سره د خپلوی په سبب ددوی دود او دستور و مانه . نو بیا هغوی ته دسید دکلمي استعمال د

---

* دا دپښتنو دستانه کورنیـــو عادت دی چې پردریم پښت دسیادت دعوه کوی غالباً ددی سبب بـــه داوی چې پردریم پښت له دوی سره دبزرګی هیڅ متاع نه وی پاتی نـــو دوی دخپل اعتبار دساتلو لـــه پاره دنسب شرافت ته لاس واچوی اوله دی لاری ځان دخپلو عقید تمندا نو په مخ کی د درناوی وړ ګـــرزوی .(رشاد )

ادب او احسان د طریقی ته لیری خبره ده او زموږ مشران هم دغه خبره کوی چی که زمونږ له اولا دی نه شوك سید و کنی نو هغه زمونږ له اولادی نه نه دی ، که چیری داوصیت رښتیا شو نو هغه له دیقول سره صدق نکوی او مولف ته چی څه حالات ددغه قومونو په باب تر لاسه شوی دی هغه په لاندی ډول ذکر کیږی .

## دبختیار قوم :

دمخزن افغانی لیکوال د بختیار دقوم د نسب دا صلیت په باره کی داسی لیکلی دی :

اسحاق نومی چی اصلا یو سیدزاده و په اوش نومی ځای کی چی دبغداد له توابعو څخه دی دروز گار دپیښو په سبب په سفر لاس پوری کړ او دسلیمان په غره کی د شیرانیو سیمی ته راغی او دشیرانی په ښناخ کی یی له یوی ښځی سره چی شبخی نومیده واده وکړ او له دغی میرمنی نه یی یوازی یو زوی پیدا شو او ابو سعید نوم یی وربانده کیښود چی نوموړی ماشوم د بخت او نیکو طالعو په اساس په بختور سره شهرت وموند او دوخت په تیریدو سره په بختیار سره مشهور شو چی دده اولادی ته بختیار وایی خو مولف ته ددغه روایت په باب صحیح ثبوت تر لاسه نشو ،وروسته الفنستن د خپلو تحقیقاتو په ترڅ کی لیکلی دی چی بختیار د ایران نه دافغانستان هیواد ته راغلی دی چی اوس د دوی پنځه سوه (۵۰۰) کوره د مرغه په سیمه کی میشته دی . ددغی قبیلی خلك نیك چلن او دښه سلوك خاوندان دی .

په مخزن افغانی کی د دوی نسب نامه یوازی دومره راغلی ده .

# د بختيار د نسب شجره

بختيار

کورتي — اکو — اتو — پري — توري

اتو

سيد محمد

خواجه الياس

خواجه يحيى کبير

نظرزي دوى هم پونده سوداګر او د بختيار قوم يوه
ښاخ دي ،

مقري دوى هم پونده بختياري دي
ددوى لوى برخه استوګنځى له امله يې مقري بولي

مرچي دوى صفه بختياري دي چي
په غزني کې دايمي استوګنځي لري

# د هغو ښلورو قومونو ذکر چې خپل لوی نیکه سید محمد گیسو دراز بولي

ښکارنده ده چې ستر یاني (ستوریاني ) یا اوستراني چې له هغو نه کنده پور مشواني، وردك او هني هم دي دخپل نسب شجره دسید محمد گیسو دراز سره له دې کبله یوځای کوي چې د شیراني د ژوندانه په وخت کې هغه سید دسلیمان غره ته راغی او دپښتنو سره یو ځای شو. دهغه د کراماتو په سبب و چې کړاني، شیراني او کاکړو په ده باندې اعتقاد پیدا کړ او دامیر تیمور گورگاني دخطرناك یرغل نه دوموړی سید ددعا له برکته په امن کې پاتې شول * اوحال داچې امیر تیمور په هغه لار باندې تیر شوی هم ندی، ** همدا وچې د کاکړو، شیرانو او کړ انیو دقبیلوسردارانو ده ته خپلې پیغلې لورگانی ورکړې او سید محمد گیسو دراز له دې وارو سره شرعي نکاح وتړله چې له

---

* په تاریخ مرصع (۵۲۲ مخ )کې لیکلي دي «هر گاه چې لښکر د امر تیمور نژدې وکوه سلیمان ته راغی حضرت خواجه یحیی کبیر بختیار (۸۳٤ ه ق مړ ) له خپلو توابعو او لواحقو سره په خوا دغره کې و، مرید انو عرض وکړ چې یاشیخ امیر تیمور نژدې راغی، مبادا چې کنبیوزو، حضرت خواجه څه خاوري واخیستې درې ځله یې قل هو الله ولوسته او په لوریې د لښکرو غورزونې، په فرمان دحق تعالی په منځ دلښکر او ددوی حجاب پیدا شو. واړه مغل گویا ړانده شول . . . . . لږ چې پستنه وجاروتل سترگې دمغلو بینا شوې . » دغه مطلب افضل خان ختك (۱۰۷۵) ه ق زوکړی )له مخزن افغاني څخه ترجمه کړی دی خو له دپټې حیات خان څخه دد عاکوو نکي نوم بدل سوی دی .( رشاد )

** د پټې حیات خان دا خبره سهي نه ده ـ په روز نامچه غزوات هندوستان کې چې دتیمور د لښکر کښیو له پاره وقف سوې دي لیکلي دي : «روز نوزدهم ماه عساکر (تیمور) به قلعه نغر رسیدند ـ از آنجا بر کلا نیان (کړ انیان) تاختند برخی از تیغ گزرانیده شدند، فرزندان ایشانرا برده و اسیر گرفت . هشتم ماه بر لب آب سند سایه افکند .» نغرد اوسني حوست په شاه خوا کې واقع و په دغه روز نامچه کې دآریوب، شلوزان، بنود نیولو او دهغو ځایونو د خلکو دوژلو او چور چپاو پیښې همه راغلي دي (رشاد)

هغوی نه خلور اولادونه مینځ ته راغلل د شیرانی له لورنه ستریانی (ستوریانی) دکاکړ له لورنه مشوا نی او دکړانی دلورنه دوه زامن و ځیدید ل یعنی و ر دك او هنی گله چــــــی سید محمد گیسو دراز د هندوستان خواته تشریف یووړ نو خپلی در ی واړه میرمنی یی ددوی له زامنـــو سره دخپلو پلرونو په کور وکـــی پریښودلی ، دغه هلکان دخپلـــو مورنیو نیکو په کورو نو کی وروزل شول او دبلوغ ته تر رسید و ورسته یی په افغانانو (پښتنو) کی ودونه وکړل او په دی ډول ددوی نســـل له پښتنو سره گډ شو که څه هـــم ددغه روایت په رښتیا والی با ندی مولف مشکوك دی خو هغه د پـوره تردید په باب هم کافی دلا یل نشته دی . خو هغه ضعف چی په دغـــه روایت کی موجود دی د هغه بیانول ددغه تصنیف دذمه واری بارسپکوی

لومړی :

په مخزن افغانی کی چی دا لیکـل شوی چی دشیرانی دژوند په وخت کی سید محمد گیسو دراز د سلیمان غره ته راغلی ودغه روایت ضعیف ښکاری دا ځکه چی وروسته په خپله د مخـــز ن افغانی مولف لیکلـــی چی شیرانی دسړبن ابن قیس عبــــدالرشید لمسی و او قیس عبدالرشید دجناب خاتم المرسلین محمد ( ص )دهمعصره ښیلی او سید محمـــــد گیسو دراز (۸۰۰) هجری کال نه وروسته هندوستان ته ولاړ نـــو څرنگه دا امکان لری چی دسړ بـن لمسی شیرانی چی د قیس عبدالرشید له خلورم پښت نه وتر اتمی هجری پیړی پوری دی ژوندی وی . پـــه تاریخ فرشته کی و گوری چی پـــه (۸۱۰) هجری کال چی له هغه وخت نه تر اوسه خلور سوه او دوه اویا (٤٧۲ ) کاله تیر شوی دی د سلطان فیروز شاه بهمنی د واکمنی په وخت کی سید محمد گیسو دراز د ډیلـــی نه دکن ته لاړ او په حسن آباد کی یی گلبر گه ته نږدی خانقاه جوړه او دیره شو ، چی تر اوسه هم هلته دده مقبره د خاصو او عامو زیارتگاه ده .

احمد شاه بهمنی چی په (۸۲۵ )هجری کال کی ددکن په تخت کښینا ـ ست * نو هغه سید محمد گیسودراز خاص مرید اومعتقد وچی ډیر کلـــی او قصبی یی دهغه دخانقاه له پـــاره وقف کړل او تر اوسه هم دسیدمحمد گیسو دراز اولاده په دکن کی شته خو نه په هغه زیات شمیر سره چی دافغانستان خلك دده اولاده بولی .

---

*دسید محمد گیسو دراز د مرگ کال هم ۸۲۵ هـ ق دی . (رشـــــاد)

دويم :

دسيد محمد گيسو دراز د نسب شجره چې د مخزن افغاني مولف راوړې ده او په هغې کې دده يو ولسم پښت دحضرت امام حسين سره نـهوي د مولف په نظرد (۸۰۰) اتو سـو کلو نو په تناسب يوولس پښتـــه لږ دي . ځکه چې د حضرت محمد(ص) نه وروسته د منځنی حساب ، لــه مخې په يوه سدی نی بايد لږ سر لږه دری پښتنه تير شوی وی .

دريم :

دمخزن افغاني نه پرته ددغــه روايت له پاره بل کوم ثبوت ترلاسه نه شو او داهم اتکل نيدای نه شي له دغه قومونه واقعا دسيد محمد گيسو دراز له اولادی نه وای ـو کله چی په (۹۱۰) هجری کال ني بابر پاچا افغانستان ته راغی نو په دغه وخت نی ځنکه کيدای شول چې دوردکو او کندا پوريا نو شميردی،دومره حدته رسيدلی وی په داســـی حال کی چی دسيد محمد گيسو درازاو بابر پاچا ترمينځ يوازی سل کاله وخت تير شوی ونو دا ځنکه منلــیشو چی په يوه سدی نی دیله يوه تن نه دومره اولاده منځ ته راشی،څومره ، چی په دغه وحت نی ،کندا پوريان ، وردک، مشوانی اوهنیوو.

له دی نه پرته دبنو دتاريخ لـه خيړنو نه چیددغه کتاب په دريمه برخی کی راغلی دی څر کند يږیچی د شيخ محمد روحانی دژوند په وحت کی دبنو ځيو ښاخ تقريبا په (۷۵۰)هجری نی دبنو سيمه له منګلو نه ونيوله او دادهنی هغه ښاخ دی چیځيل ځانونه دسيد محمد گيسو دراز لــه اولادی نــه شميری پـــه داســی حال نی چی سيد محمد گيسو دراز په بنو لــیددغه قبيلی له ميشته کيدو نــه سل کاله وروسته مينځ ته راغلــیدی نو دا هيڅ کله امکان نه لــری چی اولاد ونه دځيل نيکه له پيد ايښت نه وړاندیپه فتوحاتو پيـــل وکړی يو بل داسی عجيب روا يـتهم شته چید هغه له مخی وردک په ځيل باب کی وايی چی زمو نـږاوسنی مقبوضه سيمه د سلطا ن محمود غزنوی لخوا دابادی له پاره مونږ ته راکړل شوی وه . حال داچی دسلطان محمود غزنوی دوره دسيدمحمد گيسو دراز له پيدا ينبـــت نه تقريبا څلور سوه کا له قدا مـتلری . که ددوی دغه روايت صحيح وی نو بايد دی تکی ته پاملر نــه وشی چی د سيد محمد گيســو دراز

پیدا یښت نه څلور سوه کاله وړاندی څنګه دده اولادی کولای شول چی ملك اباد کړی . ددغو دلایلو تـه تر پاملرنی وروسته د ځینو تـه افغانانو ( پښتنو) دغه قول بی ځایه نه بریښی چی وایی «په افغانستان کی چی کومو خلکو ته دخپل نسب په باب معلومات نه وی نو هغوی ځانونه دسید محمد گیسو درازاولاده بولی »او هغه فقره چی په مخزن افغانی کی لیکل شوی ده چی دسلطان بهلول لودی اونورو د واکمنی په دوره کی ددی قومونو دنسب ذکر راغلی دی نو داخبره سمه نـه ده ځکه چی سلطان بهلول لودی اوسید محمد گیسو دراز هم عصره اویا یو بل ته په نږدی وختونو کی تیرشوی دی په (۸۵۵) هجری کال سلطان بهلول لودی دډیلی په تخت کښیناست او سید محمد گیسو دراز تـر (۸۲۵ ) هجری کال پوری په دکـن کی ژوند کاوه نو په دغو دیر شو کالونو کی د سید محمد گیسو درازاولاده دومره ډیر یدای نه شی څومره چی ددغو څلورو ښاخونو خلك پـه هغه وخت کی وو او نه په دومره لږه موده یی ددی امکان موجود و چی دده اولاده په دغه ډول سره یو ځای شی او دومره زیاته شی نو په دغه حال کی مولف داوسنیو حالاتو پر ته په اطمینان سره ددی ښاخونـو دابتدائی نسب په باره کی هیڅ نظر نه شی ورکولای خو ددغو قومونـو موجوده حالات یی په ترتیب سـره کښیلی البته ددوی د ژوند طـرز ، فزیکی جوړښت ، ځیری او خصلتونه ددوی کره وړه څرگندیدلای شی .

**نوټ :**

څرگنده ده چی شیخی او مزیری دکنداپو ورونه وو، چی دهغوی د نسب شجره وړاندی ذکر شوه او په کتـه او تاوان کی له دری پلاره سـره شریك شول او دشیرانیو دښاخ دسفرزی او خدر زی څانگی هم په وصلی ډول له دری پلاره سره گډ شول .

د استرياني يا اوستراني د نسب شجره



## د یعقوب زئي ابن گنده پور نسب شجره




## د عمران زي ابن گنده پور نسب نامه



## د خوبي زي بن گنده پور د نسب شجره



د دری پلاره چې په ګنده پور سره مشهور و د ښاخونو تفصیل



ددی نه پرته انزی څانګـــــه دشنیرانی له ښاخ نه بیله اودګنـدا پور دابراهیم زیو له څانګی سره یو ځای‌شوه. د موسی زی ښاخ چـګـــی

څلور څانګی یی غنی خیل ماسین‌خیل، خواد زی او نظر خیل دی دغرغښتـو له قبیلی نه بیل اودسین زیو کنـــد پوریانو سره یو ځای شول .درانی‌زی

ښاخ چی څلور څانګی یی په دی‌ډول دی علی خان خیل ،مالی خیل ،ملی‌خیل اوکتی خیل دیو سفزیو له قبیلی‌نه بیل او دیعقوبزیو ګندا پـــور یانو سره یو ځای شول .

نو ځکه دګندا پور دغه څـانګـی وصلی ګنل کیږی . خو په برخی او رسم او رواج نی داسی سره ګډ شوی دی چی دنسب له بیل والی نه پرته ددوی ترمینځ هیڅ توپیر نشی لیدا .

# دګندا پور قبیلی تاریخ

ددوئ دنسب حال وروسته راغلی دی ، خو دنسب له شجرئ نه داسی څرګند یږی چی ستوری چی پــــه استریانی (ستوریانی) سره مشهورو پنځه زامن لرل په دی ډول چی : تری په ګندا پور سره مشهور و ، شیخی ، مریږی او امرا ددی څلورو واړو اولادی ته په مجموعی ډول ګنده پور وایی ،اوپه هغو ئی تری تر نورو ټولو په شمیر ئی زیات دی چی په ګندا پور سره ملقب دی.دستوری پنځم زوی همر نومیده اوس یوازی د همر اولاد دخپل لوی نیکه یعنی ستریانی یا ستوریا نــی په نامه سره مشهور دی چی د دوی ذکر به وروسته راشی ،ویل کیږی چی په پیل کی دستوری ټول ښاخونه دلویدیځ افغانستان په ستریانـــی (ځاه ) نومی ځای کی چی د کندهار نه اوه منزله شمال ختیځ ته پروت واستوګنه لرله ، او دستوری لــه ټولو زامنونه تری(ګندا پور)ښایسته و. دستوری دځوندانه په وخت کی دشیرانی دښاخ دمشریوه پیغله لور په ګنداپور مینه شوه او دمور او پلار دخوښی نه پرته دګندا پــور کورته ورغله ، کله چی ګندا پوردغی نجلی ښایست و لیده نوځان ته یی دهغی دنکاح کولو نیت وکړ،خو دګنداپور پلار ستوری او دهغه نورو رونو دی دغه کار نه منــع کړ خو ګنداپور له دغه کار نــه

لاس ورانه څیست ، له همدی کبله ستوری او دهغه نور زامن له گندا پور نه خپه شول او دهغه سره یی له خبرو او نیږدی والی نــه ډډه وکړه ، له دی کبله گنداپور پــــه ستوریانی (شاه) کی دخپلو خپلوانو او کورنی سره له خپلو وروڼو او پلار نه خپه او په تردی نومی ځای کی چی دستور یا نی (شاه) نه دو ۵ سیك منزله فاصله لری استو گنــه غوره کړه او پلاریی هغه ته دگنداپور یعنی دخراب زوی لقب ور کړ داوه دگنداپور دتسمیی وجه چی دتری پر ځای استعمالیږی. او همد ا راز پلار داهم ورته ویلی وچی تــا زما دخوښی پرته له دغی ښځــــی سره نکاح وکړ نوستا اولاده بــــه هیڅ کله له بلی خلاصه نه وی که چیری بهرنی دښمنی ونه لری نوپه کورنی شر به اخته یی خو اولاده به دی ډیره وی .

لنډه داچی گندا پور په تردی نومی ځای کی استوگن شــوی ، د ی د کرنیپه چارو بوخت او کاریزونه یی جوړ کړل . گنداپور له خپلی هغی میرمنی نه چی په مین توب ســـره یی واده کړی وه د دریو زامنوخاوند شو ، چی ابراهیم ، حسین او عمران او څلورم اولادیی یوه لور وه چــی خوبی نومیده دبلی میرمنی نه یــی څلورم زوی دیعقوب په نوم جهان ته راغی گنداپور هماغلته مړ شو او دهغه زوی ابراهیم خان مشر وټا کل شو . ویل کیږی چی کله دشیخی ،امرا او مریدی اولادی گندا پــور دنسل ډیرښت ولید، نوپه ستوریانی (شاه) کی یی خپله استو گنه ترك او له گنداپور یانو سره په تر دی یو ځای شو ل ا و تــر هغــه وروسته

لــه دوی سره په گتهـــه ا و تاوا ن کی شــــر یــك شو ل چی د دو ی

اولاده هم دگنداپور یانو په نامه سره یادیږی . اوله هغه وخته چـــی د

گنداپور یانونه ځینی په مالداری او ځینی یی دکرنی په چارو بو خــــت

شـــــول په ژمی کی به د مان تــــه اودوبی کی به یی لویدیځ افغانستان ته لیږد کاوه .

اتفاقاً یو کال دجبیل خان گنداپوری دمشری او ریاست په وخت کی هغه

وخت چی گنداپوریان له خپلو کورنیو سره ددامان خواته تلل نو په ښځو باندی دننگ له امله د غرغښت دقبیلی دلهون دښاخ یو سړی چی خدل

نومیده د گنداپور یانو له لاســـه ووژل شوٚ دغی پیښی په سبب د لهون دښاخ خلکو په گنداپور یانو باندی یرغل و کړ اوځرنگه چی ځدل دابراهیم زی دڅانگی لخوا وژل شوی‌ونو دعمرانزی ښاخ په دغه حسا س وخت کی له خپل نور قوم‌نه بیــل‌تیر اودسند له رود نه پـــو ر ی او د دامان خواته وخوځیده له‌دامان تیر اود سیند له رود نه پوری وت وت او دتهل دچولستان په څاه نومی ځای کی استو گن شول .له بلی خوا دلهون ښاخ دگنداپور یانونه څو تنه ووژل . که څه هم په لومړی سر کی گنداپور یانو دخپل جرئت په سبب‌دلهون ښاخ‌ته ماتی ور کړ ی وه خو دویم ځل دلهون ښاخ دخپــل ور ورښاخ کاکړ نه مرسته وغوښته او دبیا دبدل اخستلو له پاره روان‌شول‌او ځرنگه چی کاکړ د ښمیر له مخی ډیر وونو په زرگونو وسلــه وال‌کسان دگنداپور یانو دسیمی خواته روان شول . گنداپوریان دشمیر له مخی دغلیم په نسبت لږ او حتی د هغوی لسمه برخه هم نه وو نـو ځکه یی د دغه قوی د ښمن ســـره ناچاره‌یی‌خپل پلرنی تاتو بی پور ی‌پریښود او خپل توری خیمی یـی د شمال خواته ولیږدولی تر هغـــه وروسته چی دوی له خپل تاتوبی نه مقابله کول ډیر گران کار وگانه‌اووایستل شول دنورو پوونده وه په شان یی شپږ میاشتی په لویدیـځ افغانستان او شپږ میاشتی په ختیځ افغانستان کی تیرولی او دتکواره له رود نه سهیل خواته دسلیمان غره‌تر ختیځولمنو پوری دگنداپوریا۔نو خیمی لیدل کیدی او په پخوانی خاص روړی کی رئیس جبیل خا ن‌اوسیده او په هغه وخت هغـــه رئیس خان زما ن خان دمروتو سره یوازی دمالداری په چارو بوخـت و تر څو چی دتاك دسیمی د کتی خیلو ددښمنی په سبب دگنداپور یا نـو دمرستی دتر لاسه کولو او پـــه دامان او په دغه ځای کی دده دمیشته کیدلو غوښتنه وکړه . دگنداپوریانو ټولی جرگی تـر سلااو مشوری و ر و سته په دی سلاوکړه چی له هـــر کورنه دی یوتن دپوه نده وو پــه دول لویدیځ افغانستان ته لاړ شی اودهری کورنی یورنی یوتن دی په دا مان کی‌پاتی شول ددوی‌ټول مصـا رف‌خان زمان په غاړه وا خستـــه ددغـــه قرار داد له مخی نیمـــا ی‌گنداپوریان په روړی نومی ځـــای کی استوگن او دوهم نیمایی یی دپخوا په شان لویدیځ افغانستان ته لاړل دپاتی کسانو له پاره خان زمان خان‌له تاك نه ډیره‌غله او خرڅ ولیږه او همدا رازده یوشمیر بزگـران د بزگری له نورو سامان الات ســره

هلته ولیږل ترڅو دوی ته دبزګرۍ او یوی لارۍ چارۍ ورزده کړي ،
هغوی داوبو بندونه جوړ او ډیر زراعتی پیدا واریی تر لاسه کړله
لنده داچی دخان زمان ګتی خیـــل دبندوبست له مخی ګندا پور یـا ن
بیاد ځمکو او ملك څښتنان شـول او په تدریجی ډول دګندا پور اکثریت
خلکو په روړی کی استو ګنه غـوره کړه . تر هغی څه موده وروسته
دمیاخیلو رئیس ابراهیم خان او د نور خان نور زامن دګنداپور یانو له
لاسه ووژل شول ، له هغی ورځـی نه دمیاخیلو اوګنداپور یانو ترمینځ
داسی دښمنی رامینځ ته شوه چـی آثاریی تر اوسه هم پاتی دی . نور
خان میاخیل دخپلو زامنو دبـــدل داخستلو په منظور د دولت خیلو له
ښاخ نه پرته دلوهانی توله قبیله متحده کړه او دبلو څو په ملګرتیا
یی دګنداپوریا نو استوګن ځای روړی محاصره کړ چی تر څو جګړو وروسته
د دواړو خوا وپه تیره بیا دباند نیو خلکو ډیر کسان ووژل شول په پای
کی دوکیلانو دمنځګړ توب له مخـی ددولت خیلو رئیس خان زمان په دی
شرط د ګندا پور یانو او میاخیلوترمینځ سو له و کړه چی ګنداپور یان
له روړی نه ووزی‌او د ټاك اوك ا ومرتو خوا ته دی لاړشی او دلوهانیو
او میاخیلو لښکر او نوری قبیلی له هـغـو ی سر ه د نـد نور خا ن‌دزامنو
د وژ لو پــــه بدل کــــی در وړی‌ښارنه چی هغه وخت اکثرا له شپړو
نه جوړ شوی و اور واچوی او تویوه کال وروسته. دی ګنداپوریان بیرته
راشی او بیادی هلته میشته شی .ددی‌سولی داقرار له‌مخی‌ګندا پوریان
دخپلو کورنیوسره‌دټاك خواته راغلل‌او بیا له هغه ځای نه دمروتو خواته
او ورپسی دیو کال دتیرو لوله پاره ښوته لاړل ، میاخیلو دروړی ښارته
واچاوه او لولپه یــــی کړ .
دوی دداښ خواته لاړل اوترټا کلـــی مودی وروسته ګندا پور یان‌دښنو نه
بیرته روړی ته ستانه او هلتـــه میشنه شول .

### دځمکی او ز راعتی اوبو ویش :

هغه وخت چی ګنداپوریانو پــــه روړی کی دایمی استو ګنه غوره‌کړه
اوبه اوځمکی یی‌په شپړو ویالولاندی په دی‌ډول وویشل په دی‌تو ګه چــی
یوه برخه یی دابراهیم زی د ښا خ ته ،یوه برخه یی جبیل خان ، چی
دبراهیم زی دښاخ مشرویوه برخه یی‌حسن زیو او موسی زیو ښاخونو ته
یوه برخه یی یعقوب زیو او زانی زیو ته ، یوه برخه یی خوبی زیو ته ،
او یوه برخه یی دریٔ پلاره تــــه ورکړه ، مګرکله‌چی وروسته ګدایی

خان عمران زی زوی آزاد خان دخپل ښاخ د خلکو سره بیرته راغئی نود ګنداپور یانو سره یو ځای په روړی ئی استوګن شو اودخپل تدبیر او پوهی په سبب دګنداپوریانو لوی رئیس وټاکل شو او تګواره یی آباده کړه چی له هغه وخت نه براهیم زیو دتګواره په برخی حوړی له هغو نه دی یوه برخه عمران زیو ته ورکړی . اودتګواره نه دی شپږمه برخه ورکړل شی، لکه چی براهیم زیو دغه خبره ومنله اودګنداپوریانو ټوله مقبوضه سیمه چی تر اوسه پوری هم په هماغه ډول ده په شپږو ښاخو نو وویشل شوه ،په لومړی ویش کی دعمران زیو دنشتوالی په وخت کی براهیم زیو چی دوی برخی یی نیولی وی له هغو نه یی یوه برخه عمران زیو ته ورکړه او پاتی ویش په هماغه ډول پاتی شو او دروړی ټولی ځمکی او اوبه یی دشمت تسه په ترتیب او په هر یوه کس د ده سوه ډډی او په هر ځانګه باندی دکسه و ټاکله او ټول مشترک عایدات یی دډډی په حساب یعنی دټاکلی برخی په اساس په خپل منځ کی سره وویشل او و روستی یاکورنی ویش دهغوی دکورنیوغړو دشمیر له مخی ترسره کیږی او کومه ټاکلی اندازه نه لری یعنی کله لږ او کله ډیریږی .

**پخوانی دودونه :**

ګنداپوریانو په مجموع کی دخپل دښاخ ډلی دټومن په نامه بللی .

په لومړی سرپاد ازادی په دوره کی ټومن ته دا دنده ور په غاړه وه چی دقبیلی دټولوپه مشوره اواتفاق باندی به یی یو یوه سړی چی عموماً به دمور وټی کورنی غړی وټاکه او دخان منصب به یی ورکاوه . او شو کسونو روبه دهری ویالی نه یویا دوه تنه یوه اولایق کسان چی دکار قابلیت او اهلیت به یی لاره دجرګی له پاره ټاکل چی ټولی پوځی، ملی او مالی چاری اوشخړی په دخان او جرګی درایوله مخی فیصله کیدل . دهغونه پرته به خان اوجرګی یوه سړی دخپلی ځانګی نه دلوی ځلویښتی په نامه ټاکه اودغه لوی ځلویښتی به دخان او جرګی مرستیال او دده اولاس لاندی به په هرو پنځو سړیو یاپنځو کورونو باندی یو تن دواره ځلویښتی په نامه ټاکل کیدل .

دکوچنیو ځلوېښتیانو ښمیر به سل گونو تنو ته رسیده او هغه وخت به چې خان یاجرگې کومه فیصله وکړه نو په مربوطو ځانگو باندې ددغو فیصلو عملي کول دځلوېښتیانو دنده وه په تیره بیا له غلیم سره دجگړې په وخت کې ځلوېښتیا نـوډېر زر لښکر را ټولاوه. مثلا کلـه به چې دکوم گاونډي ښاخ یا قبیلې په گنډاپوریانو باندې کوم تیری وکړ اویا به یې دوی ته ځاني یا مالـي تاوان واړاوه او له کنډاپوریا نـو نه به ځینو دهغو سره دجگړې اراده درلوده او ځینو به نه درلوده نو ددغه کار له پاره به خان او جرگې فیصله کوله او دجرگې به دراېوپه اتفاق دجگړې له پاره تجویز منظوراوه نو بیا چادې واك نه درلود چې ددوی له فیصلې نه سرو غړوی او لوی ځلوېښتي ته به دخان او جرگې له خوا دا حکم کیده چې ددوی فیصله عملي کړی او هغـــــه به دخپل لاس لاندې ځلـــو ېښتیان یعنـــی محصلان راټو لول او دخان اوجرگې دا جازې تر اخیستلو وروسته به یې په شپږ و واړو یالو باندې دلښکرو ښمیر ټاکه او حکم به یې کاوه چې په یوه ټولګي وخت کې له هـرې ویالې نه په هماغه ټاکلې انـــدازه‌سپاره او پلي دپلاني مخالف ښاخ سره دجگړې له پاره برابر اوموجود شي، دغه حکم به په ډېره ښه‌وجه عملي کیده او دجگړې په ورځو کې به لوی ځلوېښتي دسپه سالار په توگه دخان ترلاس لاندې دلښکر و دخرڅ اوهغو اسانو په باره کې چې مشر ی په غاړه لرله . او دجگړې‌خرڅ او هغو آسانو په باره کې چې په جگړه کې مړه‌کیدل داسې پریکړه‌شووی وه چې دشپږ و واړ و یا لود ځخه یوه ټوټه مشترکه ځمکه بـه د( اسود ځمکې) په نامه ټاکل‌کیدله او ددغې ځمکې حاصل به دسپرو له‌خوا مصرف اویو بل ډول ځمکه چې د(ژوبلې) په نامه یادیدله دشپږ وواړو ښاخو نوله خوا ټاکل شوې‌وه چې که چیرې دکوم سپاره آس به ووژل شو نودهغې ځمکې نه به یې دچندې په ډول برخه ترلاسه کوله او دسزا دورکولو واك دجـــرگې د برخه والو او خان په لاس کې واو دغه سزا به لوی ځلوېښتي دوړو ځلوېښتیانو په ذریعه عملي کوله. مثلا دقتل په قصاص کې زر روپــې ناغه ټاکل شوې وه کله چې به‌چې خان او دجرگې برخه والو فتـــوا صادره کړه نولوی ځلوېښتي به دخان اوتومن په مشوره قاتل ونیوه او ټاکل شوی ناغه او جرمانه بـه دنقد او جنس په ډول ور نـــه

حاصلیدله او دخان اوجرگی حضورته به راوړل کیدله او دغه جرمانه
به دهماغه وخت ددستور سره سمخومره به چی دعامه کارونه باره
تومنو ورته ضرورت درلود مصرفوله به یی اوکه په دوی باندی به
ونویشل شوه نوخان او لویو ا وړو څلو یښتیانو په خپلو منځوکی
سره ویشله او هر بوه به خپله برخه اخیستله اوکه کوم سړی
به بخپل ښاخ یا ځانگه کی کومه کوچنی او یالویه غلا و کړه او

هغه غلاء به وربانذی ثابته شوه، نو دغلاء سزا داوه چی غلاشوی‌مال
به بیرته خپل خاوند ته سپارل کیده او دغله کور به سوزول‌کیده
او په دغه ډول په لومړی سر کی‌ددوی یو ښه جمهوری انتظام موجود
و، خو وروسته دکور نیو دښمنیو په سبب خراب شو.اوس دانگریزی
سرکار انتظام تر ټولو انتظامونه غوره او بهتر دی .

## دگنډا پور دخانانو حال :

لکه څرنگه چی دمخه وویل شول‌په پیل کی دگنډا پور خانی‌دبراهیم
زی کورنی په لاس کی وه خو د نصرت خان براهیم زی په وخت‌کی
خانی‌دعمران‌زیو کورنی ته‌ولیږدیداو له ډیری مودی نه دعمران زیو د
عیسی خیلو ښاخ دبره خیلو په ځانگه کی موروثی خانی روانه وه
خو واك یی لږو خلك تل په‌خپلو منځوکی جنگیدل اودلوتمازی اونورو
پیښنو مخه نه‌شوا ی نیول کید ای‌اوس دظفر خان زوی گلداد خا ن
او دعلی خان زوی قالو خان دهمدی ښاخ لوی خانان دی، خوسره له‌دی
چی ددوی نیکو نه سره یودی خو بیا هم ددواړو ترمینځ سخته دښمنی
موجووده ده چی دد ی دښمنیو نه زیاتی خرابی مینځ ته راځی. د
انگریزی سرکار له خوا دوی ته دگوزاری له پاره جاگیر ورکړل

شوی دی. او دبراهیم زی په ښاخ‌کی نور نگ خان باعزته سړی دی
او ده په (۱۸۵۷) عیسو ی کا ل‌او نور وختو نوکی د انگریزی سر
کار ته دقدر وړ خد متو نه کړی او انگریزی سرکار هم د مهربانی او
قدر دانی له مخی هغه ته د خان‌بهادری لقب ورکړی دی .
د نورنگ خان زوی زمان خان‌هم‌دانگر یز ی سر کار ته دخدمت
په لار کی و ژل شو ی دی.

## دبهرنی دښمنی څرنگوا لی :

گنډا پور یان دانگر یزی‌واکمنی‌نه دمخه جنگیا لی اوز ړه‌ور خلك
وو ددو ی‌ملك څلورو خوا و ته داسی‌قبیله نه وه چی له هغو ی سر ه
دی دوی جگړه او مرگ ژو بله ونه لری او په خپل‌لو مړی استو گنځی

سیمه باندی‌یی قبضه تینګه کړه‌نود فاصلی دزیاد کی میشته کیدو په وخت کی تر تولوو ړاندی له دوی‌سره د غرــ غښت دقبیلی ښنا حو نو لهو ن ا و کاکړو دښمني پیل کړه چې‌دد غــه دښمنی څرنګوالی دمخه لیکل شو ی دی .حو کله چی په اوسنی‌مقبو ضه سیمه باند ی یی قبضـــــــــه تینګــــه کړه نو د فاصلی د زیـا توالی په سبب یی دکاکړو او لهون سره د دښمنی ښنی پاتی نه دی . دوی څوڅو ځله دمیاخیلو اوبا برو سره جګړی وکړی اوسره له دی چی‌دولت خیلو له دوی سره د ورو د کلوی سلوك او چلند کاوه خو بیا هم ورسره جنګیدل . دمروتو سره هم دوی په ټکواړه کی سخته جګړه وکړه او ددیری‌دنواب صاحب سره‌یی دجګړی په وخت کی ماته وخوړه .اوس که څه هم دسرکاری ښـــــه انتظام په وجه دچاسره ښکاره‌دښمنی نه لری،خود میاخیلو سره‌یی میراثي او پخوانی دښمنی نه ده هیــــره کړی .

**دګورني دښمنی څرنګوالی :**

که څه هم ددوی کورنی دښمنی‌ډیره سخته نه ښکار ی چی د هغی له مخی ټوله قبیله په دور وګوند ویشلی وکښل شی خود ازادی پـــه وحت بی دوی له جګړی نه خــلاص نه وو، په اوس وخت کی که څـــه، هم دوینوتو یولو او دښمنی نــوم او ښنان هم پاتی نه دی حـــو د ګلداد حان او فالو خان دګوندی اودښمنیو په سبب اکثراء ګنداپور ــ یان په دووګوندونو وویشل شو ل ځینی یی دګلداد خان په ګوندئ او ځینی یی دقالو خان په ګوندی کی شامل دی اوبیا ځینی خلك ددغـــو کوندونو موقعیت ته .ګوری او هرڅوا چی ده ته په زړه پـوری وی هماغه مخی نو ځکه یولړبدلونو نه په لی راځی اوښایی چی دغه کوچنی دښمنی هم له مینځه ولاړه شی.

**ددغی قبیلی شمیر :**

داحمد شاه ابدالی دشمیر لـــه مخی ددوی ذوسله والو کسانوشمیر دولسو زروتنو ته‌رسیده، خوښا یی‌اوس ددوی شمیر دیرش زرو کسا ــ نو‌ته رسیدلی وی .

**ددوی اوسنی استوګنځی:**

دګنډا پور یانو سیمه دد یـر ه اسمعیل خان د ضلعی په د ننه کی موقعیت لری . سهیل‌ته یی د میـــا خیلو سیمه ، قطب ته یی دولـت خیل ، لویدیځ ته‌یی دتخت سلیمان‌دغره لمنی او ختیځ ته یی د ډیره اسمعیل‌خان سیمه موقعیت لر ی .ددغه قبیلو لوی کلی په دی ډو ل دی :

۱-کلا چی د کنداپور یا تـو درئیس باراتا ن په وخت‌کی آبـا د شویدی او ددغه ځای دتسمیی وجه دا ده چی دمخه په دغه ځای کـی کله چی بلوڅ اوسیدل نو له دی کبله دغه ځای ته دکلا چی نـوم ورکول شو .

۲- تکواړه : چی د عمران زیـو کنداپور یانو د آزاد خا ن دخا نی په وخت کی اباد شوی دی .

۳- لونی : چـی د سلیمان دغره په ختیځو لمنو کی دلونی د ویالـی په غاړه موقعیت لری .

او دا غر نی و یاله دکنداپوریانودسیمی د ځمکو دخړو بو لو له پاره ډیره گټوره ده .

٤ - مډی : چی دد یره اسمعیـــل‌خان دلاری په پور تنی بر خه کـی موقعیت لری .

٥- رو هړی .

٦- کوټ ظفر .

دوی دکورونو او استو گنځیو له پاره د ختو کوړ و نه جوړ وی چـی اکثراً یوه خو نه لری .

## د کنداپور یانو بڼی او عادتونه :

کنداپور یا ن سره ته مایل غنم‌رنگه رنگو نه ، بیضوی څیری ، لوړ قدونه ، پیا وړی ، غښتلی او قو ی‌هیکله ځوا نان دی .

لکه ددا مان دنورو خلکو په شان‌دوی هم غټ او غښتلی هډو کـی لـر ی .

کنداپور یان سنی مذهبه خلـک‌دی او هیڅ کلی‌یی دجو ماتـو نو او ملایانو نه خالی نه‌وی .که څه هم‌ددغه خلکو چال چلند بدنه دی خـو کینه کښ او بخیل دی . دوی‌دخپـل‌سیال بر تر ی د ستر گو اغـــز ی گڼی . په دوی کی د چلم او نصواروواستعما ل ډیر زیات روا ج لـری. هغوی په یوه اوار میدان یا چو ک‌کی راټو لیږی او دنصوارو پـــــه اچولو او چلم په څکو لو بو خت‌وی‌اوټو ل چلم کښ خلک په خپلـــو اوږدو دستما لو نو کی تمبا کوساتی‌دوی دښکار کولو سره ډیره مینه نه لری . په هر میدان کی چار تاره اورباب غږ ول کیږی . په دوی کـــی مسخره باز ی او دبنگو او چر سـوڅکول ډیر مرو ج دی . همدا رازدوی بی علمه او خود خواه خلک دی.

## کسبو نه یی :

گنډ اپور یا ن په عمــو مي ډول‌دکرني په چارو او سودا گر ی بوخت دي. دخا نانو ملايانو او ځينو ســورومعز زو کور نيونه پر ته نور ټول‌د کرنی چاري په خپله ترسره کو ی‌خو ځيني يي بزگران او په خيټـــه بـاندي کار گر هم ددغه کار له پاره‌استخدامو ی .

گنډ اپور يان په خپله کسب کــــی‌زيار کښئ او دکار لپاره ډير مساعد دی .

دگنډ اپور يانو سودا گرا ن پـه ساړه موسم کی هندو ستان او پـه گرمی کی د نور و پووندو وو ســره‌يو ځای لو يديځ افغا نستا نځرا ـ سان او حتی ځينی يی تر تر کستان‌پوری ځی .دو ی اکثرا شتمن او هو سا خلك دی او ځينی شتمن خلك يی‌چی په خپله تجار ت پسی نه ځــی‌ء نو خپل يو نما ينده او استاز ی‌په دغه کار پسی ليږی . ځينی خلك‌سر کاری نو کری او ملا زمتو نه هـــم کوی . خو د مليشی او بی قانو نــه سپرو لښکرو نه پر ته دپلی پو ځ کی له نو کری او ملا زمت ســـره چندان مينه نه لری .

په دوی کی ما لدار ی په تيره بيـــاداو ښانو د گلو سا تنه ډيره رواج لری . داوبو د راوړلو له پاره پـه هر کور کی يو خر مو جود دی .دوی داسانو سوداگری هم کوی خوددوی‌په ملك کی کچر ی‌نشته .

**خوراك :**

څرنگه چی ددوی په ملك کی‌دباجری کرنه او پيدا وار ډير دی نو ځکه اکثره خلك د ژمی په مو سم کی‌دبا جری ډوډ ی له تروو (شړومبو) سره يو ځای خور ی او په گر مـــی‌کی ټيټك * يعنی دکو چنی هندوانی تر کاری پخو ی .

---

* ټيټك د کدو په شير اود توری‌په اندازه يو ډول سابه دی (پښتو پښتو تشر يحی قامو س) دو يم ټوك(۱۲۲۳ ) مخ .

ښتمن او ماړه خلك د غنمو ډوډۍ مصرفوي او په ژمي کې د پسه غوښه د نورو حيوا ناتو د غوښو په پرتله ډيره استعمالوي او داوربښت په موسم کې څو تنه ملګري سره يو ځای کيږي او له هر کور نه يوه اندازه زيړ غوړي چرګان او نورشيان راټولوي او په يوه مناسب ځای کې يې خوري چې دوی دغې ميلې ته صحبت وايي . دوی د شير يني سره ډيره مينه لري او ښه نفيس خواړه په دوی کې خوراله دي او د لونی دو يالي د سيلاب عمده تاثير دادی چې په اکثرو ځايونو کې چې يو کال باجري و کړي نو همد غه ځمکه په بل کال بيا هما غه حاصل ورکوي په همدي ډول پنبه هم په دوه فصله ډول لاس ته راځي .

## پوښاك :

ددوی پوښاك عموماً د سپينو نه جوړ شوی وی ، ددوی دسيمې پنبه دهغوی دمصرف نه زيا ته او دبحر له لاري بمبی او نورو ځايونو ته وړل کيږي ، د وطني سپين ټوکر نه پرته حا نان او ښتمن خلك خاصه او لټه هم اغو ندي، همدا راز دوی اوږده کميسونه او پراخ پرتګونه اغوندی او سپينی پګړی په سروی چې د ځينو پګړی اوږدی او د ځينو لنډی وی .ددوی دو پښتو اوږد والی برابر اوږدو پوري رسيږي او اکثراً يې په تيلو هم غوړوی .دوی په خپلو اوږدو سپين څادرونه يا لونګۍ اچوي او په خپل ملك کې جوړ شوی بوټان په پښو کوي او جامي يې صوفيانو ته ورته دی. خود ناليو او پوښاك ښه ښکلی نه ده په ژمی کې د دوی ځينې خلك داو ښانو له وړيو نه جوړی شوی چينی پر اوږو کوی خو ډير خلك پوستينو نه اغوندی د ښځو جامی اکثراً تو ری او کميسونه يې تر پښو پوري رسيږي خود شتمنو خلکو ښځې د کمخواب(کينخاب) درايي (دره يي) او نور اعلی ډول ټوکران او پوښاك استعمالوی .
د ښځو اکثريت داوږ بو درا وړ لودنده لري او مخ پټول او ستر د شتمنو او معززو کورنيو نه پرته په نورو کورنيو کې لږ دی.

## دهغو دقبيلې بيان چې داسترا نی (ستو ريانی ) په نوم هم بلل کيږي.

څرنګه چې وړا ندی وويل شول چې د استر يا نی يا سترا نی له پنځو زامنو نه څلور تنه يې دګنډا پور يانو په نامه مشهور شول او يوازی يو تن يې چې همر نوميده دخپل لوی نيکه استر يانی (ستوريانی) په نامه بلل کيږي . ديو تن د قول له مخي همرددريوز امنو پلار و چې لو مړی يې مشاء ، دويم يې چرمش او دريم يې اهد وو.
مؤلف يوازی ددغه قوم له يو تن سره چې دين محمد نوميده ملاقات کړی او نوموړی دهمر دنسب شجره چې په ستر يانی (ستور يانی) سره مشهور دی. داسی ليکلی او ويلی ده.

د هم ابن ستریانی د نسب شجره



## ددغه قبیلې لنډ تاریخ :

دهمر قبیله چې په ستر یا نی سره مشهوره ده دباړ و قبیلې په سهیل کې پر ته ده چې یو شمیر یې دسر کار په آوارو سیمو او یو شمیر نور یې په غر نیو سیمو کې اوسیږي . ددوی سهیل ته کسر انی بلو څان او لو ید یځ غره ته یې دامر زایي قبیله استو ګنه لري.

ددوی لوی کلي امك، پیور کوی، وچه کوی ، منګل او ګنډی دي . ستریا نی په پیل کې د مالداری په چارو بو خت وو او د پوونده وو په شان به یې چې چیر ته ښه څړ ځای ولید نو هلته به یې خپله ګو زاره کو له .ډیره موده تیره شوی نه ده چې دوی خپله اوسنی سیمه له بلو څو نه تر لاسه کړې ده. دوی ددامان ټولو اوسیدونکو قبیلو دښاخو نو نه ورو ستــه میدان ته راغلي او ور پسي یې د بابړ د سیمي شمالي بر خي هم د تو رې په ز و ر په خپلو حدود وکې شاملې کړي. دوی په ژمي کې په همد غه میدان کې اوسیدل اوپه دوبي کې به دمو سی خیلو کاکړ و غره ته تلل خو تقریباً (۷۰) کاله کیږي چې دهغو سره دبی اتفا قی په وجه د ستریانو قبیلي نمیایي خلکو خپل مالونه اوڅاروی خرڅ اودکرنی په چارو یې پیل وکړ، دوهمی نمیایی خلکو غوښتل چې خپل پخوانی کسب ته ادامه ورکړي ،خو په پای کې هغوي هم دکرنی په چارو پیل وکړ خودوه ښاخو نه چې مشهور یې مشی زی دي دپخوا پــه شان په پوونده ډول، ژوند کوي ددي قبیلي خلك په مسا وي ډول په تجارت زمینداری بوخت دي ، دسودا ګرانو په ډله کې کرایه کښ هم شامل دي چې، دوی اکثره بارونه دوښانو ،غویانو اوخرو په ذریعه وړی سودا ګران اکثرا شتمن اوهوسادي او یو بله ډ له یې دنورو پوونده ووسره یو ځای تګ راتګ کوي. ددوی ټولي زراعتي ځمکې په سرکار ی حدود وکې پر تې دي، هغه ستریانی (ستوریانی) چې په غره کې اوسیږي دهغوی ځمکې هم په لاندې میدانی برخو کې موقعیت لر ي له همدې کبله انګریزی سر کار په دوی باندې نفوذ لري ، دوی په خپلو ځمکو کې دمنی په مو سم کې ډیری باجری اوپه پسرلی کې غنم کري ددغو پیداورو په سبب دوی په ژمی کې باجره او په اوړی کې غنم استعمالو ي دوی دپسو نو رمې هم ساتی او دپسونو او غوایانو غو ښې اود اور ښــت په فصل کې خوري .

ستریا نی دسپین سپتیسن تو ،گرنه جوړ شوی ، گالی اغوندی دوی ښتـــی پګړی په سروی او معتبر خلك یی په اوږو لونګی هم اچوی دښځو جامی یی ونکه دی . ددغه قبیلی خلك زړور او ښه سلوك خاوندان دی او دکسرانی بلوـ څو سره سخته دښمنی لری، دوی دخپل قوم مشر دخان په نامه یادوی .اوس رمضان خان دامن زی ښاغ او فتح خان ککل زی ښاغ خانان دی.ددغی قبیلی شمیر ددو ی له همسایه گانو سره تقریبا دری زرو کورنیو ته رسیږی،خو ښاـ یی تر دغه اندازی نه یی شمیـــر لږ وی .

دوی په کوټو او څپرو کی ژو نـــدکوی.په هر کلی کی یی جوماتونه موـ جوددی او ګلیو نه دباندی وړی باندی هم لری چی دوی یی دجهوك په نامه یاـ دوی ټول سنی مسلمانان او کلك دینداه دی او شرعی فرایض په ښه توګه تر سره کوی کله چی دکوم غلیم ســره دجګـــړ ی پـــه مـــــــنظو ر ددو ی لښکری راټولیږی نو دهغو ی مشری دخان په لاس کی وی. اودشیرا نیو په شان دخان په لونګی کی قران شریف ایښود ل کیږی او لښکر نی دد غه څادر نه لاندی تیر یږی او دوی عقیده لری چی دخان زی نظر ز ی او اخوزی ښاخونه دکلام الله شریف په زور ددښمن دتوپك او توری گوزارو نه بندوی .ددامان خلك ستر یانـــی (ستور یانی )کورن ی په تیره بیا دد نظرزی او اخوزی خان زی ښاخو نو نه ستانه ګڼی په دوی کی خان ډیر واك لری اکثرا شخړ چی دغره په دننه کی پیښی شی نو هغه دکلی دقاضی خان یا مشر لخوا فیصله کیږی .

په دوی کی څو کوره بلوڅ ،جټان او هند وان هم دهمسا یه او رعیت په ډول ژوند کوی.دوی ډیری ښی وسلی لری او دتوپکو سره زیاته مینه کوی.

**دهنی قبیله :**

څرګنده ده چی دغه قبیله خپل ځانونه په لومړی ، سړکی ـ له کرړا نـــی یا کرلانی سره ګډوی او څر نګه چی دبنو په تاریخ کی لیکل شوی دی دـ هنی قبیله منګلو سره یو ځای اوسیده ه چی تر اوسه په دغه ملك کی دهنی منګلو په نامه سره مشهور دی او دبنو په ملك کی میشته وو.دشیتك او لاده

## د هنی د نسب شجره



بتو زئ چی اوس د بنو سیمه د دوی په لاس کی ده تقریبا (۵۰۰) کاله وړاندی یی هنی او منګل له دغه ملك نه وشړل او په دغه وخت کی یو شمیر هنی هندوستان ته لاړل او یو شمیر نور یی د منګلو د قبیلی لوید یځ غره کی میشته شول. اوس په دغه قبیله کی د دو مشت ښاخ چی د دومشتی اویا دومختی په هم یادیږی مشهور او دیا دولو وړدی. دومخت یا دومشت ښکښ داور کزیو او کورمی تر مینځ او د سپین غره په جنوب ختیځ غرنی سیمه کی میشته دی او دغه قبیله په دوو ښاخونو باندی ویشل شوی ده. د دغه قبیلی د وسله والو کسانو شمیر نه زره ته ښودل شوی دی. دوی لوړ قدونه لری او مضبوط خلك دی، او اکثراً د کرنی په چارو او شیانو په خرڅولو بوخت دی او ځینی یی د بهادر حیلو له کان نه مالګه استخرا جوی او وکټی تر لاسه کوی. په دوی کی کور نی دښمنی هم شته خو له چاسره سخته بهرنی دښمنی نه لری، کله چی د دغه سرحد داقوا مو د ګوندیو په باب خبرې نه وشی نو دغه قبیله باید په سمل ګوند ی کی شامله وګڼل شی.

## دورد ګو قبیله :

د دغی قبیلی خلك ځانو نه د کرړانی یا کر لانی په زوی کودی ورګډ وی او لکه څرنګه چی د مخه وویل شول، دوی ځانونه سیدا نبولی او د دی قبیلی د پیدا ینبت اصلی ټاټو بی د سلیمان د غره لړی د برمل غردی چی له هغه ځایه د کر لانی ټوله قبیله خوره وره شوه او په او سنی سیمه کی میشته شول د هغه ځای په با ب چی اوس دورد ګو په لاس کی ده دومره باید وویل شی چی لوید یځ ته یی د هزاره جات غرو نه او پا ړنی دریو خوا ته یی د غلجیو د قبیلی سیمه مو قعیت لری د دوی سیمه د وادی په ډول شما لاء او جنو باء اوږده پرته ده او ختیځ او لویدیځ دواړو خوا وو ته یی غرو نه موقعیت لری. د ختیځ غره ختیځ ته یی لوګر او خر وار مو قعیت لری او لویدیځ غر یی په هزاره جات پوری مربوط دی. د دغی سیمی له سهیل نه یو سین چی سهواء د غزنی د سین په نا مه یادیږی پیل کیږی او ډیری ځمکی خړ وبیوی او شمالی خواوی یی د لوګر د سین په واسطه او به کیږی، تنګی، شیخ اباد، شنیز، خوات، سه آو او جغتو د دوی د ملك مشهور ځایونه دی، د دوی سیمه اکثراً شنه او زر خیزه ده، خو د منی موسم یی ډیر لند دی. غنمی وریجی ډیری پکښی

کیږي او په پسرلي کي غنم اواوربشي په پریما نه اندازه لاس ته راځي، وردګ ټول دکر کیلي په چارواحته او ډیر زیا رکښي خلك دي. ددوی نه ځیني یيد مالداری کسب هم کوی خو استو ګنه يي دایمی او په کوچنیو کو چنیو کلیو کي او سیږي. اکثرا کلي یي له پنځو سو کورونه کم کړرو نه لري.

دور دګو له ملك نه کابل اوغزني ته لاری تللي دي، وردګ نیك چلن او بي ازاره خلك دي. دوی ټول سني مذهبه مسلما نان دي. او کله چي په ژمی کي واوری وور یږی نـــودنیا یي چاری پریږي دي او اکثـــراء وخت په جوما تونو کي دخدای پـــه عبادت تیروی. وردګ، دجګو ونـــو خاوندان او کلك خلك دي.

دوی اکثراء دغو ښو او غلمینـــي ډوډي نه استفاده کوی او هغه ډوډي چي په تناره کي پخه شوی وی ډیره خوښه وی پوښاك يي اکثراء ښکلي نه دي او زیات شمیر خلك يي کابلي ډوله ټوپي په سروی، دوی دخپلـــو ګاو نډیو قومو نو سره شخړی نـــه کوی او کور ني شخړی هم په کـــي لږی دي.

ورد ګ دکابل امیرته تا کلي محصول ور کوی او هغه شخړی او جګړی چي ددوی تر مینځ پیښښي شي په تیره بیا درني پیښي دغزني دحاکم په وړاندی فیصله کیږي او پاتی وړی پیښي اوجګړی دملکا نو او قا ضیانو له خـــوا فیصله کیږي. ددغه قبیلي ټول شمیر لس زره کوره ښودل شوی دي چـــي دشمیر له مخي لوړی دمیر خیلـــو ښاخ او ورپسي مهیار (مایار) او بیا نوری دي، چي دد ی خان هم په همدي ښاخ کي دی .

اوس خدای نظر خان، متیق خان اواکرم خان ملکان دي. دورد ګو قبیلي یو زیات شمیر کور ني دراو لپنډی دضلعي دچهچه په سیمه کي اوسیږی او په تیره بیا دنتو سیمه له دوی نه ډکه او هلته هم دځمکو خاوندان دي.

### دمشواني قبیله :

دوی ځا نونه سیدان بولي اوخپلي لو مړني اړیکي دپښتنو کاکړو سره ګڼوی، او ددغي قبیلي شمیر لـــږ او په متفرق ډول او سیږی، د دوی څلور سوه کور ني په کهدا مـــن (کو هدامن) کي چي دکابل نه پنځه ویشت میله شمال خواته مو قعیت لري استوګن دي. دکهدامن (کوهدامن) مشوا ني په کر کیله او ځیني يـــي په سودا ګری باندي بوخت او همدا

## د وردګ د نسب شجره

- مکک
- معیار
  - ملکیارخیل
  - خوږم خیل
  - آدین خیل
  - مصری خیل
- میرخیل
- نوری
- نرم
- ګدائی

ددوی اوسنی مشر خدای نظرخان .

## د مشوانی د نسب شجره

- لودین
- شکانی
- سلطانی
- روغانی
- تغض
  - کیوړ
  - مهمند
  - بدور
    - یوسف خیل
    - موسی
    - آدم خیل
    - سنجر
  - ترک
- کزبونی
- غزنب
- خربادی
- یاغن

## دکومتی د نسب شجره

٢٠٣٣٦

- حسن شاه
- محسن شاه
  - جنګ شاه
    - میری خیل
    - سینی خیل
    - دولت خیل
  - فیروز شاه

راز دوی دخپلو اوښانو په ذریعه تجار تی مالونه ان تر بخارا پورې انتقا لوی. دوی دهو سا ژوندښبستنان دی. ددوی خو کوره په کند هار کی

هم میشته دی او دکند کهرد، غـره په شما لی برخه یعنی دهزاره دضلعی په سری کوټ کی هم‌مشوانی استوګنه لری ،همدا راز دوی د ګند ګر په خبر باره نومی ځای کی هم‌او سیږی‌خو ددی پته نشته چی هلته کلـه تللی دی . خلك مشو ا ن---ی دستا نه او پیر انو په ډول ښو لی.

دوی نیك چلن او کم ازاره خلك‌دی‌په تیره بیا ددی‌قبیلی دلو دین‌ځانګه چی دغلجیو تو خوپه ملك کی پـه متفرق ډول، ژوند کوی. همدارنګه

ددوی خو کور نی په کند هار کـی‌استو ګنه او په دی سبب د*کرور دی چی د لو د یـــن لـــــه ځانګی نه دملابید وزوی محمدرفیق

اوس دکا بل دوالی امیر شیر علی‌خان‌خاص‌مشاوردی* اوهم‌دده تره‌ملا نسو لوی سودا ګر او دکار ښبتن و.

## دخوند ی قبیله :

ددغی قبیلی دنسب شجره ترهغه‌ځایه چی معلومه وه‌دغرغښت قبیلی ددا وی دښاخ سره یوځای‌له‌دی کبله ولیکل‌شوه چی دغه قبیله په هغه

پوری مربوطه ده خو څرنګه چی خوندی ته هم سیدان ویل کیږی نوله دی کبله یی‌دلته لنده ذکر مناسب‌وګڼل شو. ویل کیږی چی داوی ابن

دانی چی دغر غښت لمسی ودیـــوی‌سیدی کوندی‌سره چی‌دخجند ولایت نه ملتان ته دخپلی خور دلیدلو له پاره روانه وه نکاح وتړله اوهغـی له خپل‌لو مړی سید میړه نه یوزو ی‌در لود چی سید حسین نو میـد • نوموړی څلور زامن لرل بلبل‌سکندر،موسی اوعلی چی دسید حسین‌اولاده

له دی کبله چی‌دی دخجند دملـك و دخجندی په ځای پښتنوپخپلو ورځنی محاوره کی په خوندی واړاوه .دوی‌تر یوی مودی پوری دغرغښت له قبیلی سره په ګتیه اوتاوان کی‌شریك ووخواوس دوی بیخی بیل دی اوپـه کندهار او دهغه په شاو خواکی‌استوګنه لری او شمیری یی خورا لږ د ی.

## د سپند زی قبیله :

دوی ته سیدان هم وایی او دترین له قبیلی سره یو ځای دپشین پـــه سیمه کی په کرکیله او سوداګری بوخت‌دی . ددوی په باب ز یـــا ت معلومات ترلاسه نه شول .

*سردار محمد خان لودین کندهاری‌دامیر شیر علی خان وزیـــــر و

## دغر شین قبیله :

دغر شین دقبیلی ذکر د پښتـــو دمیانه د ښاخ سره یو ځای ولیکل شو، دکندهار او دمغه دشاو خوا نه پرته دغرشینو تقریباً پنځوس کوره ددوړو په شمال لویدیځ کی او سیږی ا و وایی چی دوی دحضرت بلال( ر ض ) اولاده ده خوددغه روایت کوم ثبوت نـه دی ترلاسه شوی او دوی کلـه په غلطه دغرشین په ځای دخرځین په نامه یاد یږی .

## دکوتی قبیله :

ویل کیږی چی د کوتی په نـــوم یوسید زاده دبیتنی لمسی ابراهیم وروزه او هغه وخت چی لوی شـــو ،بیتنی په کورنی کی یی واده وکړ او دوه زامن یی پیدا شول چی محسن شاه اوحسن شاه نومیدل ، محسن شاه بنو ته لاړ اوحسن شاه په غره کی پاتــی شو . دمحسن شاه زوی فیرو ز شاه څو قتلو نه وکړل او دبدل له ویر ی تاك ته لاړ چی هلته تر اوسه هـم دده اولاده شته . ذمحسن شاه بـل زوی جنګ شاه په بنو کی ووژل شو چی قبر یی د کڅ دهاوه په څنـده کی موقعیت لری ، اود جنګ شاه اولاده دجهند وخیلو اوسورا نیو تر منـځ په کوتی سادات کی میشته دی. دبنو په سیمه کی ددوی قبیلی یوازی پنځوس تنه شته چی نجم شاه یی ملك دی .

## سیدان :

دبنی هاشمی قر یشو نه د حضرت امام حسن (رض) او حضرت امام حسین (رض) اولادی ته سیـــدان وایی . دافغانستان هیڅ یو لوی کلی نشتـه چی یویا دوه کوره سادات دی په کی نه وی . په افغانستان کی سیدا نـو ته دخپل معمولی نوم نه پرته خواجه ، سید ، میا، آغا ، پاچا، صاحب او میر هم وایی ، خلك سیدانو ته ز یـا ت درناوی کوی اود هزاره جات او دیره اسماعیل خان نه پرته په افغا نستان کی هیڅ یو سید داهل تشیع څخینی نه دی . په افغانستان کی د پشیـــن سیدان په تجارت او سودا ګری کی مشهور او دکلکی ارادی خاونــــدان او شتمن خو سر زوری ، بی باکه دی ا وکورنی شخړی په کی ډ یری دی . دپشین په سیمه کی ډیر سیـــدا ن ژسی.داور ګون، بنواوزرمت په سیمه کی دشیخ شاه محمد روحانی (رح) اولاده ډیره ده په ټونړونو کی دسیدا نـو یوه معززه کورنی شته او هغـــه مشران چی له دغه کورنی نه تاکـل کیږی دوی ورته بادشاه ( پاچــــا ) وایی ، دغه شریف خلك په هرملك کی شته .دوی دښه چلن خاوندان او بی ازاره خلك دی ، په کا بـــل او کوهستان کی داسیدانو معززی کورنی شته چی اکثراً دافغانانو (پښتنـــو) پیران د ی .

# د اسمعیل یا بنګښ د نسب شجره



## قریش :

د سیدانو نه پرته چې د قریشودقام یو ښاخ دی پاتی قریش هم دساداتو په ډول په متفرق ډول په هر ځای کی شو کوره استو گنه لری . دافغانستان په اکثرو ځا یو کی دجو ماتونو ملایان او مدا رسا ند همدی خلکو نه دی .دوی په زمینداری اوخیرات خوری باندی گوزاره کوی . دافغانستا ن خلك دقریشو عزت ا و درناوی کوی .او دسادا تو په نسبت دقریشو شمیر بیخی لږدی .

## عرب :

د قریشو نه پرته لږ شمیر عرب هم په افغانستان کی او سیږی د وی ښایی له ایران ا ولویدیځ خرا سان نه افغا نستان ته راغلی و ی. کله چی سامانی کورنی په بخارا با ندی واکمنی لرله نو عربدایران په ختیځه برخه کی اوسیدل اوترهغه وروسته دغی سیمی ته راغلل . په افغانستان کی دعربو تقریبا دوه زره کورنــــی شته او د عربو نه پر ته کوم بـــل نوم نه لری . دوی زیاتره د کابـــل په بالاحصار شاوخواکی اوسیږیاوتول شعیه مذهبه دی اوپاتی یی چــــی دجلال آباد په بهسود وکی اوسیږ ی هغه سني مذ هبه دی. د جلال آبـادعربان ځان ته جلا ســـردار لر ی ، ابدالی احمد شاه دجلال آبادی عربو دسردار له لور سره واده کـړی ا و تیمور شاه دهغی له بطن نه دنیــاته راغلی و دوی اوس په خپله اصلـــی ژبه یعنی عربی خبری نه کوی بلکــی په پښتواو فارسی ژبو کې یږی . دجلال آباد عربان په کرکیله بوختدي،خود کابل عربان به نوکـر ی ، سوداگری ، لاسی کارونو او دکانداری بوخت دی . اودپاتی قو مو نو نـــه تراوسه پوری په جلا ډول ژ و نـــد کوی .

## دبنگښي قبیله :

ددغی قبیلی خلك ځا نونه دقریش له نسله بولی او وایی چی د خالـد ابن ولید د زوی عبدا لله نــــــه راښکته په لسم پښت کیاسمعیـــل پیدا شواو ده دووزامنوکاره اوسامل ترمنځ چی موریی دفرملی دقوم نه وه سخته جگړه رامنځ ته شو ،اوله دی امله دین کشش په نوم یاد یدل چی په عامه اصطلاح کی خلك د وی بنگش بولی .ددی قبیلی لوی نیکه اسمعیل دگردیز دعلاقی په زرمـــت کی اوسیده ،ددوی دکورنی جگـړی له کبله وچی د کاره‌اوسمل په نومونودبنگش په تول قبیله کی دوی ټوندی رامنځ ته شوی لودولړه گو ندی په خپلو منځو کی سره سخته دښمنـــی

لری . کله چی ددغی قبیلی شمیر په زرمت کی مخ په ډیر یدو شو او له
بلی حوایی د غلجیو د قبیلی ز و ر ولید نوتقریباً (۵۰۰) کاله ور ا ندی
یی دغه سیمه پر یښوده او په کرمی، پیوار اوشلوزان کی چی دسپین غر ه
په جنوب کی موقعیت لری خپلـــه قبضه ټینګه کړه او تردی مودی نــه
تقریباً سل کاله وروسته یی داور ك زیو له ښاغ سره په جګړه لاس پوری
کړ. په هغه وخت کی د ختکو قبیلـــی هم دبنګښو سره مرسته و کـــړه
او داورك زیو لاس یی تر یوی سختـــی جګړی وروسته له کوهاټ نه لنډاو
دغی قبیلی خپله قبضه ور با نـــدی ټینګه کړه .ترهغی وروسته دبنګښو
او اورك زیو ترمنځ ډیری جګړی وشوی حو په پای کی دهغی فیصلی له مخی
چی ذکر یی داور کز یو د قبیلی پـــه برخه کی لیکل شوی د بنګښو او اور
کزیو ترمنځ سر حدو ټاکل شو .

میدان او هغه دره چی اوس د بنګښو په لاس کی ده دوی ته پلاس ورغلـــه
او شمالی غر اور کز یو تر لاسه کړ. دبنګښو دنسب په باب دویـــــم
روایت داسی دی چی دوی دسیستان ذ ملك ذجټ دقوم یو ښاغ دی ، خـــو
دا روایت ضعیف ښکاری اوس بنګښ اکثراً دکوهاټ په ضلع کی میشته
دی او پاتی یی په لویدیځ ی نورمی او شلو زان په سیمو کی استوګنــه
لری . د بنګښو وادی غرباً او شرقـــاً یوازی دمیدان او دغرونو په ذریعـــه
احاطه شوی ده ددی سیمی په ختیـــځ اوسهیل ختیځ کی دختکو قبیله ا ود
هغو ی غرنی سیمه موقعیت لـــر ی، په شمال کی یی داورك زیو قبیله او
په جنوب لویدیځ کی یی د وزیر و دقبیلی حدود او لو یدیځ ته یـــــی
دکورمی سیمه موقعیت لری .

هغه بنګښ چی دکورمی پـــــه علاقه ا وپیوار کی اوسیږی نو هغه
دتوری دښاغ په دریعه مغلوب شوی دی ، دشلوزان اوسیدو نکی خـــــود
مختار ه او دکوهاټ دضلعی اوسیدو نکی دانګریزی سر کار رعیت شمیرل
کیږی او اکثراً په کرکیله بو خـــت دی ، ځینی یی دسودا ګری اومالګـــی
خر څولو کسب هم کوی .دبنګښـــو بدر ګه ددو ی په ملك کی بی خطره
ده . ددوی دسیمی زراعتی پیدو ا ر غنم او وریجی دی ، ددی ځای هـــوا
ډیره ښه ده ددی قبیلی ځینی شیعه او ځینی سنی مذهبه دی . دبنګښو
ټول شمیر تقریباً اتلس زره کـــوره ښودل شوی دی ، دو ی زړه ور ا و
جنګیـــا لـــی خلـــك دی ، او له هره یوه بالغ سړی سره تو پـــك ،
لو یی چړی او ددوی په ملك کـــــی جوړ ی شوی تفنګچی موجودی و ی
که څه هم دوی ډیره لار و هنه نـــه کوی خو په خپله سیمه کی مشهـــور
غله دی . دوی ډیر ښه میلمه پـــال دی په هغه شرط چی مسافر لـــــه
خطراونو بچ او وکولای شی ځان د کور به کورته ورسوی .

بنگښ غنم رنگه او دتیتو و ښو خاوندان دئ خوراك یی ښه اودتناره ډوډی له غوښی سره خوری. دهغو وریجی ډیر ی ښی دی ، بنگښ سپین تور رنگه یا بانجانی رنگه پگړ ئ به سروی . ددوی کمیسو نه اکثراً تور او یا سپین رنگه اوږده او تـرژنگنو پور ی رسیږی ، دوی پرا خه سپین رنگه سوسنی یا بانجا نی چی نیلی لیکی لری اغوندی . او څپلی په پښو کوی اوهم کله کله لونگی دکمر بند په شان له ملاوو نه تړی او څادرد لونگی په شان له سر نـه تاووی .

دبنگښو نارینه دسـرد ذوا ړ و خواوو لړ ویښته دزلفو په شان دیادولو او دپور بیه غو ند ی پر یږدی او دسر پا تی برخه خریی .

ختیځ بنگښ اوږد ی ږ یـری پر یږدی ، خولویدیځ بنگښ خپلـی ږیری خریی ، ښځی یی اکثراً تـو ر رنگه کمیسونه اوگیهره داره سوسنی پر تگونه اغوندی دوی به سر سپین څادرونه یا لونگی چی غاړی یـی وریښمینی وی استعمالوی .د دوی لوی کلی دا دی .

نری او په تل، درسمند ، هنگو ،اوسترزی، گسای ، توغه ، توره وړی کځ اومد خوزه . اوریدل کیږی چـی دافغانستان نه پرته د ایـرا ن دمازندران په صوبه کی هم دبنگښو څو کورنی شته چی له دغه ځـا ی نه هلته تللی دی . دهندو ستا ن په ځینو اضلاعو کی هم په تیره بیا په فرخ آباد کی ډیر بنگښ او سیږی. دفرخ آباد نواب هم دذی قبیلـی دی ددی پورتنیو بنگښو نه ذ یـو ه زمیندار دا ولادی نه و، په پیل کـی دفرخ آباد نواب دلکهنو و زیر تـه څلور نیم لکه روپی ورکولی . پـه (۱۸۰۱ ) ع کال کی هغه څلور نیم لکه روپی دلکهنو دریاست له خوانه دانگریزی سر کار لاس ته ور غلـی او په (۱۸۰۲ ع) کال کی دنومو ړی سیمی اداره اومالیات کال پـــه یو لك واته زرو روپیو دپه ورکولو نواب امداد حسین خان ناصر جنـگ انگیریزی سرکار ته پرینبودله . د

(۱۸۵۷.) عیسوی کال په بغاوت کی نواب تفضل حسین خان د بی اعتدا لی په وجه وشړل شوچی اوس په مکـه معظمه کی دی.*

لنډه داچی دافغا نستان پـــه سرحدی قبایلو کی بنګښ د قدر وړ او قوی قبیله ده خو کینه کښ ا و کورنی شخړی په کی ډیری د ی.

په دوی‌کی دما لداری شوق خورا لږ دی دوی اوښان هیڅ نه سا تـی خو دکچرو ګلی په کی ډیری دی.دوی‌دبارونو له پاره له غوایانو، خرو او کچرو نه استفاده کوی.

## «د تاجکو دقوم بیان»

په افغانستان کی به داسی ډیـر لږ ځایونه و ی‌چی هلته دی یوا ز ی افغا نان (پښتانه) میشته و ی.

تاجك په لوید یځو برخواو هنـد کی په ختیځه برخه کی د افغا نانـو (پښتنو) سره یو ځای اوسیږی.تاجك په خپلو منځو کی دیوقوم په شـا ن سره نه ګډ یږی، خو دلویدیځ افغا نستان په شان دآسیا د براعظم په یوه بری اووچی برخه کی خواره واره‌دی.دوی د اوزبیکو په ملك کی هـــم اوسیږی ، دایران اوسید ونکی‌د وی تاجك بولی ، تاجکان په ایران پـه تیره بیا به اصفهان او ترکستان کی‌هم په زیات شمیر استوګنه‌لری او په خیوا، ګرك تګین ، ** اودبدخشان په درواز کی حکمرانی کوی ، ځینـی وخت دوی‌ته فارسی با ن (پارســی‌زبان) هم وایی په افغا نستان کـی چی کوم اصلی پارسی وانا ن‌دی‌هغوی تاجکان دی.

## دتاجك دکلمی دتسیمی وجه :

دتاجك دکلمی دتسیمی دوجی په باب مختلف او بیل بیل روا یتو نـه موجود دی خود ذ نورو ټولو روایتونو نه دغه روایت صحیح بریښی چـــی دغه کلمه په اصل‌له تازی یا تازیك نه اخستل شوی ده چی په پهلـــوی ژبه اوکتا بوکی عربو ته تازی ویل کیدل او دتصغیر کاف په یو ځـا ی کولو سره دتازی کلمه به تـــازیك بدله او ویل کیدله او دز، حـــر ف له دی کبله دتازی (ج) په حرف‌بدل شو چی تلفظ یی آسانه و په د ی ډول په تاجك سره مشهور شول چی تراوسه هم په پارسی کی عربو تـــه

---

* دفرخ آباد د نوابی په بـــاب تعلیقا توبرخه وګوری.

** ګرك تګین په‌اصل (٤٥٠م‌خ ) کی هم دغسی لیکلی دی زما په خیال ښایی داقره تګین وی‌چی پخوا نی‌نو م یی «راشت» وداوسنی تاجکستـــا ن جمهوریت دوخش رود له دغــه‌راشت (قره تګین) څخه تیرید ی.(رشاد)

تازي وايي او د پارسي ژبالو په اکثرو کتابو کي د تاجك د کلمي معنی داسي راغلي ده چي تاجك د هغـــو اعرابو اولاده ده چي په فارس او يا نورو ملکونو کي پيدا شوي دي .او د تاجيکو اوسني حال ، او د دوي پخواني مقبوضه سيمي او په تيرو واقعاتو باندي له غور کولو نه دغه لغوي معني صحيح بريښي چي د تاجيك له لفظ نه مقصد د هغو اعرابو اولاده ده چي ذکر يي مخکي وليکل شو .

په لومړي هجري سدي کي د فارس ټول هيواد ، او دازبکو سيمه د عربو په ذريعه فتح شوه او هغه وخت چي دغه سيمي يي ونيولي نو د هغه ځای خلك يي تر کوم ځايه چي ممکن وو په رضا او جبر سره مسلمانان کړل او دوی ته يي د خپلي ژبي په زده کولو کي هڅي او کوښښونه وکړل په هغه وخت کي په افغانستان باندي هم لکه څرنگه د کتاب په لومړي برخه کي يي ذکر راغلي دی يرغلو نه کيـد لـځو لکه څرنگه چي د ايران او اوزبيکو ملکونه په سرعت ونيول شول لـو افغانستان هماغسی زر فتح نشـو ، که څه هم عربو د افغانستان او اري او ميداني سيمي ونيولي خو د غرونو خلك د ډير جنگياليتوب له امله تـر دريمي هجري پيړي پوري د مسلمانانو سره وجنگيدل .

په پيل کي د فارس ، لـويديځ افغانستان او اوزبکو په ملکو نـو کي يو ډول خلك اوسيدل او په يقين سره د دوی ژبه د پخواني پارسي پـه بنياد منځ ته راغلي وه .

له هغه وخته چي اعرابو په دغه خلـکو غلبه وموندله نو اوسني مروجه پارسي رامنځ ته شوه .يعني د دوی مخکيني ژبه او د فاتحانو ژبه يعني عربي سره يو ځای او اوسنـي مروجه پارسي منځ ته راغله او يقيناً تر څه مودي وروسته اعراب له بومي خلکو سره خلط شول او د دغه خلك د تاجيکو مور ثان او مشران دي . چـي د افغانستان له تاريخو نو سره هم دغه روايت مطابقت لري ، داځکـه هر څو مره روايتونه چي د دغه ملـك په تواريخو کي موجود دي له هغـو نه څرگند يږي وروسته له دي چي اعرابو په لويديځ افغانستانقبضه ټينگه کړي وه د افغانستان او اري برخـــي د تاجيکو پـــه لاس کي او غرني سيمي د افغانانو (پښتنو) او نورو پخوانيو او سيدونکو پـــه لاس کي وي تر هغو ډيره مـــوده وروسته افغانان ( پښتانه ) له غرونو نه راښکته او اواري سيمي يي ونيولي او ديوه يا دوو سختو ملکونه پرتـه چي تاجيکو پـه کي په عليحده او خپل

سرې دول ژوند کاوه پاتې تاجکو باندی افغانانو (پښتنو ) غلبه وموندا
له او دپارسی وانو او اعرا بو له آمیزش او یو ځای کید و نه
دترکستان او چینی ترکستان تا جك هم منځ ته راغلی دی . او دغو
تاجکانو تر هغه وخته پوری ترکستان په خپل واك کی در لود تر څو چی
تاتار یانو په دوی غلبه وکړه او بریالی شول .

د چنگیز خان له وخته دمیدا نی او اوارو سیمو تاجك مغلوب اووتکول
شول اودرعیت حالت ته ور تیت کړای شول ،خو هغه تاجك چی په غرونو
کی اوسیدل هغه تراوسه خودمختاره دی او دبدخشان ، درواز او نوروسیمو
حاکمان شول ، تاجکان په ټولو ځایو نوکی له دی کبله مشهور دی
چی ددوی آباد ی دایمی اود کرکیلی له وړاندی تک سره مینه لری او
دهغه سامان آلات سره چی د دایمی استوگنی ژوند له پاره په کار دی
دهغو وسایلو سره ډیره مینه لری . تراوسه پوری هم دلو ید یځ
افغانستان په ځینو ځایونو کی دکرنې وړ ځمکی دتاجیکو په لاس کی دی خو
دد وی املاك او جاید ادو نه له دوی نه اخستل شوی او ودوی دافغانانو
رعیت او نوکران دی.

هغه تاجکان چی دافغانانو په مقبوضه سیمه کی میشته دی یا
رعیت په دول ژوند کوی او یا هم په بیلو بیلو کلیو کی ژوند کوی،
هغه برخه یی چی په سیمو کلیو کی ژوندکوی دهغوی مشری د یوه
کتخدا په لاس کی وی اودغه کتخدا دخلکو له خوا ټاکل کیږی که څه هم
دده په ټاکلو کی دده کور نی اومور ثیت رول لری خو بیا هم دده د ټاکلو له
پاره دکابل امیرنه اجازه اخستل ضرور دی ، کتخدا ډیره اختیار نه
لری خوکله چی دکابل دوالی له خوا ده ته کومه وظیفه ورکړل شی په
هغه کی اختیار لری ، همدا راز دی مالیه هم را ټو لوی او حاکم ته یی
سپاری ،او ددغه خدمت په بدل کی ده ته یوه اندازه ملکانه انعام دده
د کارپه اندازه ورکول کیږی ، همداراز دی کولای شی ځینی وړی دعوی
هم فیصله کړی که چیری پیښی درندی وی هغه یاد حاکم حضور ته
وړل کیږی اویا دقاضی له خوا فیصله کیږی. تاجکان جنگیالی خلك نه دی
او خپل سرکار اوحاکم ته ایل دی ، که څه هم په عمومی دول دوی په
کرنه اوکرکیله بوخت دی . خودهغی پرته په سوداگری ، لاسی صنایعو
او خرکاری باندی هم اخته دی. دواوس اکثراً دافغانانو په شان دی،
تاجکان له جگړی سره مینه نه لری که څه هم ددوی لښ شمیر په عسکری

خدمت بوخت دی ، دباميانو داوسيدونکو نه پرته چې شيعه مذهبه دي نور ټول تاجکان سني مذهبه اوداهل سنت او جماعت طريقه مخي ته بيايي ، دوی ديندار او لمونځ گوزاره خلك دي . کله چې په افغانستان کی شخړی او فسادونه رامنځ ته شي نوتر ټولو وړاندی په تاجکو بادی ظلمونه کيږی او څه وخت چې آرامي وی پالل کيږی او مرستی ور سره کيږی خو سره نه دی هم په دوی باندی بيکار او محصول د افغانانو په پرتله زيات دی که چيری دغه محصول زيات نه وای دوی له درانی دولت نه راضي وی ، که څه هم افغانان دوی ترخپل قوم ټيټ بولی خوله دوی سره په کبر او غرور رچلند نه کوی لکه چې د دوی ترمنځ خپلوی هم کيږی .

تاجکان شارونوته نږدی ډيره دی اواکثرآ په کابل ، غزنی ، هرات اوبلخ کی اوسيږی خو د ملك په هغو برخو کی چې غير آباد اوصعب العبور ده دی لکه دهزاره وملك يادغلجيود ملك جنوبی برخه اويا کاکړستان کی په سختي سره تاجکان موندل کيږی..

پورته دهغو دتاجکانو حال وليکل شوچې دافغانانو په منځ کی اوسيږی اوهغه تاجکان چې له افغانانو نه بيل اوسيږی عموماً په سختواوصعب العبور ځايونو کی ميشته دی اودنورو تاجکو نه په څو مورادو کی توپير لری .

مونږته ترټولو وړاندی د هغوتاجکانو حال وليکو چې دکوهستانی په نامه بلل کيږی او د کابل په کوهستان کی ژوند کوی ، ددوی دملك شمال خواته دهندوکش و اورین غرونه ، لويديځ ته يی دهزاره جات غرونه ، سهيل ته يی کوهدامن اوختيځ ته يی دهندو کش د غره يو سهيلی ښاخ موقعيت لری .

اود کوهستان ملك له دريو اوږدوواديونه جوړ شوی . يعنی نجراب ، پنجشير او غوربند ، ددغو واديو له دواړو خواوو غرونو نه او به راوځی اود هری وادی په منځ کی د سين شکل غوره کوی او دهغوی له نوم نه ددغو واديانو نومونه مشهور دی اودغه ټول سينو نه دکابل له دريا ب سره يوځای کيږی ، ددی سيندونو په غاړ وډيری آبادی او ښی ښنی دونو ډکی سيمی شته ، د غنمو ، تنباکو او پنبی پيد وار ډير دی . دلته وريجی ډيری کرل کيږی خوجنسيت يی ډير اعلی نه دی، دتوت ونی په کی بی شميره دی اوميوه يی هم زياته خوړل کيږی ، همدا راز

دغه میوه لمرته وچوی او اوړه کوی یی او د غنمو یوه اندازه اوړه ورسره یو ځای کوی او ډوډی ورنه پخوی که دکوهستانیو تند رستو صورتونو ته وګورو نه دغه خواړه ښه دی ، دچارمغزونی پکی په ډیره اندازه پیدا کیږی او دغوربند به دره کی ډیر اعلی بادام هم شته ، دوی په خپلو منځو کی دد ښمنی او جګړ وپه وخت دخپلو ځاځا لفانو د توت ونی پری کوی او هغوی ته دخوراك څوکلن زیان ور رسوی .

دغه هم دکوهستان خلك په خوا ره واره ډول میشته دی خو شمیر یی ډیر نه دی خلك وایی چی دوی پنځه څلویښت زره کوره دی په کوهستان کی یوه کوچنی سیمه دریګ ر و ا ن په نامه موجوده ده، دوی ډیرښاروی ته ساتی خود شیدو دغوا ګانو له ساتلو سره مینه لری . د نجرا ب او غوربند پنیر ډیر ښه، او مشهور دی . ددوی په سیمه کی ځنګلی ځناور ډیر دی او اوریدل کیږی چی دلته ځیر وونکی ځناور لکه پړانګا ن او توری ییږی ہی شمیره دی او ببرهم پیدا کیږی او ښکار ی الو تونکی لکه باز ، جره اونور هم په زیات شمیر سره لیدل کیږی .

دکوهستان ښایسته او خوش آوازه بلبلی ډیری مشهوری دی ددوی د ملك دکلکوالی په سبب د کوهستا ن تاجیکو طبعیت بالکل بل ډول د ی .

ددرنامه او پروان د سیمو نه پرته نور کوهستان دکابل امیر ته یوه اندازه محصول ور کوی او خپلو سردارانو او مشرانو ته هم تا بع دی، دوی ډیر جنګیالی او زړه ور خلك دی ان تردی که به دوی کی څوك دغارو غی په سبب مړ شی دا ددوی له پاره دشرم او افسوس خبره ده، دغه هم ټول کوهستان بی رحمه او ناپوهه خلك دی خو درنامی په غلا او شرارت کی ډیر مشهور دی .

دکوهستان خلك اکثراً په غرونو کی په پلی ډول جنګیږی په دوی کی دکلیو اوقومونوتر منځ دښمنی لړ ی دی خو کورپه کور دښمنی په کی ډیره ده او دخپلو دښمنانو دتوت ونو دقطع کولو په وسیله هغو ی ته ډیر زیان رسوی .

ددوی وسلی قر بین (کارا بین ) او چقماقی توپك، تفنګچی ، اوږ دی چړی اوه ځینو سره وړی بر چی او دلږ شمیر نورو سره لیندی غشی او ډالونه وی اوتقریباً د هر بالـغ سړی سره وسله موجوده وی . ددوی پوښاك یو پراخ کمیس دی چی لـه خمتانه جوړ شوی وی . اواکثره تور لنګه پراخ پرتو کونه، اغـونـدی اوښنګر و پوړ ی پا پو ش په پښو او

وریښمنې . ټوپی په سروی او څینې یې لونګی هم تړی . کوهستانیان ټول سنی مذهبه دی . دوی د ایرانیانو او نورو شیعه ګانو سره کلکه دښمنی لری . دوی بیل بیل خانان لری . اوس ملک چی د تاجکو لوی خان دی او صاحب زاده غلام جان هم د دوی مشر دی که څه هم دغه خانان د خپلو کورنیو شخړو بندو بست نه شی کولای خو د بهرنی غلیم په مقابل کی د داد وړ انتظام نیولی شی او د دغه منظور له پاره ټول قوم په یوه زړه او د بهرنی دښمن په مقابل کی د خان دامر په سبب ټول سره یو کیږی . خانان د خپل قدرت په اندازه نوکران هم ساتی . دوی د سدوزی شاه محمود سره ډیره دښمنی لرله ، او هغه وخت چی دی په تخت باندی کښیناست نو کوهستانیو له ده سره مخالفت څرګند او په جګړه یې لاس پوری کړ ، لومړی یې د شهزاده عباس سره مرسته وکړه خو وروسته د بارکزی فتح خان د بندو بست په سبب مغلوب شول .

د پشئی یا پشاوی په نامه یو بل قوم هم په کوهستان کی موجود دی چی د هغوی په باب بابر پاچا لیکلی دی چی دوی بیله ژبه لری . اوس هم دغه خلك په خپلو منځو کی په کوهستانی ژبه خبری کوی او د دغی ژبی اصل او بنیاد هندی ښکاری ، د دغه قوم په باب زیات معلومات تر لاسه نشول .

**خنجانی :**

خنجان دیوی اوږدی دری نوم دی چی ډیره ښکلی ، ښنه او ښه هوا لری . د دی دری ټولی ځمکی دیوه باغ په څیر ښکاری . په دغه ځای کی د توت ډیری ونی پیدا کیږی . په دغه دره کی د تاجکو یوه ډله او سیږی چی د خنجانیو په نامه سره یاد یږی او د دوی شمیر لس زرو کورو ته رسیږی . دغه دره په پسرلی او منی کی ډیره ښکلی او بارونقه ده .

**برکی:**

برکی هم د تاجکو د قوم یو ښاخ دی * . دوی په لوګر او بتخاك کی اوسیږی که څه هم دوی له غلجیو سره یو ځای دی خود نورو تاجکانو څخه بیل دی ، دوی ځانته بیل مشر او سردار لری په زړه ورتوب کی مشهور دی او په خپلو مورنی کلیو او مقبوضه سیمو کی اوسیږی د کابل امیر ته ما لیه ورکوی او د ضرورت په وخت یو څو نه هم ورته ورته وی . دوی د نورو تاجیکو په نسبت په ټولو چاروکی ښه کټل کیږی وا ټولوی . د دوی روا جو نه پښتنو

---

* بره کی تاجیك نه دی اوز مړدی. ( رشاد )

داکثرو روایاتو نه دا خبره څرگنده شوې ده چې غزنوي سلطان محمود د یوولسمې عیسوي سدۍ په پیل کې ددوی نیکونه دلته میشته کړل، په پیل کې ددوی د سیمې وسعت ډیر وخو وروسته افغانانو له دوی نه ډیره ځمکه لاندې کړه، ددوی د نسب اصلیت په صحیح توگه معلوم نه دی خو دوی په خپله ادعا کوي چې دوی اعراب دي خو ځینې خلك وایي چې دوی کردان دي او د کردستان نه محمود دغزنوي را وستي وو، تاجك په څرخ کلنگار، زرغون ښار اولوگر په نورو ځایونو کې هم اوسیږي او په هغه ځای کې چې میشته دي دهماغه ځای په نوم بلل کیږي.

## فرملي یا پرملي:

دوی د تاجکو یو ښاخ گڼل کیږي او د برکیوسره برابر شمیرل کیږي. دوی اکثراً داورگون په سیمه اودخرو تو ملك په مینځنۍ برخه کې او سیږي او د خروتو سره سخته دښمنۍ هم لري. پاتې چې د کابل په لویدیځ کې استوگنه لري دوی اکثراً په سوداگرۍ اود کرنې په چارو بوخت دي، پرملیان په اورگون کې اوسپنیز سامان آلات جوړوي او دخرځلاو له پاره یې لویدیځ افغانستان ته وړي دوی دکابل والي ته محصول اوماليه ورکوي. ددوی دقوم او نسب په باب پوره معلومات نشته. دوی په خپله ادعا کوي چې دوی خلجیان دي اوپه هندوستان کې یې پاچاهي هم کړې ده دتاریخ فرشته له مطالعې نه داسې ښکاري چې خلجي دترك دقوم یو ښاخ دي چې له هغو نه سلطان جلال الدین فیروز شاه اوسلطان علاو الدین خلیجي دهند مشهور پاچایان تیر شوي دي. * نور خلك داسې نظر لري چې فرملیان په اصل کې خلج په نوم د یوه ښار او سیدونکي وو خو ځینې نور عقیده څرگندوي چې نوموړی ښار په ترکستان کې دجیحون په غاړه پروت و. د ځینو په قول خلج د کندهار په لویدیځ کې دهلمند دسیند او قلعه بست په لویدیځ کې واقع واو دا ورستنی روایت صحیح ښکاري. په دې کې شك نشته چې خلجي یا خولجي دترکی تاتار له نسله ووچې یوه برخه یې په لسمه عیسوي پیړۍ کې دسر دریا په سر کې چې دقوقند (خوقند) دملك په منځ کې بهیږي او سیدل چې ددوی یو ښاخ د ډیرې مودې نه دافغانستان په سیستان او همدا راز هندوستان کې اوسیدل.

---

* دهندوستان دهغې پاچاهي کورنۍ په باب چې خلجي بلل کیږي د تعلیقا تو برخه و گوری

په لسمه عیسوی پیړی کی دغو خلکو په ترکی ژبه خبری کولی او امکان لری چی پر ملیان ددغه قوم له نسل نه وی . خو دا یوه اټکلی خبره ده او په دغه برخه کی کوم ثبوت نشته .

## سردیهی:

سردیهی د تاجکو یوه کوچنی پښه ده چی دغزنی د سردی په مشرقی او سهیلی برخو کی میشته دی .ددوی نه پرته په خاص غزنی او ددغه ځای په نورو برخوکی هم ډیر تاجک شته دی .

## نور تاجکان :

دهغو تاجکونه پرته چی پورته یی بیان وشو په ننګر هار، ګردیز کلالګو ، لغمان او دافغانستان په نورو ټولو لویدیځو سیمو کی هم تاجک میشته دی. دسیستان تقریباً ټول خلک تاجکان دی، خو یوازی سنی مذهبه یی په تاجک سره مشهور دی او دغه قوم دبلوچستان په شمال او افغانستان په حدود و کی ډیردی . دهرات او دهغه په شاو خواکی هم اکثره تاجکان استو ګنه لری چی دلته یوازی دومره کافی دی چی په ددوی دټولو د حالا تو دلیکلو له افغانستا ن کی ددوی شمیر پنځلس پاره یو بیل کتاب ته ضرورت دی خو لکو ته رسیږی .

## دایما ق او هزاره قومو نه :

ایماق او هزاره دکابل او هرات ترمنځ د پرو پمسین (پارا پامیزا د) په غرو نو کی اوسیږی .شمال ته یی ازبک اوسی ، سهیل ته یی پښتا نه درانی اوغلجی اوسیږی . ددیدوا ړو قومونو ملک دری سوه میله اوږدوالی اوتخمیناً دوه سوه میله پلن والی لری .

دتعجب خبره دا ده چی دافغانستان حدودو په دننه اوبیا په هغه ځای کی چی خلک وایی چی افغا نان له هغه ځایه یعنی غورنه راوتلی په هغه ځای اوذ هغه په شاو خوا کی اوس داسی قوم استو ګنه لری چی دپښتنو سره په رواج ، ژبه اوبڼه کی بیخی توپیر لری . که څه هم دوی له خپلو شمالی ترکی ګاونډیانو سره یو څه ورته والی لری خو سره له دی هم ددوی ترمنځ یو څه توپیر ونه شته دی . دوی ته ددی پته نشته چی دوی اصلاً څوک دی او له

ژبې نه يې هم چې يو دول پارسي ده دانه ښکاري چې دوى له کوم قوم نه رابيل شوي دي ، او ددوی دژبې طرز اکثراً د زابلو دژبې سره ور ته والي لري .ددوی دخيرو نه داسې ښکاري چې دوی به تا تار ترك وي او ځينې عقيده څرګندوي چې دوي دمغلو له نسله دي ،اوس هم ډير خلك دوی مغل بولي او دهغو چغتا يي مغلو سره چې هرات ته نږدې اوسيږي له هغو سره يې ورکډوي او دوي په خپله هم وايي چې مونږ له هغو اوهمدا راز دايمان دقوم سره چې لږ شمير يې په کابل کې اوسيږي همقومه يو او له دغو دوارو قومو سره دوی خپلوي کوي خو دوی دهرات دمغلو په ژبه نه پوهيږي .

ابو لفضل ليکلي چې دا خلك دچنګيز خان دلمسي مانګو خا ن دپوځ اولاده ده چې دوی په دغو غرونو کې پاتې شوي و اود يو معتبر ، ثقه او با معلو ماته سړي له خولې چې مولف ورسره ملاقات کړی وايي چې دهزاره قوم دچرکس دقوم يو ښاخ دی. چرکس دترکانو مشهور قوم دی چې د داغستان په شاوخوا کې چې درو سيې سره ملحق الحدوده دی اوسيږي . ده دغه روايت صحيح وي نو داخبره نه ده معلو مه چې دلته ولې راغلي اوآباد شوي دي .

بابر پاچا په خپل تصنيف کې ليکلي دي چې هزار ګان په مغلي ژبه خبرې کوي ، خود هغه اصلي مقصد نه دی څرګند چې د کوم هدف له پاره ده دترکانو ، هزار ګانو قصه ليکلې ده او نو ګډرې يې د غرنيو هزاره ګانو سره ګډه کړې دی اوهمدا راز ده ليکلي دي چې ترکان اوايماق په اوارو سيمو کې استوګنه لري . دا هم څرګنده ده چې ولې ددوی په ژبه کې دومره ترکي کلمې موجو دي دي که دوی مغول نه وای نو ولې به ترکي ژبه خبرې کوی اوکه چيرې مغول چرکس وي اواصلي ژبه يې ترکي وای نو سره له دې چې دوی د ترکستان په پورتنۍ برخه کې آباد دي نوو لې په ترکي ژبه نه غږيږي او ولې په پارسي ژبه غږيږي ، نو په داسې حال کې چې ددوی شمالي ګاو نډ يان په ترکي ژبه خبرې کوي اوسهيل ګاونډيان يې په پښتو ژبه نو له دې کبله غالباً داسې ښکاري چې دوی پښتو ژبې نه خوړيدونه وړاندې راغلي اودغزني يازابل سلطنت سره ددې اړيکو په سبب دوی به کوده ماته زابلي پارسي ژبه باندې خبرې کوي اوخپله پخوانۍ ترکي ژبه يې هيره کړې ده خو ددغې ژبې ځينې کلمې تراوسه هم د دوی په ژبه کې پاتې دي . د دې دليل ثبوت دپخوانيو حالاتو له مطابقت نه حاصليږي ، داښکاره ده چې افغانانو

دمخه وراندی په غزنی او په ځینو نورو جنوبی میدانی برخو با ندی دتا جگونه پرته هزاره گان هم قبضه در لود له چی افغانا نو په تدریجی توگه دوی د هزاره جا ت د غرو نو خواته په شاو تمبول . مولف دایماقو او هزاره و د قومیت په باب داسی نظر لری چی دوی د تاتاری تر گانو له نسله دی اوپه دی کی هیڅ شك نشته چی ایماق او هزاره په اصل کی یو قوم دی او داسی ښکاری له هغه وخته چی مسلمان شوی سره بیل شوی هم دی له دی کبله ایما ق پاخه سنیان او زیاتره هزاره گا ن شیعه د ی . که څه هم دغه مذهبی اختلاف د دو ی د بیل والی باعث شوی سره له دی هم ډیر خلك دوی یو گنی او دهغوی روا جو نه او بنی هم سره ورته والی لری، خو سره لـه دی په ځینو مو ضو عاتو کی سره توپیر لری نو ځکه دامناسبه بریښی چی ددواړو حالات په بیل ډول ذکر شی لومړی به دایماقو ذکر وشی .

## ایماق:

دوی دهزاره دقوم په جنوب لوید یځو غرونو کی میشته دی، ددو ی د ملك په لو ید یځه او شمالی برخـه کی چیرته چی جمشیدی او سیږ ی نو هلته یو لړ غرونه موقعیت لری چی په ونو پټ دی او دغه ملك ډیر شین او آباد دی . بالامر غاب ،مورو چا ق (موری چاق) کوشك ( کشك قرو ماچ (غور ماچ) اوتنور سنگی ښه آبا دځایونه دی. تیمنی دسیاه بند یعنی دغور په سیمه کی اوسیږی او ددوی دځمو جنوبی برخی هم ډیری ښی دی سبزوار یا اسفزار (شین ډنډ) یوه پراخه میدانی سیمه ده چی د غرونو په مینځ کی دفراه او هرات دلاری په ختیځه برخه کی موقعیت لری ، چی دغه ځای کی دزو ری قوم او سی خواوس په دغه سیمه باندی دد را نی دقبیلی دنور ز یو مالیز پواوساکزیو ښاخو نه تسلط لری .

دایما ق دکلمی معنی په تاتارو کی دقوم دیو ی برخی ،خیل یا ښـاخ مفهوم لری . سر جان ملکم وا یـی چی دشام په سیمه کی دا یما قـو لوی قوم او سیده چی ددغه قوم یو ښاخ دایرا ن په لور ستا ن کـی استو گنه لر. له چی له دغه ښاخ نه اتا بکان منځ ته راغلی چی دایران په تاریخ کی مشهور او د شیـراز پاچهان تیر شوی دی . په عوامو کی ایما قو ته چار ایما غ هم وایی په لومړی سر کی یی دوی ته چارایماق چی د څلورو قومو نو مفهوم لـری ،ویل او په اصل کی هم دوی هـم دومره ښاخو نه و خو اوس دوی په ډیرو څانگو ویشل شوی دی. دپخوا

نیو چار ایما قو څلور قو مونه دادی، تیمنی ، هزار ی، تیمور ی اوزوری.
تیمنی بیا په دو وځانګو ویشل شوی‌دی قبچاق او درز ی مونږ د ناکړو
دقبیلی دحال په بر خه کې ولیکل‌چی تیمنی ځا نو نه دکاکړو یو ښاخ
بولی . داسی اټکل کیږی چی ښا یی‌دتیمنی د درزی ښا خ دکاکړ وقـوم
ته ورغلی او هلته له دوی سره‌یوځای شوی وی‌اودویم ښاخ نه قبچاق

په اصلی‌تیمنی چار ایما قوپوری‌اړه‌لری دا ځکه چی دقبچاق په نوم‌هیڅ
کوم ښاخ یا قوم په افغا نانو کـــی‌نشته او دایوه تر کی کلمه ده په.
همدی ډول دد رزی کلمه په تر کـی‌ژبه کی هیڅ نه لیدل کیږی . زی
چی اولاد معنی لری یوه پښتو کلمه ده . دایما قو دو یم ښا خ هزار ی‌هم
په دوو ښاخو نو ویشل‌شـــوی دی‌جمشید ی اوفیروز کو هی جمشید ی
یومشهور ښاخ دی چی هغـــه ور وسته بیا په ډیرو څانګو ویشل شوی
دی لکه ، خو کرو ، کا لګنـــــدی،قاقچن ، ژین کر زلفی ، امفلیدی ،
جوا لی ، خیر ، قر ك ، داه زیر ی‌او نور چی داټو ل په جمشید ی‌ښاخ
پوری مربو طی څانګی دی او له دی‌کبله چی فیروز کو هی په فیروزکوه
کی اوسیږی نو ځکه په دغه نا مه‌سره مشهورشوی دی .
د کرائی قوم چی د مشهد پـــــه‌سهیلی برخه کی او سیږی هغه هم
ځینی خلك ایما ق بو لی خوداصحیح‌نه ښکاری دایما قو دقو م هره‌څانګه
ځانته بیل سردار لری چی دوی لوی‌سردار ته خان یا بیګوایی اود ـ
ښاخو نو مشر یا ملك ته ار بـــاب‌وایی ، خان یو شمیر سپا هـــیان او
کلا هم لری . دی له خلکو نـــــــه محصو ل اخلی او عدلی چاری هم‌ده
په لاس کی دی ،دی‌ډیر واك ځا و نددی حتی په خپل قو م کی‌د پا چا
احتیار لری او هغه‌حه یی چی حوښه‌وی په هماغه ډول چلند کوی.
اوس مهد ی قلی خان چی په‌خان‌آغا سره مشهور دی د مورو چــا ق
(مور ی چاق ) په کلا کی ژو نـــدکوی او دجمشید یانو لوی‌رئیس‌دی،
اود هغه ورور اله قلی خان په بالامرغاب کی حاکم دی . همدا راز فتح
الله بیګ د فیروز کو هي د ښـاخ‌رئیس او عبدا لغفور خان تیمنـــــــی
دایمـا قومشهور سر دار و، خوعبدالغفور خان تیمنی دکابل دوا لی مر ـ
حوم امیر دو ست محمد خان دزو ی‌محمد شر یف خان له خوا بی واکه
شــو .

ایما ق اکثرا په کیږ دیو کــــی ژوند کوئ چــی ددوئ ورته اورد او دلښکر و خیمه گاه ته یورت وا یی‌او دایوه ترکی کلمه ده چی معنـــی یی اردو ده اود او اردو نــه مطلــب لښکر دی چی په انگریزی کـــی ورته هورډ وا یی *د هر کمپ‌پادیر ی ښښتن دخا ن تر لاس لاندی وی او ددوی خیمی عیناء په هیاغه ډول وی چی تاتار یی دخرگاه پـــه نوم یادو ی‌او دغه خیمی اکثره‌دخودرنگه اویاسپینو لمڅیو نه په‌گـرد ډول جو ړ یږی ، خو تیمور ی‌اکثـــراسیاه خانه یا پښتنی کیږدی خوښوی.

ټول ایما ق دپسو نور می سا تی‌او په خپله مربوط قشلا قــو نو او ایلا قونو کی ژوندکوی دوی‌په‌ژمی‌کی هغوقشلا قونو ته را ځی‌چی د غرونو په لمنو کی پر تی دی دو ی‌دغرونو د لمنو نشیبو نه‌دتگاو پــه نامه یادو ی .

په گر می کی دا یلاقو له کبله غرونو ته ځی او له دی کبله دوی اکثرا پوو نده ژو ند لری او په‌څرځایو نو کی غوایا ن او اوښان ډیـــر لیدل کیږی . همدا راز دوی دنرواوښځو اسا نــــو گلی بیلی‌جمشیدی بیلی څرو ی او گله بانان یی پــــه څلورو یا پنځو اسانو باندی سپاره‌او خپله دنده تر سره کوی په یوه‌گله کی له سلو نه نیو لی تـــر در ی سوه اسانو پو لی په څر یدو بوختوی .دوی زیا ت شمیر اسان لری‌که څه هم دغه اسا ن منځنی ونی لری‌خو مضبوط ، ښا یسته او فعال دی. اودنورو ملکو نوپه‌سودا گرانو باندی‌پلور ل کیږی ددو ی دسیمی پــــه کلیو کی تاجك هم ژو ند کـــوی.دایما قو په غرو نو کی پسته پیـــدا کیږی او هغه ځای کی چی د پستــه ونی یا ځنگلو نه وی هغه ځای‌دپسته لغ په نامه یادوی او شیر خشــــت‌او تر نجبین هم‌د معتدل لی هوا لــه کبله هلته پیدا کیږی .

ددوی پو ښا ك اکثرا ایر انیانــوته ور ته دی . دوی اوږده پرتکونه لنډ کمیسو نه اغو ندی او شتمــــن‌خلك یی چینی او پشمی قبا کا ـــی په اوږو اچو ی او اکثرا توره پیخه چی د کو چنی ور ی له پو ستکی‌نه جوړه شوی وی دپو ی جگی تو پــی‌په شکل په سرو ی او په دوی کی دپگړی دتړلو روا ج لږ دی.

---

* هــارد په انگریزی ژبــه دمغولو او تر کانو وتاتارانو دلی ته ویل کیږی . دا کلمه داردو کلمـــی‌انگر یز ی سو ی شکل دی .(رشاد)

دایماقو ځورا ك پښتنو ته ور ته دی . که څه هم قوی دپسونوغوښی دیر ی خور یخود اسانو غو ښیهم استعما لوی . دو ی د غنمو داوړو سره د کنځلو دانی کډو یاو بیسادوډی ور پخوی.

ددغه قوم خلك ناپوه او ځانخو ښوو نکی دی خود خا نانو له ویری ډیره بی اعتدا لی نه کوی.په جګړه کی وحشیا نو غو ندی جنګیږی،

ددوی وسلی پلیته یی تو پك دی خوځینی چقمقی توپك هم استعما لوی، دوی ایرا نی توری ، پیشقبضی اوتفنګچی هم لری . دوی بی رحمه

خلك دی او خپل قید یان دغرو نو نه غور ځوی او سنکسا وری یی ، په دو یکی کور نید ښمنی لری دی خو د تر کمانو دښاخو نو

سالور ، سارو غ ، تکه ، ایمو تسره کلکه دښمنی لری او یو دبل په ملکو نو باندی یر غلو نه کوی،خو ترکما ن ډیر زړ ه ور دی چار ایماق

تل دهرا ت تابع دی او وړا ندی په یی د هرا ت حاکم ته پوځ برابر اوه خو اوسیهغه ته نغدی رو پیدمحصول په ډول ورکوی .

جمشیدی د هرا ت کور نر ته د کاله پنځلس زره رو پی ور کوی او پـه همدی ډول نور ایما قهم خپل محصول په نغد ډول ادا کوی ، خواندازه یی

معلو مه نه ده ، دغه محصول دخان له خوار ا تو لیږی او هرا ت تـه یی لیږی ، پخپله خان هم له هـر کور نه دکال دوه رو پی اخلی چی

له هغو نه خپل پو ځ ته تنخواه اواسان برابرو ی او هم تا کلی نغدی روپی هرا ت ته استو ی، ددی نـه پرته په هرژمی کی خان له هـر

دریو کورو نه یو پسه او دلو ټ اوغار ت دما ل نه هم پنځه برخـه ترلا سه کوی . همدارازد حا صلشویو وریو شپږ مه برخه هم ده تـه

ورکو ل کیږی او خلك له دغـه محصول نه هیڅ نارا ضه نه دی او ډیر هم نه ورته ښکاری . اوس دوایما ق یعنی تیمور ی او هزار ی د

فار س دولت ته تابع دی اودمشهد په صوبی پوری اړه لری دا ځکه چی دوی دهرا ت لو یدیځ ته پرا ته دی او هغوی ځمکی دلو ی غره نه بیلی

چی دلته متوسط غرو نه مو قعیت لری. ددوی ځمکی له شګلنو سیمو نه متشکلی دی چی یوه یی له بلی نه په سپیرو غونډ یو سره بیلی

شوی دی . او له ډیری مودی نـه را په دی خوا تیمور یدلته میشته وو، او هزار ګان دسد وز ی شـاه محمود له خوا دیو ی بلوا اوشخړی

په سبب چې ددوی او تیمنو ترمنځ پیښنی شوی وه او ستنی مقبو ګتنـو سیمو ته راو ستل شول او دلته یې میشته کړل او ددوی سر دارا نو ته دکابل دپاچا له خوا د بیګلر بیګسی(خان خانان ) خطا ب کیده، چې تـر اوسه هم دفار س دخلکو له خوا په دغه لقب یاد یږی . تیمور ی لـــه نورو ایما ق سره دو مره تو پیرلری چې ددوی څیری او پو ښنا لکداوز ـ بکانو په شان دی . دتولو چارایماقو شمیر تقریبا څلور ونیم لکو تنو ته رسیږی .

## د هزاره قو م :

ددغه قوم د نسب ذکر وړا نـدی په مقدمه کی راغلی . په هغه ملـك کیچی دغه خلك اوسیږی هغـــه دهزاره جا ت په نامه یادوی د هزاره ووسیمه دایما قو په نسبت صعـب العبور ه او د ځمکو دلوړ والی ژورـ والی اود مو سم دپخوا لی له کبله کر نه په کی سخته ده . خو لـــه کوچنیو وادیونه یی لږ څه غلـــه لاس ته را ځی او دمو سم دیخ والی له کبله په اکثرو ځایو نو کـــی دغنمو فصل په منی کی اخلی . دوی اکثرا دپسو نو او غوایانو په غوښه خپله ګو زاره کوی او کر ت،پنیراو نور لبنیات ډیر استعما لوی .

دهزاره دتسمی وجه داســی ده چې د زابلستا ن د پخوا نیو واکمنا نو په دوره کی دوی دبا ج په بدل کی زر تنه سپاره دپو ځ په دول لکه څرنګه په دغه ملك کی دودود شاهی خد ماتو له پاره لیږل له همدی کبله دغه قوم په هزاره با نـدی مشهور شو . دایران خلك هزاره وته بر بری او د هغوی سیمی ته بربـروایی او ښنا یی ایرا نیو دغه نـوم دبند بر بر له کبله چې بند امیـریی هم بولی او هغه هزا ره جا ت دسیمی په شما ل دتر کستا ن پـه حدودو کی مو قعیت لری ، دوی ته ور کړی وی .

## داستوګنې ځايونه :

هزاره ګان اکثراً په متفرق اوخواره واره ډول او سيمې د دوى په هر کلي کې له شلو نه نيولي ترسلو کورو نو پورې شته ، کورونه يې ډير جګ ندي اوپه هر يو کورييوه کوټه او يوه دروازه لرى ، ځينې شتمن خلك يې په بنو کورو نو کېژوند کوي ، خو اکثراً هزاره ګلن په داسې کوټو او خېرو کې ژوندکوي چې په ځمکو کې کندل شوي او چتونه يې پوښل شوي وي، پــه تيره بيا خپلو مالو نو ته هم ځمکه کنې او يو ډول مسقف ځاى ور تــه جوړوي او ځينې مالداره خلــك يې په سياه خانه يا تورو کيږدېو کې هم ژوند کوي ، هر کلي يــې يو برج لري چې لس دوولس تنــه پکې او سيږي * او هغه ته په خپله ژبه تيور ياتو پور وايي، دوى پــه اکثرو ځا يونو کې په برجو نو کــې ډولو نه هم ساتي چې د ضرورت په وخت کې د هغه په وهلو ســره خلك راټو ليږي .

## څيرې او بڼې :

هزار ګان تاتارې څيرې لري.ددوئ عمومي بڼې داسې دي غټ سرو نه ،پراخه ور ځې، تنګې سترګې ،پړ سېدلې ختو نه ، پيتې پــو زې، ګرد مخو نه ، راو تلې غمبورې لندور ميګو نه ، پيل غو ږې چــاغ او غټ بد نو نه، تيټ والي ته مايــل منځنې ونې ، او داوړ ونه ترانداموپورې پوشان ، اکثراً غنم رنګــه ځينې تور بخون او ځينې يې ســره سپين رنګو نه لري، پر بدنونو باندې يې ويښته نشته او اکثراخلك يې ږيرې او بريتو نه نه لري اوکه يې ولري نو کم کوسه او بــې ويښتو دي چې ددوى په باب دامتل مشهور دى :

هزاره موى نداره . دد غه قو م تو لې ښځې سپينې ، چا غې اوصاف مخونه لري خو سترګې، وروځــې او پوزه يې ددوى دنارينه و پــه شان او دسر نه پر ته نور په ټول وجود باندې يې ويښته نه وي ځينې ښځې يې ښنا يسته دي.

---

* دغه برجونه الفنستين په خپل اثر «دکابل سلطـنـت بيا ن » کــې دفاعي برجونه بللــي او هغــه يې اوتوبور يا ارتوپور په شکل ليکلي چې دده په نظر ښايي له تر کي ژبې نه اخستل شوي وي (ژباړ ونکي)

دد غه قوم رئیس او هغه سادات چی د هزاره وو په ملك کی او سیږی ښکلی او ښایسته ځوانان دی.

## دخلکو کسبونه او عادتونه :

هزاره گان په کر کیله با ندی بوخت دی ، خو څرنگه چی دد غه لوی قوم له پاره د ځمکو دکموالی په سبب د زمیندا ری د چار و کنجا یش نشته ، نو ځکه په ما لدار ی او لاسی چارو باندی بوخت دی همدا راز دوی په نورو مزدور یو لکه ، کچروانی ، سار بانی، دواودرو په پاکو لو او فرا شی با ندی بوخت دی او دوی په دو مره زیات شمیر سره داسا نو مهتر ی کو ی چی په لویدیځ افغا نستان کی د هر شتمن او امیر په کور کی د هزار ه نسه پسر ته دا سانو مهتر ان بیخی لږ تر ستر گو کیږی. د وی پسه هر ډول وړ وچارو بوخت او پسه هغو باند ی نه شر میږی . حتی د جارو کښی دنده هم تر سره کوی اودلرگیو ما تول ،کار یز کنی ،په شا با ندی د بارو نو وړل (پنډی توب) اکثرا د دوی له خوا تر سره کیږی خو پسه پو ځ کی دنو کری سره مینسه نسه لری او نه څوك دوی د سپاهیا نسو په ډول استخدا موي .لنډه دا چی په لویدیځ افغانستان یعنی کابل ،غزنی او نورو لویو ښار ونو کی داد ځینو کارو نو له پاره هزاره گان لاس او پښی شمیر ل کیږی او ډیر خواریکښ خلك دی .

دهزار ه گانو ښځی دبر کو،غالیو،تغړو ، جورابو، دستکښو اولیمڅیو په جوړ و لو او بدلو بو ختی دی، همدا راز دوی په رنگ ریـــزی ، گنډلو ، پخلی ، د پشمی شیا نو په اوبد لو او اسو نو دځلونود جوړولو کارو ته هم سر ته رسو ی او هـم دلبنیا تو په استحصا ل لکه دمستو په موره کولو (مایه کولو) دپنیـر په جوړو لو اود کرتو په جوړولو باندی هم په ښه ډول پو هیـږی .لنډه داچی دهزاره و ښځی ډیـر ی هو ښیاری ، چالا کی او دښه استعدادخاو ندا نی دی .

هزاره گان دا خلاقو او عادتو له مخی کمز ور ی دی .دوی بـــی وفا او بی مینی خلك دی او په سختـــو شیبو کی حتی له خپلو بادارانو سره هم لږه و فا کوی .دوی گرم او تنـدمزا جه خلك دی او د نا مرا نـــی خبری په مقابل کی صبر او تحمـــل نشی کو لای او دیو ساعت ښوخبرو

په منځ کې که دوی ته یوه نا موافقه کلمه وویل شي هم لاړ یا ندی خپه کیږی . له دی نه پرته دوی دبنی طبعی خاو ندا ن دی، دوی ښسی خوږوی خبری کوی او میلمه پا لنه هم په کی ډیره ده ، داخلاق ډیر ی خیا لی کیسی رښتیا گنبی او پـــه شگو ن ، فال او زجر م یا ندی عقیده لری ښځی یی هم فالو نه اچـــوی، دوی داو یول ، پوزی او دورغو یو په لیدلو سره پیشگویی کوی او ځینـــی ښځی جادو گری کـــوی ، ددو ی د عجیبو خیا لی کیسو په باب پـــه افغا نانو کی مشهوره ده چی ددو ی اکثره ښځی او ځینـــی نار ینـــه خوږو نکی دی او دوی دخپل سحر او جادو په قدر تـسره دسړی زړه لـــه کوگله را باسی او خوری یسی اود ځیگر خوږ وپه باب هم ډیری کیسی لری خو څرنگه چی دا کیسی خیالی او فطو لی دی نو د هغوی لیکو ته چندا ن ضرو رت نه لیدل کیـږی.د ځیگر خو ړلو دغه تخیلی کیسه په هندو ستا ن او فا رس کی هم دیره عامه ده اوځینو قو مونو ته یـــی نسبت کیږی چی مفصل حال یی پـــه طبقا ت اکبر ی کی راغلی دی.

خورا ک :

مزایره گان داوړ و دوړی په تناره کی پخو ی اوهر دولحال اواوړ هشی هم خوری ، خو زیا تره په کر تـــو، پنیر ، پیر وی *او نورو خـــو ړو پاندی یی له ځمید و، مستو او شرومبو نه جو ړ یږی کوزلاوه کسوی او کوچ هم ډیر استعما لـــوی، دو ی د تنگسی په وخت کی ځرنی او دشتسی سا به چی اکثرا ښه خا صیتونه لری وبچ او داوړو سره یی په نیما یسی دول یو ځای کوی او دوړ ی ور نه پخوی او ځنی ته ښډولوك وا یی مدوی د پسو نو او غوا یانو غو ښی په تازه او وچ دول پخو ی او دغوړ ها غ په دول یی خوری .

---

*په اصل ( ٤٦١مخ )کی دقیما غ پر ځای قیمـــــا غ چـــا پ شو ی دی (رشاد )

## پوښاک :

دهزاره کانو نارینه یو ډول پسا پو ښی چی دکابل په ناحیه پلل کیږی او د چارو ق په ډول بو ښ اوډکسه دارو بو تو نو په ډول یی جوړوی په پښو کوی او د پر توک په ځای منه پا جا مه لفوندی چی له چوغ (دسپینو وړیو اور ته ) څخه یی دبر کی په ډول چو رو ی او دوی یی په خپله ژبه مشاو بولی‌دد وی‌کمیسونه لنډ اودقبا په ډول پیشواز چی تنک اوږده لستو نی لري استعما لوی او په اوږو باندی سپین رنګه شړی چی په غاړو باندی‌یی‌تور ی او سری لیکی وی استعمالوی.

دو ی لنګو ټی نه په سروی اوا ښرا دپسه یاوری دپو ستکی نه جوړی ښوی خو لی ، لیمځی او یاد چیسټ خولی چی په خاص‌ډول جو ړی شوی په سروی . ځینی مشرا ن او معتبره‌سادات د پګړی په ځای لونګی تړ ی او دملك د پخوالیٔ په سبب یی‌پښی له زنګنو ته تر ښنګرو پوری‌داوږدو تړانګو په ذریعه پیچلی وی او دغه تړانکی‌اکثراً له وړینو تو کرانو نه جوړی شوی وی . دوی دسرو ښینتان‌ډیر اږوده نه پر یږدی‌ه خودسرپه‌ منځ باندی یو اندازه ویښته چی‌کاکل یی بو لی او د شیعه مذ هب نښه ده پر یږ دی . ښځی دټیکر یواو عرقچینو په ځای سرا غوچ په سر کوی . سر اغو چ یو ډول تنګه تو پی ده چی یوه تړانګه لری او دغه تړانګه ددوی تر ملاوو پوری ځـــړیږی او دوی دخپل سرو ښښته سره تړلوی او په هغه کی یی دغلا ف په ډول ساتی او په هغه خو لی یعنـــی سر غوچ باندی د کشمیر ی ښځو په ‌څیر سپین او سری لونګی تلوو ی او دسنبا ق په ذریعه یی کلکو ی اواوږده کمیسو نه یی چی دښنګـــرو پوری رسیږی ، پراخ لستونی کریوانو ته یی چی د سینی په وسط کی دی اکثراً د یوك دوړیواو ځینی یی دخمتاو چینټ نه په غیږک ډول جوړوی ، پر تګو نه یی هم مبر ه او ځینی یی‌لوی پا یڅی او ځینی یی تنګی پایڅی لوی او دِ منوسی دو له تو کر نه چی ابی ځمکه او سپینی لیکی لری جو ړو ی .دوی همدا رلزدچیټ ا وختما پر تګونه هم‌جوړوی‌ه اودهو سی دنر مو څر منو نه جوړی یو ډول اوږدی پاپو ښی چی تر زنګنو نو پور ی رسیږی په پښـــو کوی .*

---

*دښاغلی الفنستن په کتاب کی‌چی‌د کـــا بل سلطنـــت بیـــا ن نومیږی داسی لیکل شوی چـــی دهزاره کانو ښځی دسویانو له پرتګو نه جو ړی شوی نر می موزی په پښو کوی (د ژباړو نکی )

دهزاره وو ښځې په خپلو میړو باندې برلاسی لری او دتعجب ځای دی چی پداسی یو شدل قوم کـــــی دنورو قومونو په تناسب د ښځو واک ډیر دی . دکور ټول واك د ښځی په لاس کی دی میړه د ښځی سره سلا او مشوره کوی ، دوی هیڅوخت نه وهل کیـــــږی ، او آزادی پریښودل کیږی . دوی مخونـــــه نه پټوی ـــــ *

## د هزاره گانو مشرا ن :

دوی د ټولو نه لوی مشر تـــه سلطان وایی او دغه سلطان ډیـــر واك او اختیار خاوند وی د ده تـــر لاس لاندی دار باب خان او بیگ پـــه نومو نو سره دښا خونو مشران وی . په هر کلی کی یو تن او ټی یعنی مشراو هم یو یا دو ه آق ســـــقال (افسقا ل ) یعنی سپین ږیری پـــه کلی کی مو جود وی چی دوی ټـــول سلطان ته ایل دی .

## د هزاره د قوم ښا خونه :

دغه قو م په زیاتو ښاخو نو ویشل شوی چی لوی او مشهور ښاخو نـــه یی په دی ډو ل دی :

دا ی زنگی دای کند ی دای میرداد ، دای میر کیشه او دای میرك ، دغـــه پنځه ښاخونه پـه مجمو ع کـــــی دساده سو یکه په نامه یا دوی او هغه ښاخو نه چی په ساده قبرپوری اړه لری په لانـــدی ډول دی : دای چوپان ، دای خطای ، دای تو ری ، دلی میری دایه . ددوی نه پر ته جـــا غوری یو لوی ښاخ دی چی دو لس څانگی یی ډیر ی مشهور ی دی . او د پولاده ښاخ شمیر هم ډیر دی . هـر ښاخ ځان ته بیل بیل سلطا ن لـــری چی ددو ی ټو لی شخړی فیصلـــه کوی او دجرم کولو نه پر ته داعدام کلاو ی لری دوی ښکلی جامی اغوندی واك هم لری ، ځینی سلطا نان ښځی او ښه خورا کو نه کو ی او نو کران هم ساتی . دغه سلطا نان اکثراً په خپلو منځو کی بی اتفاقه او دښمنی هم لری هزاره گان دکابل ریا ست تروا ك لاندی او اکثراً دبا میانـــو دحاکم تر حکمرانی لاندی دی ، دو ی لومړی دغورا تو او بامیانو په حکو ـــمتو نو سره ویشل شو ی وو .

* دلته شپږ لیکی ( کر ښی ) پـــه پښتو ترجمه کی حـــذف سوی دی .
(رشاد )

د شاړ مان دوا کمنی په دوره کې میانو حاکم زنبیل خان (زین آلخا ن) دوی دیوه توپ په ذریعه ایل کړل امیر دو ست محمد خان هم څو ځنه، په دوی یرغلو نه کړی ړ و.

له هزاره ګانو نه محصول دنغدورو پیو په ډول نه اخستل کیږی بلکی هغوی نه (دبرکو ) تانو نــه ، وړی، غالی، تغر، دهو سی څر منی، ژیړ غوړی، ځاروی او نور اجنا س دبامیانو حاکم د محصو ل په ډول تر لاسه کوی .

همدا راز له هر کور نه په کال کې یو پسه هم اخستل کیږی ، پــه دوی کی دما لیی دور کولو او اندازی د ټاکلو سیستم ډیر ناقص دی.

کله کله دما لیی په بدل کــی مریان او وینځی ور کول کیــږی او ځینی هزار ګان دنجو نو دخر څو لو نه هم ډډه نه کوی .

هزاره ګان په لو یدیځ افغانستان کی په ډیرو شتمنو کور نیو کـــی دمز دورانو په ډول ژو ند کوی خوددوی تیښته او بی و فائی مشهوره ده او ځینی وختو نه دخپل بادار دمیـرمنی بغچه او نور مالو نه هم لــه ځان سره تښتوی .

## بهرنـــی دښمنی :

که څه هم دوی او س دخپلــو ګاونډ یانو سره ښکاره دښمنــی او جګړی نه لری خود خپلو شما لــی ګاونډ یانو ، ازبکو او ایما قودقو - مونو سره پخوانی د ښمنی لــری او کله کله له دوی سره جګړی هـــم کوی، ددوی دهر بالغ سړی سره توپک موجود وی او ځینی یی غشی او لیندی هم ساتی . ایرانی توری او یـــوه اوږده چاړه اوبر چی هم د ځینوسره موجودی وی .دوی په توپك اوغشو ویشتو کی ډیر مهار ت لری .

هزاره ګان په جګړ وکی زړور خوپه، پو ځ کی نو کری نه کوی.

## کورنۍ دښمنی :

په دوی کی کورنی د ښمنی هـــم ډیری دی ، او ځینی وخت سلطا نان په خپلو منځو کی بی اتفا قـــه اوجنګونو ته ملاتړ ی او دوی دخپل تند مزا ج په سبب په وړو خبرو کلکی دښمنی سره کوی .

## مذهب؟

تول هزاره‌گان اهل تشیع* او کلک رافضی دي او داهل سنت او جماعت سره د زړه له کومې د ښمنی کوي اود حیر انتیا ځای دادی چې دوی د خپل مذهب له اساسا تو نه بې خبره‌دي ، دوی دنا پوهی په سبب حضرت امیر المومنین علی المرتضی (ك) دپیغمبر جا نشین اوځيني يې نبي اود خدای نایب بو لی . اودناپو هی په وجه چیر ته چی په کوم ځای کښې لویه ونه یا کومه غټه ډبره او پاچيري دانسان او يا داس دپښو پل وو ینی هغه ته د مزار په سترګه ګوري اودر ناوی يې کوي او وا یې چې دا ځای دحضرت علي (ك) دنـاستی ځای یاد مبارکو قدمو یا دلدل دپښو ځای دی ** او هلته نذرو نه کوی او خیرا تو نه ور کـــوی . دوي لږ لمونځونه ادا کوي او په شرعي فرایضو کي سست دي . دوی د شیعه سیدانو ډیر احترام اودر ناوی کوی او عجیب جها لت او نا پو هی خوداده چی دوي د روژ ی په مبارکه میاشت کي دو سي او قدرت پـــه اندازه پسو نه ، وزی ، اسان او یا غویان خپلو پیرا نو او سیدالو تـه ور کوی او دهغوی نه ددی غو ښتنه کوی چی ددغی نذرا نی په بدل کـی دی ده ته تو له یا خو ور ځی روژه وبخښی او لکه چی همدا سې هـم اګیرې او دغه خلک ناپوه او جا هــل سیدان هم دشر عی چارو و ګیلا نـاو کفیلا ن بـــو لی .

---

*تول هزاره ګان شعیه نه دي - سني مذ هبه هزاره ګان هم سته ذکا بـل هزاره پغل دپنجشیر او اندرا بـدای قوزی ، دای مرد ګان ، نیك پی ، لر خو یی اوده مرده هزاره ګان سني دي دشهر په جلمیش او ځند ك د سرغ دپار سیا په سرغ دره کـــــي اوشیخعلي کي سني هزاره ګان او سی په بامیان کی هم دسنی هزاره ګانـو پنځه کلی شته . (رشاد )

**دلدل (دَدالو نو په پیښن) د یوی کچری (غاتری ) نوم و چی د اسکندریې حاکم حضرت محمد صلي اللــه علیه وسلم ته د تحفي په ډول راــلیږ لی وه حضرت پیغمبـــــر(ص) هغه کچره حضر ت علي رضي اللــه عنه ته ور و بخښله .(رشاد )

د هزاره ګانو نر او ښځې پـــه سندليواو نڅا پورې ډير اوربلوې او دهغو په شاوخوا را ټوليږي او په ساز او سرود لاس پورې کوي، که څه هم دوی دمو سيقي له اصولو نه بی خــبره دي دوی پخپلـــه اصطلا ح کې مروجه ساز او سرودپو لبي په نامه يادوی او بو لبـي اګثرا دګلو دو يګلم نه پرته يوغږدی چی په لوړ آواز سره ئی دتا ګلي دوه سره سم بي زمزمه کوی او دده غه دول آوازو نه پر ته دچنګ د غـږ سره يو ځای غزلی او عا شقا نـــه اشعار هم وايي او عا شق اومعشو ق دخپل حال سره سم غز لي چو رو ی‌او بيا يی د سندرو په شکل وايـــي

دوی دشعر ويلو سره زياته مينـــه لری ، نارينه يی خو ساعته ، په پر له پسی دول په مشاعرو بو خت اونکلو نه او کيسي کوی ، ښځو هم په شعر ويلو کې برخه اخلی دبيلګـی‌په دول دلته ديوی دوه ويشت‌ګلنی نجلي د غز لي مطلع دښو نی په دول‌راوړو :

قاتلو ګهنه عجو زک ښو سلجـی‌مګنه
رفته رفته تــر زی و لګه ګـــوچلجي مګنه

دوی دګور نه د پاندی د ښکارسره‌ډيره مينه لری او په سپی پا لـدی ښکار کو ل ډير خو ښو ی‌او په توپک‌پاندی د تګه ، مار خور او نوروهو- سيو ښکار هم په دو ی کی ډيرزيات‌دی . دوی دآس دخغلو لو لو بـــي هم کو ی‌او هغه څوک چی لو بـــه وګټی هغه ته پسه ، غوا يــی ، آس برک او نور قيمتی تو کرد انعام پـــه دول ورکو ل کيږي .

هزاره ګانو په تو پکو با نـــدی‌دنښی وشتلو لو بی هم کـــوی ، د ښځو د عشق نه پرته ددو ی نورتول‌ښو قو نه ښه او د ستا ينی‌وړ دی.

سودا ګــــر ي :

هزاره ګان خورا لږه بهر ني ســـوداګري کوي ، ددوی په ملك کی هرراز وړ پنی بر کي ، ښکلی رنګينی‌غالی،اعلي تغـــــر ، او د تګـــه هوسي ځر منی چی له هغه نه ناز کی‌موزی‌او بو تو نه جو ړ يږی او بهر تـــه وړل کيږی ، په تيره بيا ايرا ن ته‌دبر کي اعلی وړ لو نه په زياتـــه اندازه صادر يږی ، لکه چی‌داپرا نپاچا يو استاز ی ددغو ګانو نـــو داخستلو په منظور په دايز نکی کی‌اوسيږی .

هزاره گان دڅیړو غوړیو او حیـواناتو سودا گری هم کوي ، همـــدا
راز په دوی کی دمر یانو اونجو نـوکرخو ل هم مروج دی خو د سنــی
مذهب سره دمخا لفت له امله دسنیانو سره لړی تجار تی اړ یکـــی
لری . ان تر دی چی که چیر ی کوم هزاره دافغا نستا ن له کو می بلـی
سیمی نه بیر ته خپلی سیمی تــــه ستو ن شی په هغه باندی هم بد ـ
گمانه وی او فکر کوی چی کوا کی په ده به سنیا نو کو م تا ثیـــر
کړی وی . که چیر ی کوم سنی پـه دوی کی مو جود هم وی هغه دسرـ
کو ز ی او سپی نه پر ته په بل نوم نه یادو ی .

هغه څو ک چی و غوا ړی ددو ی ملك ته سفر وکړی نو کوتي ، ستني ،
سلیماني مری اود ښځو نوری گانی ، درنجو کڅوړی او دښځو نور شیان له
ځان سره یو ښي نو په ارامی سره به سفرو کړی او ډیره گټه به تـر
لاسه کړی .

## کانـــو نــه :

د هزاره جات دو ړو غـ ونـو در ی لړی معدنی ډبری لری او حتی دغه
واړه غرو نه چی دوات یو په ... کی مو قعیت لری له ... ډول زیږ بخونی
سری خاوړ ی چی تیږه ور سره گډه جوړ شوی دی او په دغه غرو نو
کی ډول ډول کانو نه لکه گو گـــړ ، زاك ، مومیایی ، درنجو ډبر ، نیـلـ
تو تیا او سر ب مو جود دی او لـه هغو نه زیاته اندازه استخراجیږ ی .

په هزاره جات کی بی شمیره کـانونه لکه د ډبرو سکـاره ، مس او
نور هر راز معاد ن شته دی خـــودخلکو د بی خبری او نا پو هی په وجه
تر اوسه پوری کشف شوی نه دی .

## دهزاره وو د قو م شمیر :

لکه څر نکه چی وړا ندی وویــــل شول چی د هزاره قوم سردا را نــو
او سلطا نانو تر لاس لاندی ژو ند کوی ، خو د ټو لو هزاره گا نــو
حال داسی نه دی ، ځینی یی هیـــځ سردارا ن نه لری اود ا فغانانـــو
(پښتنو ) په شا ن په خپل سری ډول ژوند کوی ، مثلاً دگوی ښاخ چـــی
دهندو کش په خوا کی میشــته دی سلطان نه لری او هم هغه هزارگان
چی دمقر او قره با غ دسیمو ترڅنگ په میدا نی سیمو کی دغز نی لویدیځ
او هم هغه علاو الد ینی ښا خ چی دکابل په چهار دهی کی اوسیږی د
هغوی روا جو نه دتا جکو سره ورته والی لری . الفنستن ددغه قـــوم
شمیر تقر یبا ادری نیم لکه تنه ښودلی دی خود غه شمیر زما د خیرو نو پـه
نتیجه لږ ښکاری .

هغه بیل بیل روایات چی ما ته دخپلو تحقیقاتو په ترځ کی تر لاسه شوی دی په هغی باندی دغور کولو او نتیجی اخستلو نه داسی څرگند یږی چی ددغه قوم شمیر به ترلسو لکو کم نه وی. دوی په یوه لوی ملك کی خواره مواره شوی دی دوی د ملك دهوا تا ثیر دا دی چی هلته دکوی ناروغی هیڅ نه لیدل کیږی.

## دکیانی قوم:

ددغه قوم تقریباً پنځه سوه کورره په ټول افغانستان کی میشته دی، چی په مغلو ب دول ژوند کوی دوی په کندهار او دهرات په شا او خوا کی استو گنه لری دوی له سیستان نه دغه ځای ته راغلی. د کیانی لوی نیکه قباد نو میده خودغه خلك خپل لوی نیکه رستم دستان بولی. د دوی یو دبله وړه فرقه چی په شیر وانیو سره مشهور ده هغوی خپل نسب انو شیر وان ته منسوبوی. خارا نی آزاد خان هم یو مشهور شیروانی دی. دکیانی قوم ټول مسلمانان او اکثراً شیعه مذهبه دی، خو لږ شمیر یی سنیان دی. دوی دښو کرو وړو خاوندان دی او اکثراً په کرکیله او نو کری با ندی بوخت او پر خپلو جتو گاوند یانو با ندی زیات واك او بر لاسی لری، دکوهات غلام حیدر خان کیانی دیر نیك بخته میلمه پال اوخوش طبعه سړی دی.

## چغته (چغتا یی) مغل

ددغه قوم لږ شمیر خلك په افغانستان کی میشته دی او دوی په تیت اوپرك او کمزوری دول ژوندکوی. دهرات دسیمی په بیلو بیلو کلیواو همدا راز د جمشید یانو دغره په کډون ددغه قوم تقریباً زر کوره په وی او په پاتی ټول افغانستان یی شمیر له دغی اندازی نه لږ دی. دهرات مغل په خپلو منځو کی په ترکی ژبه باندی خبری کوی، خو د نورو خلکو سره په پارسی ژبه گږیږی. نور مغل په پارسی ژبه خبری اتری کوی. دچغتا یی مغولو یوه کور نی چی دامیر تیمور دنسله دی دغزنی دواغد په سیمه کی اوسیږی دد غو خلکو نه ځینی دخپل قوم دواکمنی په وخت کی په دی ملك کی پاتی شوی دی.

تاریخ پوهانو ته په څرگنده وی چی د چغته قوم دمغلو یو ښاخ دی او دخپل لوی نیکه چغتای خان ابن چنگیز خان دنامه له کبله په چغته باندی مشهور شول، په همدی دول مغل هم دترك دقوم یو ښاخ دی او دوی دخپل لوی نیکه مغل خان ابن التجه خان دنامه له مخی په مغلو مشهور شول.

دترکو قوم دیافث ابن نوح ( ع ) داولادې له دې ، ودوی اکثره روا ـ جونه دتاجکو په شان دي، خوځورالداو یو ښا لږ یي تر هغو دیر ښـــه او مکلف دي .

## قـــزلباش:

قزلباش دهغوتر کانو له جملې نه دی چې په ایران کــې معززي کورنی وی د قزلباش دتسمیی وجه دهغوی دسر دخـــــو لیو نـــه اخیستل شوی ده چې په ترکی ژبـــه قزل سره او باش سر ته وا یـــي او مجر نګه چې دغو خلکو په ســـرې خولې په سرکولې نو ځکه په قزلباش سره ونو مول شول .

دتر کانو نه پرته دځینو نـــورو قومو نو خلك هم په قزلباشو کې شامل دي دوی اکثراً په ښارو نـــو کې ژو ند کوی خو د هرات په ځینو کليو کې هم استو ګنه لري . پـــه ټول افغانستا ن کې ددوی شمیـــر تقریباً شل زره کوره دي چې دهغوله جملې نه دولس زره کوره د کابل په ښار کي استو ګنه لري. همدا رازدکندهار ترپ خاني او علي زيو په محله کې هم يو لږ شمير قزلباش او سيږي او پاتي يې په متفـــر ق او خواره واره ډول ژو ند کوی ، پـــه تیره بیا دهرات په ښار اودهـــغه په شاو خوا کليوکی میشته دی.دوی په کابل کي د ایرانـــي نادر شاه او ابدالی احمد شاه په وخت کی میشته شول دوی له نورو خلکو نه په بیل ډول ژ وند کوي او په پارسي ژ به خبری کوی ، خو په خپلو منځو کـی په خپله پخوا نی ژبه تر کی باندې کر یږي دوي شیعه مذ هبه دي.

په کابل کي اکثراً محا سبـــان ،مستو فيان او مير زا يان دهـــمدي خلکو له جملي له دي . ځینـــــی پیشخدمتان ، سپاره ملا زمـــا ن افسرا ن ، اوصندو قدارا ن هم دي.له دغو اوربنا خونو نه پرته چې په هغو کې تو ل قز لبا شان را ځـــي دکابل قزلباشان چې غلام خانه يــې هم ور ته ويل کيدل خاص ښاخو نه يې په دي ډول دی . چنداول چـــې دیو ځ دزره * معنی لری ، او سپاه منصور دیوه ښاخ نوم دی، جوان شیر دزړور تيا يو لقب دی دمرادخانـــی نوم یوه درانی سر دار ته دتا بـــع کیدو په دچه ور کړل شـــوی دی،همدا راز افشار دیوه ښاخ نـــوم دی

* دلته چنداو ل دیو ځ دزره په معنی راغلی ، په داسی حال کي چي چنـــد اول دیو ځ ورو ستی برخی ته ویل کیږی او دایوه تر کی اصطلا ح ده (ژبارونکی )

چی ایرانی نادر شاه هم دهمدی بناخ ته و .اوس په کابل کی قزلباش
ډیر دی او افغانانو او قزلباشو ترمنځ دمذهبی اختلاف له کبله
دښمني موجوده ده .

او کله کله دشعیه گانو او سنیانو تر منځ هم جګړی را منځ ته
کیږی .

## اوزبېک :

د ترکستان سیمه له ازبکو نه ډکه ده خو په افغانستان کی
داوزبکو تقریباً سل کوره موجوددی .از بك د ترك دقوم یو ښاخ دی
په مقرگی هم یوه کو چنی سیمه شته چی هلته اوز بکان اوسیږی ،
او په ځینو نورو ځایو نو کی هم دوی موجود دی او په کرکیله
سوداگری او نورکري بوخت دی او په پارسی ژبه خبری کوی .

## دډیگانان قوم :

دغه قوم چی په پیل کی په ز یات شمیر سره په شمالي او ختیځ افغا
نستان کی میشته وو اوس یوازی په کونر ، پورتنی باجور او ســـ
شمیر نوریی په لغمان کی استوگنه لری . دیگان په کونر کی یو
بیل قوم شمیر ل کیږی چی ځانته بیل سر دار لری چی دسید له قوم
نه دی او پاد شاه ( پاچا ) هم ورته وایی .

اوس سید بابو جان پاچا د کونر رئیس دی او دکابل دامیر له خوا
هم یو استازی دما لیي درا ټولو لو له پاره هلته ټاکل شوی دی .

دیگانان په هغه ژبه خبری کوی چی دبابر په تاریخ اوطبقات
اکبري کی لغمانی ژبه بلل شوی ده ، داسی ښکاری چی په دیگانی ژبه
کی اکثراً سنسکریت ، پارسی او ځینی پښتو کلمی هم موجودی
دی ، او ډیری کلمی یی له سنسکریت سره ورته والی لری .
له دی نه معلو میږی چی دیگانان له هندی نژاد له وو . خود هند
کیو سره هیڅ اړیکی نه لری .

د افغانستان خلك په غلطی سره دهقانان ، دیگانان پولیی او
تاجك د دیگانان سره یو شان گنی ، خو دا بیخی غلطه ده . وړاندی
لیکل شوی دی چی تاجك داسلام تر ظهور وړو سته دغو سیمو ته
راغلی دی او هندی مذهبه دیگانان له دوی نه وړاندی په دغه ملك
کی میشته وو .

## هندکی :

هند کی د ختیځ افغا نستا ن په ټولو برخو کی خوار ه واره او ټول هند یان دی ، دوی اکثراً دسند رود له ختیځو برخو نه راغلی او میشته شوی دی ددو ی یو ښار ځچی جټ بلل کیږی دپنجا ب په اکثرو برخو کی په کر کیله بوخت دی او زیات شمیر جټا ن په سند کی هم او سیږی ، دبلو چستان ، دامان ، بنو او پیښور په ضلعو کی هم جټان استو گنه لری ، په بلو چستان کی دوی تـه جکدا ل وایی په سیستا ن کی هم یو لو ی قوم چی جټ بلل کیـږی او سیږی او یو بل قـو م چی اوان نومیږی په کالا با غ او دهغه پـه ختیځه سیمه کی استو گنه لری دغه خلك هم په ختیځ افغا نستان کـی په خواره واره ډول لیدل کیږی ، ډا دان د قوم خلك ځا نونه د حضر ت علی (ك) او لاده گنی او ډیره مو ده کیږی چی دغه خلك له غزنی نـه دسند رود ختیځو خواو ته را غلـــی دی او ددغه قو م هغه خلك چی له هغه ځایه بیر ته افغا نستا ن تـه راغلی او ځرنگه چی دوی دسنـــد دریاب له ختیځو خواوو نه را غلی وو نو ځکه په هند کی سره مشهورشول دهند کی دقوم بل ښاخ پرا چه دی چی اکثره خلك یی سودا گر دی .

په کا بل کی دشا ه جهان دو خـــت هندو ستانی مطر بان ، ډمـــان او قوالان چی په هغه وخـــت کی راغلی وو د هغو ی او لاده هم ډیره شوی ده . دیو سفز یو په سیمه کی زیات شمیر گو جر هم شته دغـه خلك ځانونه درا جپو ت دقو م یـو ښاخ بولی او هند کی له باجوړ نه تر ننگر هاره پور ی لیدل کیــږ ی دوی په اکثرو ځایو نو کی دپښتنو دهمسا یه وو په ډول خپله گوزاره کوی . ددی اصلی ژبه هندی ده خو پنجا بی ته نیږدی وا لی لری ، مگر اکثراً یی په پښتو ژبه خبری کوی .

## هندوان :

په ټول افغا نستان کی هند وان شته دی ، او په لو یدیځ کی دعر بو تر ملك پوری په ځینو ، ځینـــو ځایو نو کی هندوا ن تر ستر گـــو کیږی . همدا راز دوی په ختیځ کی دچین د هیواد تر پیکن پور ی خواره شوی دی .

دافغانستان په لویو ښارونو کې هندوان ډیر دي. دختیځ افغانستان په هر کلي کې ددوی یو یا دوه کوره شته، خود کابل په ښار کې یې شمیر ډیر دي. دلویدیځ افغانستان په کلیو کې هم یو یا دوه کوره هندوان شته، دوی په دوکانداری، دلالی، صرافی او زرګری پاندې بوخت دي. ځینې یې دکر کیلې چاری هم ترسره کوي.

دافغانستان هندوان اکثراً کهتری (۱) او اروړی (۲) دي خولږ شمیر سکان هم شته. دافغانستان هندوانو د هندوستان اکثراً رواجونه ترک کړي دي.

دوی پړیری پرېږدي او پوښاک یې هم ددغه ملک او سیدو نکو ته ورته دي. دوی په تناره پخه سوی ډوډۍ خوري او دخپل معمولي غسل چنداں خیال هم نه ساتي.

دلویدیځ افغانستان هندوان دسپایانو په خیر و سلې هم ساتي. دوی د هغو پښتنو هندوانو اولاده نه ده چې ددغه ملک پښتانه او سیدو نکي وو. بلکې دوی وروسته د ډهلی پاچایانو په وخت کې اکثراً له هندوستان، پنجاب، او سند نه راغلي او ودلته میشته شوي دي. په افغانستان کې د پښتنو هندوانو دبت پرستی آثار او نښې نښانې موجودې دي. دکابل شمال خواته اقا سرای ته نږدې یوه سمڅه موجوده ده چې په هغې کې یو بر همن چې کرك تسپیوی نومیده او د کرشن له کورنۍ نه و په زهد او تقوا بوخت واو هندوان دغه سمڅه سپیڅلې ګڼي. دلوګر په خوشي کې هم یوه چینه موجوده ده، چې هندوان یې سپیڅلې ګڼي ځکه چې هندوان په افغانستان کې په خواره واره میشته دي نوله دې کبله د دوی ټول شمیر څرګند نه دی او نه یې یقیني شمیر په ډاډ سره لیکلی شو خو داسې اټکل کیدای شي چې په ټول افغانستان کې دیو لکو څخه ورونه ډیر هندوان آباد دي خو دوی کم زوری خواره واره دي او ذلیل شمیر ل کیږي.

---

(۱)، (۲) کهتری او اروړی په هندوانو کې دوه بیل بیل قومونه دي. (زیارو نکی).

## سواتي :

اصلي سواتیان ته هم کله دیګان وایي ، دوی په اصل کی هندي الاصله دي. دوی په پیل کي له جیلم نه تر جلال اباد پوري سیمو کي میشته وو ، خو پښتنو دوی په تدریجي ډول دشمالي غرونو خوا ته په شا وتمبول او دوی تر تو لو ورو ستي استوګنځي دسوات او بونیر سیمه وه چي په پنځلسمه او شپاړسمه عیسوي پیړي کي یوسفزیو له هغو نه ونیوله .اوس لږ شمیر سواتي په پکلي اود هزاره د ضلعي په پورتنیو غرونو کي میشته دي خو لږ شمیر دسوات او دهغه په شاوخوا کي هم استوګنه لري . دوی د یوسفزیو له قبیلي سره یو ځای خو کمزوري او درعیت په ډول اوسیږي .

د سوات په سیمه کي دوی ته فقیران هم وایي چي بیان یې د یوسفزیو دقبیلي په مبحث کي راغلی دی . او س سواتیان په پښتو خبري کوي او پخپله پخوا نۍ ژبه نه پوهیږي .

## تنولیان :

په پیل کي دوی دکور مسي (دسین ) په غارو کي او سیدل او دشلمان دسیمي په سبب دوی په شلماني باندي مشهور شول له دغه ځایه د تیرا خوا ته لاړل او له هغه ځایه بیاد پیښور ر په اشنغر کي میشته شول . یو سفزیو په پنځلسمه (ع) پیړي کي دوی له هغه ځایه وشړل او تر هغه وروسته سلطان او یس سواتي هغوی ته دسوات دسیمي په الاډنډ کي ځای ور کړ. کله چي سوات دیوسفزیو لخوا ونیول شو نو شلماني دیوسفزیو له خوا مغلوب شول. دوی نه ځیني یې اوس هم له یوسفزیو سره لیدل کیږي او دوی مسا په یعني رعیت دی ، خوشمیري دومره لږ دی چي باید مخ په ورکیدو و ګڼل شي .

شلماني د افغانانو په پخوانیو تاریخو نو کي دیګانان بلل شوي خو دا روایت صحیح نه دی .